# سي ای اي په پنجشیر کي

لیکوال: جنرال ګیري شرون
ژباړن: لاهور خان منګل



کتاب پېژندنه

د کتاب نوم: سي اي اي په پنجشير کې
ليکوال: جنرال ګېري سي شرون
ژباړن: لاهورخان منګل
چاپ کال: دوهم ځل لپاره ۱۳۹۳ لمريز / 2015 ز
شمېر: 1000 ټوکه
کمپوز: ژباړن



لړليک

# د لیکوال په اړه

د سي ای اې له څارګره اداري سره پنځه دیرش کاله خدمت کړی. د ګیري سي شرون د دندې زیاته برخه یې په منځني ختیځ، ایران، پاکستان، سعودي عربستان او افغانستان باندې متمرکزه وه.
د لیکوال د مډالونو له ډلې د استخباراتو د صلیب نښې مډال هم ګڼلی دی چې د سي ای اې مینځ کې تر ټولو لوړ مډال دی. هغه اوس مهال په رینو، نیواډه ایالت کې د خپلې ښځې بېټسي سره اوسیږي.

# د ژباړن يادونه

د کتاب ژباړل هغه څه دي چې زموږ کتابتونونه ډېروال کوي،مطالعه، فکر او درک مو هم پراخوي.

د کتاب ژباړه که د کتاب د ليکلو څخه يې ګالل زيات نه وي ترې لږ هم نه دي ځکه چې د کتاب د ژباړې پر مهال بايد ژباړه هم پر ولسي ژبه وي او هم بايد د ليکوال د ژباړې اصلي متن سره توپير ونه لري څو د ليکوال نظر ته په کې احترام شوای وي.دغه انډول ساتل له ستونزو خالي نه وي، خو د هغه څه چې بهرنيان يې زموږ د ګړيدلي ملت په اړه نورې نړۍ ته وړاندې کوي ، د ملت خبرول مې خپله دنده وګڼله. د کتاب اصلي نوم فرست ان( FIRST IN ) چې پښتو ژباړه يې لومړی ننوتنه ده خودې نوم کوم ځانګړی پيغام نه درلود ځکه چې ليکوال په خپله اعتراف کوي چې سي، ای، اې د ۱۹۷۰ کلونو په بهير کې په افغانستان کې ښکېل شوه نو که لومړۍ ننوتنه يې نوم شي نو بيا داسې انګېرل کيږي چې ګواکې د سي، ای،اې، لومړۍ راتګ د سپټمبر د يوولسمې د پيښې څخه وروسته ترسره کيږي نو په دې اساس د دوستانو سره د مشاورې او د کتاب موضوعاتو په پام سره مې د کتاب نوم سي، ای، اې په پنجشېر کې کيښود. ليکوال په دې کتاب کې د شمالي ټلوالې د ټولو ښکېلو برخو(افغانانو) اصلي نومونه ياد کړي دي نو له دې امله ليکوال ته د شمالي ټلوالې د غړو لخوا د هغوی د نومونو د ابشا کولو شکايتونه وشول. ليکوال په دوهمه ګڼه کې د هغوی نومونه او ځينې نور موضوعات لکه د پيسو مقدار هم ترې حذف کړي دي .دا کتاب د خلکو د پراخې غوښتنې په اساس ددوهم ځل لپاره چاپ کيږي چې د ښکيلو غړو په کې نومونه او نور مالومات کټ مټ د ليکوال د لومړ ي ګڼې د چاپ سره سمون لري. لومړي زر ټوکه له چاپ وروسته سمدستي د هېواد ټولو مخکښه پوهنتونونو لکه د پکتيا پوهنتون، د خوست پوهنتون، د کابل پوهنتون، د ننګرهار پوهنتون او د کندهار پوهنتون ته وړيا ډالۍ شول. يو شمېر يې د هيواد په لويو کتابتونونو کې د هېوادوالو داسانه لاس رسي لپاره ولېږدول شول.

د کتاب د ژباړې د اجازې لپاره مې د ليکوال سره د هغه وبپاڼې له لارې چې دده کتاب يې چاپ کړی و،د اړيکې لپاره زياته هڅه وکړه خو بريالی نه شوم. نوموړې ويبپاڼې ته مې د يادونې لپاره يو نوټ پريښود او د کتاب ژباړې ته مې لاسونه راونغاړل، هيله ده چې ليکوال دغه ټکي ته پام وي.

د کتاب د لوستلو پر مهال کله کله د سړي احساسات راپاريږي او د ځينو افغانانو د زړه دردونکو اود شرمه ډک عملونو له امله سړی لعنت ويلو ته اړ کيږي خو لوستونکي بايد ترې پند واخلي او نورو افغانانو ته د له دغه حقيقت څخه پرده پورته او سترګې يې پرې خلاصې کړي.

ليکوال په ځينو ځايونو کې پر افغانانو خاندي او د خپل مجهز پوځ سره يې پرتله کوي خو هغه بايد پر هغه حقيقت پوه شي چې دا هغه افغانان دي چې د روسانو ستر او مجهز پوځ يې د هغوی د ځانګړو ځواکونو( سپيتسناز ) چې د وخت مجهزه او د امريکې د اوسنی او،ډي،اې يا ځانګړو قطعاتو څخه ډېر ځواکمن ول، په شته والي کې يې له لوېې او شرمونکې ماتې سره مخامخ کړل.

ليکوال د سپټمبر د يوولسمې د پيښې وروسته پر افغانستان باندې د يرغل پرمهال د خپلې ادارې پر بې خبری او د هغوی د لږې همکاری څخه تر ډېره سر ټکوي ان تر دې چې لوستونکی پرې شک کوي چې ښايي د سپټمبر د يوولسمې پيښې په خپله د متحده ايلاتو د حکومتي چارواکو په منځ کې د رښتنيوالي په اړه پوښتنې راپورته کړي وي.

ليکوال د امريکې د ادارې  په هغه ستراتيژۍ او کړنلارې چې په افغانستان کې يې پلې کوي، نيوکه کوي.د سمون په موخه  د افغان دولت لپاره د يوې داسې  ادارې ورانديز کوي چې د درې گوني قواوو  سمبالونه ، کنترول او د کارولو وړتيا پرته له دې چې نړيوالو ته ور غږ کړي، ولري. دا په ځای وړانديز دی. زما په باورخپل کور په خپله ښه ساتل کيږي او افغانان يې بايد واگي په لاس کې واخلي.

د کتاب په زياتو ځايونو کې مې د پوځ اړوند لنډ (مخفف) نومونه په (*) ستورې په نښه کړي او د اړوند پاڼې په پای کې يې اضافه مالومات ليکل شوي دي ځينې نور مې  بې له تشريح په اصلي حالت پريښول ځکه چې د ډيرې هڅې سره سره بيا هم ددغه نومونو د اصلي مفهوم  او ماناپه پيداکولو بريالی نه شوم خو د لوستلو پرمهال يې لوستونکی عمومي مانا درک کولای شي. د زياتې بوختيا ترځنگ مې د کتاب ژباړه تر دغه ځايه راورسوله، تر خپله وسه مې ژباړه اسانه کړې او هيله ده چې لوستونکي مې تيروتنې وبخښي. نور مو دلته نه تموم، د کتاب لوستلو ته مو رابولم.

د يوه خپلواک، د تبعيض او د پردي پالنې څخه د پاک افغانسان په هيله!

لاهورخان منگل - خوست
۲۰۱۵ فبروري ۱۵

## د لوی څښتن په نامه!
## د لیکوال سریزه
## سپتمبر ۰۹ کال ۲۰۰۱

دسفر کوچنی ساعت و ګنېد، له خوبه یې راویښ کړم. د سهار شپږ بجې وې. دمسعود خلیلي په وینا هغه یوازې څو ساعته خوب کړی و. یوه شپه وړاندې احمد شا مسعود(خلیلي به همیشه د قوماندان باللو.لیکوال) غوښتل چې له ماسره وګوري . د رسمي غونډې د پای ته رسېدا وروسته ، زه او قوماندان سره کیناستو. قوماندان اندیښمن و چې طالبانو د نظار شورا(شمالي ټلواله.لیکوال) په تیرو پنځو کلونو کې په کراره خو په ثابت ډول دومره په شاکړې ده چې په دې وروستیو کې یوازې او یوازې لس په سلو کې خاوره هغه هم شمال ختیځه غرنۍ سیمه ورپاتې ده. د ټلوالې مرکز د پنجشېر په دره کې و. قوماندان دا هم وویل چې د اسامه اود پاکستان مرسته به طالبان د وخت په تېرېدا سره ډېر ځواکمن کړي. د نظار شورا یوازې ده. د هند،روس او د ایران څخه د ډېرې لږې مرستې په ترلاسه کولو سره د نظار شورا راتلونکي کړکېچنه ښکاري .

د امریکې خارګرې ادارې سي،ای،اې غوښتل چې شمالي ټلواله د هغوی سره د اسامه بن لادن په نیولو کې مرسته وکړي . نظار شورا به دغه کار په خوشالۍ سره ترسره کړای وای خو ددوی زیات ځواک په شمالي کې د لومړۍ کرښې تر شا راغونډ شوی و. خلیلي مسعود ته وویل چې سي ای اې د امریکې بهرنۍ او دکورنۍ کړنلارې (پالیسي) جوړونکي نه ده بلکې د سی ای اې دنده داده چې استخباراتي مالومات را غونډ کړي څو د امرېکې پالیسۍ ته بنه ورکړي خو د امریکا دولت به یوه ورځ خپل کړنلا رې ته د افغانستان او د نظار شورا په وړاندې بدلون ورکړي په ځانګړي ډول که اسامه د امریکا دولت ته نور هم خندونه زیات کړي.

قوماندان ډېر هیله مند و.هغه فکر کاوه چې د سی ای اې سره اړیکې ددوی لپاره ډېرې اړینې دي . قوماندان کوښښ کاوه څو یو پلان طرح کړي چې له مخې یې سي ای اې لدوی سره مرستې کې مهم زیاتوالي ته اړه کړي. خلیلي په بیړه له کټ څخه را پورته شواو د کار جامې یې واغوستلې ، قوماندان به له ده وړاندې د سهار سپکې ناشتې ته ناست

و.
خلیلـي د ځـان مینځلـو هیلـه درلـوده خـو قومانـدان ټینګـار وکـړ ځـو لـه هغـه سـره چـای څښـلو تـه کینـي. قومانـدان د دغـه لنـډې لیـدنې پـه مهـال، د دوه ورځنـي سـفر پـر همـال پـه دوشـنبه کـې، بیـا پـرون ورځ پـه پنجشـېر کـې پـه غیـر معمـولي ډول متوجـه و، غوښـتل یـې لـه خلیلـي سـره واوسـي، لـه هغـه سـره کینـې او لـه هغـه سـره خبـرې وکـړي. دا غیـر معمـولي خـوی و .سـره لـه دې چـې هغـوی نـږدې ملګـري ول،قومانـدان بـه پـه رسـمي موضـوعاتو دومـره غږیـده چـې د ملګرتیـا او یـو پـر یـو غږیـدلو وخـت یـې نـه درلود.
کلـه چـې خلیلـي جاکـټ اغوسـته، پـه دروازه ټـک ټـک شـو .دروازه پرانستل شوه. قوماندان موسکی و، سر یې دننه کړ اوویې وویل؛
ما فکـر کـاوه چـې ویـده بـه د پیـدا(ګیر)کړم خـو راځـه چـې چـای وڅښـو. زه او تـه تاجکسـتان تـه لـه سـفر وړانـدې بایـد پـه ډېـرو موضـوعاتو وغږیـږو. قومانـدان کـوټې تـه راننـوت . د خلیلـي څخـه یـو څـو ګامـه وړانـدې ودریـده او خلیلـي ورتـه وویـل ؛ تـه خـو ډېـر لـږ خـوب کـوې، څنګـه بـه وکـولی شـم لـه تاسره کارونه سرته ورسوم.
خلیلـي وویـل چـې قومانـدان ډېـر سـتړی ښـکاریده. تیـرو څـو کلونـو یـې ځیـرې تـه بـدلون ورکـړی و. کلـه چـې خلیلـي خپـل شخصـي تـوکي لـه المـارۍ څخـه را واخیسـتل قومانـدان د خلیلـي پاسـپورت تـه لـاس کـړ او د خلیلـي پـه لوري یي په لاس وښوراوه، ورته یې وویل؛ دا د ې هېرنه شي .
خلیلـي وویـل ؛نـه مننـه؛ دا بـه همدلتـه پـه المـارۍ کـې د یـو څـه وخـت دپـاره کېـږدم. قومانـدان وویـل چـې نـه دا دی اوس یـی واخلـه بیـا بـه یـې هیـر کـړي. خلیلـي وویـل چـې قومانـدان پـه خپلـه رانېـږدې شـو او دده د جاکـټ پـه مخ جیـب کـی یـې کېښـود. بیـا دواړه د دروازې پـه لـورروان شـول خلیلـي سـر وښـوراوه او د قومانـدان دغـه غیـر معمـولي عمـل تـه حیـران شـو. د چـای د څښـلوپه مهـال انجنیـر عـارف هـم لـه دوی سـره یـو ځـای شـو. انجنیـر عـارف د مسـعود د څـارګرې ډلـې مشـر و. د ډاکتـر عبـدالله پـه ګـډون یـو یـا دوه کسـان نـور هـم ناسـت ول. ډاکتـر عبـدالله د بهرنیـو چـارو مسـولیت پـه غـاړه درلـود. بحـث د راتلـونکي شـپې پـه پرمختګونـو، لـه بهـر څخـه د خبرونـو او د ورځـې پـه پلـانونو راڅرخیـده. خلیلـي د سـهار خبـرو تـه دومـره پاملرنـه نـه کوله ځکه چې دا ډول لیدنې د تېرو شلو کلونو په بهیر کی یو ورځنی عادت و.
د خبـرو اتـرو لنـډه برخـه د هغـه دوو تنـو عربـو پـه سـر وه چـې د پنجشـېر پـه دره کـې د دوه اوونیـو راهیسـې د مسـعود سـره د مصـاحبې دپـاره

انتظار ول. ایا قوماندان به مخکې له دې چې تاجکستان ته سفر وکړي په دې وتوانیږي چې له دوی سره وګوري؟ تاجکستان ته د سفر یوازې یو ساعت وخت و. قوماندان د نومړو عربو د اړوند اورګان پوښتنه وکړله. انجنیر عارف وویل چې نومړي دوه عربان په لندن کې د یوه اسلامي اورګان د پیژند ګلوي اسناد لري او پروفیسور سیاف ددوی سره درې ته د راتګ مرسته کړې ده. قوماندان د څو شیبو دپاره فکر وکړ او بیا له دوی سره د مصاحبې لپاره چمتو شو. د غونډې په پای کې خلیلي قوماندان ته وویل چې زه به اوس ځان ومینځم او د مصاحبې وروسته به بیا درسره ووینم .

قوماندان وویل چې ته باید دلته کینې ځکه چې ته د خبري رسنیو سره ښه پوهیږي. خلیلي په ټوکو سره ځواب ورکړ: صیب زه یو متمدن سړی یم او باید پاک واوسم . قوماندان وویل؛ هو ته ډیر متمدن سړی یې ځکه چې زیات وخت دې په بهر او په لویدیځ کې د ایرکنډیشن لاندي تېر کړی، د جهاد وخت دې له یاده وباسه؟

هغه یوه شیبه غلی شو ، بیا یې زیاته کړه چې د مهربانی له مخې همدلته اوسه کار درسره لرم. خلیلي د سر په ښورولو سره د هو ځواب ورکړ او د کنفرانس د کوټې په لوري روان شول. د کنفرانس کوټه ډېره لویه وه.پاکه او لوېدیځ ډوله جوړښت درلود.په کوټه کې یو کوچنی میز ، دوه چوکۍ او یو لوی میز چې ډیرې چوکی یې شااو خوا ایښې وې، شتون درلود . قوماندان د کوچني میز سره کیناست او خلیلي یې هم خپل ښي لوري ته راوغوښت. پاتې نوري چوکۍ د عارف،ډاکتر عبدالله او د مسعود نورو نږدي مامورینو ته کېښودل شوې.

کله چې کوټه چمتو شوله، دوه عرب ژورنالستان کوټې ته د څو کسانو له خوا بدرګه شول. دواړو پاکستانی جامې اغوستې وې چې اوږدې لمنې او ازاد پرتوګونه یې درلودل. دواړو تور رنګه بې لستوڼو واسکټونه اغوستي ول ،ږیرې یې خړیلې، غنم رنګه پوستکي،غښتلي او میانه ونې یې درلودې.

یو یې دکمرې درې پښې په یو لاس کې او په بل لاس کی یې یوه لویه تجارتي کمره ،بېټرۍ، لاینونه او نورې کیبلې په غاړه کې ځوړند ول.تر یوې کچې د اړوند مسلک سره نابلدي احساسېدله .

یو یې د قوماندان او بل یی د نورو کسانو په لور خپله کمره او نور اړوند توکي برابرول ، دواړه د قوماندان په مخ کې ودریدل.

دواړو یې په خپل وار سره د قوماندان سره په عربي ژبه روغبړ وکړ.

خلیلي له دوی په انګلیسي ژبه د پوهېدا وپوښتل، دواړو د سر په ښورولو سره د هو ځواب ورکړ. خلیلي قوماندان ته وویل چې هغه به ژباړه وکړي.

یو ددوی نه چې خیرې یې ژورنالست ته ورته والی درلود، غوښتنه وکړه چې د کافي کوچنی میز د مخې نه لرې کړي څو وکولای شي کمره په بهتر ډول چمتو کړي. کله چې دغه حالت ترسره کیده،حالات نور هم نااشنا شول.په کوټه کی نور کسان هم د خپلو ځایو پاڅیدل تر څو ځای ازاد کړي.

قوماندان خلیلي ته مخ ورواړوه او ویې ویل، ایا دوی غواړی له موږ سره غیره ونیسي ،که څنګه؟ دوی خو ماته ژورنالستان نه ښکاري، ښایي پهلوانان وي! کوټه تیاره شوله ددواړو عربو له ډلې څخه مشرعرب چوکۍ قوماندان ته نږدې کړله . دویم عرب خپله کمره او د کمرې اوسپنیزې پښې سره تړلې. خلیلي پام شو چې کمره د قوماندان د مخ نه ټیټه اود هغه د ټټر په کچه لوړه ده. کمره مین برېښنایي تاراو بیټرۍ په لاس کې نیولي ول، د کمرې څخه یو څوګامه لیري شو.داحالت ډیر نااشنا برېښېده څکه چې قوماندان له داسې ځلیدونکو(ښوینده) ژورنالستانو سره هر وخت لیدنې او مرکې نه کولې.

خلیلي د ژورنالستانو څخه ددوی اړوند اورګان پوښتنه وکړه. عرب په ځواب کی وویل؛ هو، نه موږ د کومی خبري شبکې اړوند نه یو. موږ په لندن کی د اسلام څخه د نظارت د مرکز سره کار کوو. موږ د نړۍ هیوادونو ته سفر کوو څو د اسلام د وضیعت څرنګوالی خپلې شبکې ته وړاندې کړو. خلیلي دغه خبري قوماندان ته وژباړلې. قوماندان وویل: ایا دوی ژورنالستان نه دي؟ نو بیا څه پوښتنې لري؟ خلیلي د قوماندان پوښتنه هغه عرب ته چې په چوکۍ ناست و، وژباړله. عرب وویل چې موږ غواړو پوه شو چې قوماندان ولې وویلي ول چې اسامه بن لادن یو وژونکی دی او باید د افغانستان څخه وشړل شي؟

دغه عرب همدې ته ورته نورې پوښتنې هم وکړې. خلیلي پوه شو چې قوماندان دې پوښتنې خپه کړ. د قوماندان سر ټیټ شو، زنې یې په سینه ونښلولې او د قوماندان په څیره کې غوسه راوپارېدله . خلیلي پوښتنه وکړه چې ایا دوام ورکړو که ژورنالستان ولیږو؟ قوماندان لاس وښوراوه اوویې ویل چې نه راځئ چې دا مصاحبه ترسره کړو خو وخت به یی را لنډ کړو.

خلیلي ولیدل چې عرب هم د قوماندان په غبرګون وپوهېده په څېره کې یې بدلون راغی او وروځې یې نېغې ودریدلي. خلیلي عرب ته وویل

چې د مهربانۍ له مخې خپلو پوښتنو دوام ورکړی. عرب یوځه ارام شو او خپلې کوچنۍ کتابچې ته یې وکتل.

خلیلي په خپله چوکۍ کې وښوریده او یو څه یې د قوماندان خوا ته ځان نږدي، ښۍ پښه یې په چپه پښه کېښوده. خلیلي فکر وکړ چې دا مصاحبه به ډېر وخت ونه نیسي ځکه چې دغه ته ورته مصاحبې یې زر ځله ترسره کړي دي. عرب د خپلې کتابچې څخه مخ پورته کړ ،د ده شاته دوهم عرب ته یې مخ ورواړوه او ویې ویل، راځه چې پیل یې کړو. کمره مین د کمرې څخه څو گامه شاته ولاړ او یو کوچنی سور رنگه څراغ د کمرې په مخ راغی. عرب قوماندان ته وروکتل او ویې ویل چې؛ صاحبه په افغانستان کې د اسلام وضعیت څنگه ارزوئ ؟ خلیلي خپل سر د قوماندان په لوري واړوه تر څو ددغه پوښتنې ژباړه و کړي چې په دې وخت کې بې رنگه،بې خونده او بې غږه د اورلمبې په ټېر باندی په دومره زور سره وواهه چې په ټول عمر کې یې نه وې لیدلې. هغه دا احساس وکړ چې دی یې ډېر شاته وغورځاوه، میزونه هم وښوریدل او پوستکي یې سوځیدل پیل کړل. درد یې احساس کړ او بیا یې په سترگو توره شپه شوه.کمره په ډېر ځواک سره وچاودیدله او په زرگونو ټوټو بدله شوله. هغه دریو کسانو ته د چاودنې ډېر ټکان قوماندان او خلیلي ته و.د چاودني سره سم یې دواړه څو متره لیرې په دیوال ونښلول او چوکۍ په بل مخ واوښتله.

چاودنې هغه عرب چې د قوماندان مخې ته ناست و، ټوټې ټوټې او د چوکۍ بلې خواته یې وغورځاو. په کوټه کې پاتې خلک د چوکیو نه وغورځیدل او د بم په پرچو ژوبل شول. په کوټه کې د څو شیبو دپاره چوپتیا وه. د خلیلي فکرونه ډېر گډوډ ول هڅه یې وکړه څو راغونډ یې کړي، د ځان له ښورولو وروسته په هوښ کې راغی. له ځان سره یې وویل چې دا خو بم و، ما خود کوم بم غږ نه دی اوریدلی؟ خو دغه دوړې، د باروتو بوی،حتما بم و. دروند غږ یې تر غوږو شو او د سینې په ګڅه خواه یې درد احساس کړ. ویې لیدل چې دا د قوماندان لاس و. مخ یې واړوه او قوماندان یې څنگ ته پروت و چې ډېر سخت ټپي او مخ یې د بم په پرچو سوری سوری و. خلیلي فکر وکړ چې قوماندان او دی دواړه د مړینې په حالت کې دي. خلیلي خپل لا س اوچت کړ څو قوماندان لمس کړي، ویې لیدل چې د ګڅ لاس د پنجو برخه یې ټوله سوځېدلې او په وینو لړلې وه. په کوټه کې هرې خواته منډې رامنډې وې. په کوټه کې نور خلک راپورته شول ترڅو له قوماندان سره مرسته وکړي. دخلیلي

غورو اوریدل پیل کړل خو ګډوډ اوازونه راتلل، اوازونه داسې لکه چې د لیرې واټن څخه وي، اوریدل کېدل. خلیلي پوهیده چې خلک کوټې ته راننوزي او ویې لیدل چې دوهم عرب په څکولو له کوټې څخه وباسي خلیلي قوماندان ته وروکتل ، ګوري چې یو څوک د قوماندان شاته ناست دی او د قوماندان سر یې په خپل زنګون ایښی و. قوماندان سر د خلیلي په لوري وراړوه د سترګو په څمبلو یی اشاره وکړه څو لومړی د خلیلي سره مرسته وشي.قوماندان بیا یو ناځاپه بي هوښه شو،سترګې یې پټې شوې او خوله یې خلاصه پاتې شوه. خلیلي نه پوهیده چې قوماندان مړ دی او که بې هوښه؟خلیلي اسوېلی وباسه او ویې ویل؛ خدای دې رحم وکړي. د خلیلي په سترګوتورې تیاري وزر وغورول. یو څه وخت وروسته یی پام شوچې په یو سور اوسپنیز تخت چې شاوخوا یې د غم اوازونه ول،پروت و.د خلیلي ټول بدن سوځیده. یوازې په چپه سترګه یی لیدلای شول. خلیلي حیران و چې څنګه کولای شي په داسې وخت کې یې ماغزه دومره سم کاروکړي. خلیلي و پوهیده چې هغه په چورلکه کې دی او بهر ته یې وړي. خلیلي سروښوراوه اوویې لیدل چې قوماندان یې تر څنګ پروت دی، د قوماندان مخ عادي مالومیده . خلیلي فکر وکړ چې کوم چایې مخ ور پاک کړی دی. د قوماندان خوله بنده او سترګی یې خلاصې پاتی وي. خلیلي فکر وکړ چې هغه خو مړ دی،په مخ یی تودې اوښکې راغلي اود غم سخته څپه یی په زړه راغله. لاس یي اوچت کړ ترڅو قوماندان وګوري خو د بي هوښی‌تورې تیارې له فکره ویوست!

# لومړی برخه

## لومړی څپرکی

## واشنګټن ډي سي

## ۱۱-۱۹ سپتمبر ۲۰۰۱

په شمالي ویرجینیا کې د سپتمبر یوولسم سهار ډېر ښکلی و. ښایسته شین اسمان او نرمه هوا لګېده چې د مني زېرى یې تر غوږونو رساوه. په همغه سهار زه د خپل کور نه چې د ویرجینیا په الکزاندریه کې و،دعادي وخت څخه یو ساعت وروسته وخوځېدم. ما له دې ورځې څخه یوازې یوولس ورځې مخکې (د سي،ای، اې)د درې میاشتني تقاعد بدلېدا پروګرام کې ګډون وکړ. ددې یولسو ورځوپه بهیر کې مې په دفتر کې د پاکوالي کارونه ترسره کول اوپه ورته وخت کې مې د خپل پنځه دیرش کلن تر ټولو زیات له خطره ډک خو په زړه پورې ماموریت اسناد او صوانح هم چمتو کړل.

تقاعدزما د پاره يو ناځاپي بدلون و اوکه رښتيا ووايم ورته سترګې په لار نه وم.
د تقاعد د پروسې د بدلېدا پروګرام موخه داوه چې د تقاعد شويو مامورينو لپاره تر خپلې کچې ژوند هوسا او اسان کړي. د مسلک ناځاپي او حتمي بدلون يو څه اندېښمن کړم. ما بايد د نوموړي پروګرام لاندې درى مياشتې د هغو نورو کسانو سره چې د خپل تقاعد سره مخامخ او زيات شمېر يې زما په باور د ښې راتلونکې هيلې درلودلې، واوسم څو د سي اې څخه وروسته دژوند په لټه کې راسره مرسته وکړي. سره له دې چې په خصوصي سکټور کې مې دنده خو ښېدله خو زه په دې چې دقيقاً څه وکړم، ډاډه نه وم. د تقاعد د بدلېدا له پروګرام مې هيله درلوده چې د څو راتلونکو کلونو د واضح پلان د پراخولو دپاره وخت او مشوره راکړي.
دفتر ته له رسېدا وروسته د خواشينونکي پيغام په اورېدا سره،خپه شوم . د افغان تاجکو محبوب رهبر چې ما ورسره اوږدې کاري اړيکې درلودې په يوه ځان مرګي بريد کې چې د دوی په قرارګاه پنجشېر کې شوی و، خپل ژوند له لاسه ورکړی و. زما لپاره د دې نه نوره ناوړه خبر داوو چې د مسعود جګپوړی سياسي مشاور هم سخت ټپي شوی واو شونې وه چې هغه هم خپل ژوند له لاسه ورکړی وای.
زه او مسعود خليلي دواړه مسلکي همکاران او نږدې ملګري وو. د هغه د حالت د خبر په اورېدلو سره خپه او ځان مې بې مرستې احساس کړ.
وژونکي دوه عرب ژورنالستان وو او په کومه اسلامي ټولنه (تر اوسه نامالومه: ليکوال) چې مرکز يې په اروپا کې و، اړه لرله. دا ډېر ناوړه خبر و او عربي نړۍ سمدستي د اسامه او د هغه د القاعده شبکې د شونې ښکېلتيا لپاره خپله زاويه د هغوی په لورې وروګرځوله. بن لادن د طالبانو د رهبر ملا عمر له خوا کوربه اود هغه سره په افغانستان کې پټ و. د امريکې دولت ډېره هڅه کوله چې په طالبانو فشار راوړي څو اسامه له افغانستان څخه وشړي. طالبان د ګوتوپه شمېر افغان مذهبي شاګردانو څخه چې په شمالي پاکستان کې په ۱۹۹۴ کې د مذهبي سخت دريځه مدرسو څخه په يو داسې ځواک واوښتل چې نن ورځ يې د افغانستان د څلورو څخه درې برخې په واک کې درلود. يوازېنی جدي مخالف نظامي ځواک د طالبانو په وړاندې د احمدشاه مسعود او د هغه شمالي ټلواله وه چې يوازې غرنی او شمال ختيځه افغانستان يې تر والکې لاندې و.
د شمالي نازکه او په تار تړلې ټلواله چې د سيمه ييزه جنګسالارانو څخه جوړه او يوازې د مسعود په شتوالي کې سره يوځای ول. د مسعود په مړينې سره نوره هم په لړزه شوله. د اسامه په لاس د ملا عمر ترټولو لوی او وروستني

دښمن مسعود وژل به د ملا عمر په وړاندې د اسامه محبوبیت نور هم زیات کړي.

په لانګلي ویرجینیا کې خپل دفتر ته راورسېدم . د پخوانۍ قرارګاه د ودانۍ او د موټرو له تم ځای څخه چپ د دروازې څخه یوازې پنځوس ګزه شاته وه، تېر شوم. پخوانی تمځای په دفتر کې د لوړ رتبه مامورینو لکه مرستیال او د سویلي اسیا مدیر مسول لپاره ساتل شوی و. زه اوس د یوې کوچنۍ کمزورې ډلې مامورینو له ډلې څخه وم نو په دې اساس مې باید خپل موټر په پخواني لوېديځ تمځای کې درولی وای او دهغه وروسته مې هروخت لس دقیقي تر دفتره پلی تګ کړای وای. کومه لویه ستونزه نه وه خو زما د ورځني او پخواني مهالوېش د بدلېدا یوه نښه وه. زه اوس د ودانۍپه پرتلیز ډول هوسا برخه کې وم.

که نور نه و لږترلږه خپلو انډیوالانو سره نږدې وم. د اداري کارونو په پای ته رسولو سره به دفتر ته د راتګ دپاره هره ورځ نه اړ کېدلم. نن سهار دفتر ته د دې دپاره ولاړم چې د خلیلي د روغتیا او شمالي ټلوالې ته د مسعود د مړینې وروسته د جدي او درانده ټکان په کچه ځان خبر کړم. له هغې نه وروسته مې خپل عادت چې په خوندي کمپیوټروکې د برېښنا لیک او د ورځیني کار کتل وو،دوام ورکاوه.

بیابه مې د لومړۍ فرقې د ریس دفتر مخ ته کافي(قهوه) څښله. دلته څلور یا پنځه کسان ولاړ ول . دغه صحنه ډېره عجیبه ښکارېدله ځکه چې سهار وخت د بوختیا وخت وي او نن سهار جیم هم (نوم)[1] هم شتون نه درلود. زموږ دفتر په بهر کې خلاص وي په داسې وخت کې چې واشنګټن دلته په خوب ویده وي. (لیکوال دلته د وخت تو پیر یادوي. ژباړن) نو ددې لپاره کله به چې په سهار کې دفتر ته راغلو نو د ساحې(بهر)څخه به د لیکونو دروند بار شتون درلود. هغه باید تنظیم او ځوابونه ورکړل شوي وای. زه هم ددغه ګروپ سره یو ځای شوم . د ټلویزیون د ښېښې په لیدو سره هک پک او خوله خلاصه پاتې شوم.

لومړۍ د نړېوالې سوداګریزه ودانۍ د ژوبل شوي لوړې نه لوګی راپورته شو. د پاک او شنه اسمان په لوړې په غوټه ږغوټه پورته شو. زما ترڅنګ ددغه کسانو د ګروپ په مینځ کې هم حیرانتیا وه. دوی به ټلویزیون ته کتل اوپه ورته وخت کې به په خپل منځ کې هم غږېدل. یوه کوچنۍ الوتکه راغله او دغه ودانۍ یې ووهله. پوښتنې راته پیدا شوې چې ایا دا د هوایي لیکې سوداګریزه الوتکه وه؟ څنګه دا پېښه وشوه؟ ودانۍ ته څومره زیان ورسېد؟ ماته هغه بې دوه پنځوس ډوله الوتکه رایاده شوه چې په ۱۹۹۴ کې د دوړو ډک سهار له امله د دولت د

[1] لیکوال د استخباراتي مامورینو د هویت د خوندي ساتلو لپاره د هغوی نومونو یوازې سرټکي او نیم لیکلي دي. ژباړن

جګپوړو مامورینو له ودانۍ سره وجنګېدله. که څه هم دغې ودانۍ تر ډېره زیانمنه شوه خو بیا هم د چاودنې سره ودانۍ مقاومت وکړ. له شک پرته نړېوال سوداګریز مرکز هم په مساوي توګه ټینګ جوړ شوی و. یو کس د دغه ډلې څخه وویل چې په ۱۹۹۵ کال کې دنړیوال سوداګریز مرکز په لاندېنۍ برخه کې یو موټر چې د چاودېدونکو موادو څخه ډک و وچاودېد او ودانۍ په پوره ډول مقاومت وکړ. ټلویزیون ته په کتلو بوخت و او دوهمې الوتکې دوهمه ودانۍ سوری کړه. دغه صحنې ټول ولاړ کسان ولړزول او موږ هم په دې پوه شوو چې داکومه احتمالي پېښه نه بلکه یو منظم پلان و.

سمدستي د ترهګرۍ ضد له ریاست څخه پیغام راغی چې لږ ترلږه شپږ سوداګریزې الوتکې تښتول شوي دي او د نورو بریدونو شونتیا هم شته، ټلویزیون ته ولاړ کسان بدلېدل رابدلېدل او ټول سرګردان او لړزانده ول. موږ هم د ملیونونو امریکایانو په څېر ټلویزیون ته په حیرانتیا سره کتل.

زه د چاودنې څخه سمدستي وروسته د هغې په سختوالي پوهېدم ولې په دې هیڅ باوري نه وم چې دا ډول یو کار دې زموږ تر سترګو تېریږي. سکرترې مې د مېز په سر غوړې راپورته کړه او په دقت سره ټلیفون ته غوږ شوه. ما هم د ځان سره خاموشي غوره کړه چې سکرترې سترګې راپورته کړې او ویې ویل چې د پنټاګون سره همدا اوس یوه الوتکه وجنګېده او د ودانۍ ۳۹۵مه برخه یې ووهله. دې خبرې بېواکه کړم او ها خوا دېخوا ګرځېدم ځکه چې په پنټاګون کې زما زوی کرستوفر مامور و. پوښتنې مې په سر کې ګرځېدلې چې ایا هغه به ټپي وي؟ که په کې مړشوی به وي ؟زه نه پوهېدم چې د ودانۍ په کومه برخه کې کار کوي خو دهغه د خوندیتوب دوعا مې کوله. ماخپلې لور جینې چې د دولت لخوا په ختیځه اسیا کې د بېرو غړې وه. ټلیفون وکړ. جیني په ټلیفون خبرې پیل کړې او غږ یې د احساساتو له امله بند بند کېده. هغې هم دغه خبر اورېدلی و او سمدستي یې کریس ته د ټلیفون کولو کوښښ کړی و. خو د ټلیفون د شبکې د بوختیا له امله اړیکه ټینګه نه شوله. ما د جیني څخه د کېټ چې زما بله لور وه. پوښتنه وکړه. جیني وویل چې هغې ته یې ټلیفون کړی و او په روزلین ویرجینیا کې وه،هغه خوندي وه.

کېټ ورته ویلي ول چې تر هغې به په دفتر کې پاتې شي څو چې حالات عادي شوي نه وي. ما جیني سره په مات غږ خدای په اماني وکړه. ماته دا ښکاره شوه چې ددولت ریاست ودانۍ به په دا ډول حالت کې ترټولو جذابه نقطه وي. جیم د خپل دفتر څخه راووت ا و د ټولو د پاملرنې دپاره یې د تیارسۍ امر ورکړ. جیم ته د اووم منزل لخوا امر ورکړ شوی و. (په اووم منزل کې لوړپوړي چارواکي اوسېدل) چې د سي ای اې دغه ودانۍ باید خالي شي څو لوړپوړي

چاروا‌کي په کې خوندي شي.

رېوټونو دا هم وویل چې لږ ترلږه یوه بله الوتکه په هوا کې وه او موخه یې واشنټن و. په پنټاګون باندې برید د دې ثبوت و چې په ډې سي [1]کې چاروا‌کې ددوی راتلونکې هدف و او باید ټول د ودانۍ څخه په بیړه وایستل شي. ما هم په زینو کې منډې وهلې او همکاران مې پرېښودل ځکه چې خطر و. نوموړې صحنه راته ویره وونکې او د حیرانتیا وړ برېښېده. زما دپاره د سي ای اې سره د کار کولو بېلا بېلې تجربې وې.

نور کله به چې بحران یا اله ګوله وه نو کار به دوه برابره کېده ولې دا ځل بحران توپیر کاوه او زیاته برخه یې له بحران څخه منډې وهل وو. کله چې له دروازې څخه بهر ووتم ومې لیدل چې په زرګونو مامورین په یو ځای وتلي او دسړک په سر یې ګڼه ګوڼه جوړه کړې وه. زه په غوسه خو په ورته وخت ډار شوی هم وم.

ما د خپلې مېرمنې او د لور دخوندیتوب په خاطر اندېښنه درلوده. له خپل لور کېټ سره مې د اړیکو نیولو کوښښ وکړ خو د ټلیفون لیکې ډېرې بوختې وې. ما هیله لرله چې هغه د بحران ترپای ته رسیدو پورې په کار ځای کې پاتې شي. ما د خپلې مېرمنې (بیټسي) سره اړیکه ونیوه. بیټسي په بېروت،لبنان کې د دولت د ریاست لخوا په لنډ مهاله توګه په دنده ګومارل شوې وه. هغه په دې پوهېده چې دغسې یوه پېښه به د امرېکې څخه بهر څومره اغېز ولري.

بېروت په تېرو څو کالونو کې ډېر خوندي شوی و خو په داسې وخت کې دبیټسي په اړه فکر کول اړین نه و. وروسته ماښام ښه خبر دا و چې کریس په هغه شپه تر ناوخته په دفتر کې کار کړی و او په دې اساس سهار دندې ته ناوخته تللی و. [1]

کله چې پیټاګون سره الوتکه وجنګېدله. کریس یوازې مېټرو سټېشن ته رسېدلی و او کوځې سمدستي د پېښې څخه وروسته بندې شوې وې. هغه خلک چې په کوڅو کې بند و،خوندي او د لنډ وخت څخه وروسته ټول له ساحې څخه بهر شول. جینی او کېټ دواړه کورته په لړزه خوخوندي راغلي. لږ وروسته بېټسي ماته ټلیفون وکړاو ویې ویل چې تر هغه ټول بهرنۍ الوتنې د امریکې خاورې ته د یوروپ څخه د څو ورځو دپاره وځنډیدل ، بېټیسي د څو ورځو دپاره په بېروت کې بنده پاتې وه.

---

[1] لیکوال د ډي سي څخه منظور واشنټن ډي سي دی. ژباړن

[1] د دغسې بهران په مهال د لوړو چاروا‌کو ژامن او د کورنۍ غړي یا په رخصتۍ وي او یا دفتر ته ناوخته ځي!! دا په خپله دا څرګندونه کوي چې نوموړې پېښه په لوړه او محرمه توګه د امریکې د څارګره ادارې له خوا طرح شوې وه.

د حالاتو تر عادي کېدلو پورې هغه خوندي وه. زما راتلونکې ځو ورځې له حیرانتیا ډکې وې. که څه هم چې زه د کورنۍ د غړو په اندېښنه کې نه وم خو د پېښې په اړه د مطبوعـاتو دوام دار غږېدا نوموړې غمیـزه را په یـاده وله. په راتلونکې کې زه په دې وتوانیدم چې خپل دفتر ته راوګرځم او په حیرانتیا سره مې د تېرو ورځو نیمګړې اداري چارې د سپټمبر په دېارلسمه پای ته ورسولې.

درسمي دندې د نه درلودلو او په دفتر کې د سرګردانۍ د له منځه وړلو دپاره مې د څو ورځو د رخصتي غوښتنه وکړه. د خپلې راتلونکې په اړه مې د فکر کولو دپاره وخت پیداکړ. زه سرګردان او د نورو هېوادونو په څېر په غوسه وم چې د هغه خلکو سره چې دغه بې ګناه خلک یې په ډېره ناوړه توګه وویرول،څه باید ترسره شي. تېره شپه د بېټسي د راتګ سره مې پاملرنه بېرته خپل عادي ژوند ته واوښته. د شپې ناوخته کورته ټلیفون راغی او زما څخه یې غوښتنه وکړه چې د کوفربلاک چې د ترهګرۍ په وړاندې دفتر د مشر سره د خپل کار په دفتر کې سهار وختي وګورم. زه هیڅ نه پوهېدم چې کوفر به زما څخه څه غواړي. د موټر د چلولو په وخت کې مې هم په دې چې په غونډه کې په کومه موضوع غږېږم، فکر کاوه.

کوفر جسماً غټ . شېږ فوټه لوړوالی یې درلود. هروخت به یې پاکې او ځلېدونکې جامې اغوستلې. هغه د تاوده هرکلي څخه وروسته د غونډو کوچني مېز ته ور وبللم.

هغه نیغ په نیغه په موضوع باندې خبرې پیل کړې ویې ویل، ګیري ته باید د سي ای اي د افسرانو کوچنی ګروپ[1] افغانستان ته وېسي . هلته باید د شمالي ټلوالې سره په اړیکه او هغوی دې ته وهڅوې چې د سي ای اې او د امریکې پوځ سره په داسې حال کې چې د اسامه په لټه پسې ځي، په پوره ډول همکاري وکړي. په ورته وخت کې ددوی پوځي ځواک ارزیابې کړې او لازمه سلا او مشوره راکړې چې شمالي ټلواله په پوره ډول سره مجهزه کړو څو طالبان له منځه یوسي اوموږ ته د اسامه بن لادن د نیولو لاره خلاصه کړي. کوفر لږ په چوکۍ کې را وړاندې شو او ویې ویل: ګیري دا یو له خطره ډک ماموریت ولې ډېر اړین دی . ته په رښتیا هم د ګروپ درهبري دپاره ترټولو ماهر افسر یې. ماپرته له ځنډه ځواب ورکړ چې هو بلې زه باید دا ډله رهبري کړم.

ددی دپاره چې تاسو له ماڅخه غوښتنه وکړه. زه ویاړم او له تاسې څخه مننوی یم. کوفر له ماڅخه مننه وکړه او ویې ویل چې هرڅه ،پیسې،کسان او نور تجهیزات چې ګروپ ته پکاریږي هغه به د ګروپ په چوپړ کې ورکړل شي.

---

[1] SAD ساډ: Special Activites Divison یې پوره نوم دی او ما یې مخفف (ساډ) لیکلی دی. ژباړن

هغه له ماځخه وغوښتل چې له راډ سره چې د ځانګړوعملیاتود فرقې (ساډ) مشر و، ووینم او د هغه نظر او وړاندیز واخلم.

ما هم لا له وړاندې دا فکر کړی و.کوفر له دفتر څخه راډ ته ټلیفون وکړ او خبر یې راکړ چې هغه زما د لیدو په انتظاردی. راډ زماسره د خپل دفتر مخې ته هرکلی وکړ. راډ د سمندري ځواک پخوانی غړی و او په هغه ډول یې ځان ساتلی و. د سر ویښتان یې په همغه ډول لنډ ساتلي وو. زه ډاډه وم چې هغه تر اوسه دومره رخصتی نه وې کړې. راډ هم د کوفر خبرې تکرار کړې او ویې ویل چې هر څه چې د ګروپ اړتیا وي هغه به د ګروپ په چوپړ کې ورکړل شی. هغه یوه غوښتنه درلوده او هغه داچې د هغه یوه مامور ته باید په ګروپ کې دمرستیال په توګه ځای ورکړم . ریک یې خوښ کړ. ما سمدستي هوکړه وکړه ځکه چې ریک مې څو ځلې لیدلی و . هغه په لوړو څارګره مالوماتو یا(اس ای اس) کې تر ټولو ځوان او ښه شهرت لرونکی افسر و.

ریک ته موږ انتظار و او په ورته وخت کې راډ ددغه عملیاتو په اړه خپلې اندېښنې څرګندې کړې. هغه دا وویل چې افغانستان ته د سي ای اې د دغه ګروپ د لیږلو پرېکړه د سي ای اې د مشر (جورج ټینیټ) په مشری وشوه او څو چې راډ د ګیري(لیکوال) سره کتلي نه وي تر هغې به مېوري چې د سي ای اې پخوانی تخنیکي افسر و د ډلې د تنظیم کولو دنده په غاړه ولري.

راډ خپلو خبرو ته دوام ورکړ اوویې ویل چې مېوري د بوربوکی په ډول کار کوي خو څومره چې کار کوي هغومره تخریب هم کوي. ما مېوري د خلیج او د ریاض دجګړې له وخته پېژانده. هغه ماسره په نظامي مسلکې پروګرام کې چې په عراق – کویټ(عراق اشغال کویټ. لېکوال) کې د څارګرو مالوماتو غني کول و، کارکاوه.

هغه په ښکاره ډول د بېوروکراتیک اداري له امرونوڅخه سرغړونه کوله او هغه افسرانوته چې یې کارکاوه احترام نه درلود. هغه د خلیج د جګړې له پای ته رسېدلو وروسته سملاسي له دندې څخه استفا وکړه او بیا وروسته یې د تروریزم ضد ریاست کې د قراردادي په تو ګه دنده پیل کړه. پوهېدم چې زه به له میوري سره په اغېزمن ډول کاروکولی شم او داچې ده په سمندري ځواک په (سیل)[1] کې کار کړی و. زموږ د ګروپ لپاره په بشپړه توګه ښه کاندید و. ریک راورسېد او له هرکلي وروسته مو په دې چې چېرته مو سره لیدلي و. په لنډه توګه خبرې وکړې. . له هغه وروسته مې زما د ګروپ د معاون په توګه مبارکي ورکړه. زموږ کاري تجربې یو د بل سره برابرې شوې. زه په افغان چارو کې د ۱۹۷۸ کال را په

(SEAL) [1]: یو ډول ځانګړی سمندري ځواك دی چې د امریکې په پوځ کې خورا ارزښت او احترام لري.ژباړن

دېخوارا ښکېل شوی وم او د ۱۹۸۸ تر ۱۹۹۰ پورې مې شخصا د شمالي ټلوالې سره ناسته او ولاړه کړېده. ریک د ځانګړو ځواکونود اې (اول) ګروپ پخوانی غړی و او په کلونو ساحوي تجربه یې درلوده . ما هم د داسې همکار د پیداکولو له امله خوښي څرګنده کړه.

له راډ سره د خدای په امانی وروسته میوري سره د کتلو لپاره ولاړوو څو د هغه د هڅو د پرمختګ څرنګوالی مالوم کړو. زه او ریک د میوري سره څو ساعته کېناستو هغه په ربښتیا هم د فعالیتونو مور وه. هغه د دفترونو سره اړیکه نیولې وه څو هغه تجهیزات چمتو کړي چې په افغانستان کې ورته اړتیاوه.

هغه د ساړ یا د ځانګړو فعالیتونو له فرقې سره اړیکه نیولې وه څو مرکزي اسیا ته د ګروپ د لېږلو چمتووالی ونیسي. هلته مو افغانستان ته د ننوتو څخه وړاندې قرارګاه جوړوله څو سفر ته په پوره ډول چمتو شو. میوري یو ځوان د سي ټي سي څخه (ترورېزم ضد مرکز) زموږ ټیم ته وګوماره. ما او ریک د میوري ددغه پریکړې له امله هیڅ ونه ویل خو هغه کارونه چې میوري کول موږ له ځان سره یاداښت کول. میوري ښه پیل کړی و خو د یو کس لپاره ډېر کار مالومېده. ددې دپاره ما یو څو فکټورونه لرل چې موږ باید په نظر کې نیولي وای .هغه دا چې ګروپ باید کوچنی وي . شپږ یا اووه کسه وي. په دې کې باید یو د مخابرې ماهر وي او یو یې باید ډاکټر وي. ما له ځان سره د مخکې نه پرېکړه کړې وه چې د میوري لخوا ګومارل شوی افسر باید زموږ د ټیم سره یو ځای نه شي یو خو دا چې د سي ای اې سره یې پخوانی کاري تجربه هیڅ نه درلوده او بل داچې د سیمې (افغانستان) سره هیڅ بلد نه و. موږ ټول ټال پنځه کسان شوو. ما وویل چې ددغه دندې لپاره چې د عملیاتو افسر و، یو تجربه کار کس پېژنم او ریک هم د ځانګړو فعالیتونو افسر د پاتې پاتې دندې لپاره خپل کس راوپیژاند.

زه نور دې ته متوجه شوم چې ګروپ تیاردی او ښایي په افغانستان کې په میاشتو وځنډېږو نو ګروپ مو باید په لوجیستیکې موادو سمبال شي. په یو ځل چې هر څومره مواد چې په خوندي ډول لېږلی شو باید ویې لېږدو. ما ریک ته وویل چې موږ باید د هغو مهموادارويي او لوژستیکې موضوعاتو له امله نن شپه سره جلا شو څو په هغه ستونزو باندې چې موږ ورسره په ساحه کې مخامخ کېږو. فکر وکړو راتلونکې سهار باید سره راغونډشو څوګروپ اوارین توکي سره یو ځای کړو. ما یوازې په دې فکر کولی شو چې ماته اوس فرصت راکړل شو څود اسامه او د القاعدې په وړاندې ربښتینی غاښ ماتوونکی ځواب ورکړم.

د غبرګو ودانیو رالوېدل. پنتاګون په لمبو کې او د هغه تور لوګی او په پینسلیوانیا کې د لمبو ډک تور غار زما په مغزو کې بلکل ځای موندلی و. زه په دې پوهېدم چې د اسامه بن لادن د نیولو یوازېنی لار په هغه پسې افغانستان

ته تلل او د هغه د ښکار دپاره اغېزمنه لار د طالبانو دځواکونو چې د هغه ساتنه يې کوله. له منځه وړل و . د دغه کار دپاره يواځنۍ اغېزمنه لار د هغه يو ځای شوي ځواک چې د طالبانو له منځه وړلو توان يې درلود د مسعود شمالي ټلواله او د هغې څخه ګټې اخيستل و.

زه په دې وېرېدم چې د مسعود له مړينې وروسته به د دوی ټلواله دومره لړزېدلي او بې موراله وي چې د جګړې کولو توان به ونه لري. د هغه څه نه چې زه اوس ډارېدم هغه د دغه دندې څخه د بېتسي خبرول و. زما ميرمن ددولت د رياست افسره وه.د تېرو دولس کلونود شريک ژوند په بهير کې مو يو شمېر له خطره ډکې دندې يو ځای سره ترسره کړي وې. په داسې حال کې چې عراقي سکډ ميزايېل به زموږ په سرونوپه هوا کې چاودېدل. د خليج جګړې په بهير کې موږ په يو ځای و.

په رښتيا هم د عراقي بيالوژيکې،کېمياوي او د غټو سکډ ميزايېلو دنږدې چاودنو د عراقي تروريستي پېښو خطر په ځان اخيستی و. موږ دواړو له هغې وروسته درې نيم کاله په اسلام اباد کې دنده تر سره کړه بيا مو هم د تل پاتې تروريستي پېښو خطر احساساوو. هغه په افريقا کې د امريکې د سفارتونو په ضد د چاودنو له امله له اسلام اباد څخه د احتمالي پېښود ګواښ له امله په بېړني توګه وايستل شوه،بيا هم راتلونکې پسرلي ته د دندې په پای کې اسلام اباد ته را وګرځېدله. خطرناک ځايونه او له خطره ډکې دندې د بېتسي دپاره عادي وې. د کلونو په تېرېدا هغه هم په حقيقت پوه شوه چې زما د سي ای اې دندې زه د هغه افسرانو څخه ډېر په خطر کې اچولی يم کوم چې په بهر کې د نورو دولتي اورګانونو لخوا په دنده ګومارل کېږي. خو زما دپاره دغه د ټولو څخه زياته خطرناکه دنده وه. ما د افغانستان په حالاتو او شمالي ټلوالې ته د احمد شاه مسعود له مړينې څخه وروسته د ټکان د رسېدا په اړوند بحثونه کړي وو. زه اړ وم چې ورته مې ويلي وای چې که چېري حالات خراب شي، او شمالي ټلواله ماته شي موږ به سره جلا او د ژور خطر سره د مخامخېدا شونتيا وه . په دې مې دروغ نه شول ويلای چې موږ ته بيا به په هغه وخت کې د مرستې او ژغورنې کومه هيله نه وي. زه پوهېدم چې بېتسي به په دې غوسه وي چې د دغه دندي مسوليت مې د خپل کاري ژوند په دومره ناوخته پړاو کې په غاړه واخيست. زموږ ژوند هم ډېر په نرمه لار روان و. موږ د تقاعد د اخيستلو او د امريکا د دولت له چاوکاڼ څخه بهر د کار کړلو پلان درلود او اوس دغه ټولې هيلې په خطر کې وې. موږ په هغه شپه تر ډېره ناوخته په دغه ماموريت وغږېدو او په ورته وخت کې هغې لکه څنګه چې ما باورد درلود. غوسه وه او اوښکې هم بهولې. بېتسي په پای کې په دې پوه شوه چې ما دغه دندې ته ملا تړلي ده . کله چې هغه د

خوب ځای ته تلله ویې ویل،زه پوهېږم چې ته خامخا ددغه دندې د ترسره کولو دپاره ځې خو زه په دې نه پوهېږم چې ته ولې غواړې خپل ځان له خطر سره مخامخ کړې، زه به کوښښ وکړم څو ستا د دندې ملا تړ وکړم خو په ورته وخت کې نه شم کولی خوشاله ښکاره شم. زه په دې پوهېدم چې هغې د دې توان نه درلوده چې له ماسره دغه خطر شریک کړي . د هغې دپاره دغه پرېکړه تر هر څه سخته وه.

## دویم څپرکی

بل سهار غونډه په ارام سره تېره شوله. ما تر ټولو لومړی په خبرو پیل وکړ. د دي دپاره چې میوري په اصولو پوه شوی وي، زه د ګروپ مشر وم او ریک مې مرستیال و.

زه او ریک به د ګروپ د جوړښت او د تنظیم پرېکړې کوو. د سپټمبر دیارلسمه نېټه وه او موږ باید د امریکې څخه په یوویشتمه نېټه سفر پیل کړای وای په دې اساس د سفر دپاره د تیاري نیولو پوره شپږ ورځې مو لرلې. دغه شپږ ورځې دومره پوره وخت هم نه و خو بیاهم کولی مو شول چې کار پیل کړو او اووم منزل(لوړ پوړي چارواکي) په دې خوښ کړو. د ریک اړیکه د ساډ یا د ځانګړو فعالیتونو فرقي) سره په دې بهتره وه چې هغه هلته پخوا لوړپوړي چارواکی و او د ساډ فرقي د توان په څرنګوالي او دقیقا باید له چاسره په اړیکه کې شي. زه تر هغه سهار نه وم خبر چې ریک ددوو میاشتو نه زیاتې مودې دپاره د ژبو زده کړو کورس نیولی و اوهغه هم دهېواد څخه بهر د دندو لپاره.

د ساړ یا د ځانګړو فعالیتونو فرقه کې د ریک د ددندي په و خت هغه د ځانګړو عملیاتو په څانګه کې ډېر ملګري درلودل او هغه ددغه ملګرتیا څخه په ګټې اخیستلو سره په دې ډاډه شوی و چې د اړتیا په وخت کې د هغه قطعاتو سره چې په افغانستان کې ښايي کاروکړو. د مرستي غوښتنه وکړو.
دریک دغه نظر مې چې باید دامریکې د پوځ د ځانګړو عملیاتو څخه یو نماینده خپل ګروپ ته د یو غړي په توګه راوبالو، ومانه. میوري د لوژستیک مسولیت په غاړه درلود.
وسلې لکه توپانچې، توپک او مهمات، او د سفر دپاره تیار جوړ شوي خواړه، داوبو د تصفیه کولو توکي، د سفر دپاره کوچنی لاپ ټاپ کمپوټر،دهغه دپاره نور تجهیزات او داسې نورو توکو ته مو اړتیا درلوده. موږ په قرارګاه د یو کوچني لنډ مهاله دفتر ته هم اړتیا درلود څومو د خپل ګروپ دلېږلودپاره نېغه اړیکه درلودلې وای. ریک دپاپي سره تماس نیولی و. ریک له پاپي سره چې زموږ سره یې د اړیکو نیولو د افسر په توګه کار کاوه په بوسنیا کې یو ځای کار کړای و.
پاپي ډېر تکړه ساحوي ارتباتي افسر[1] و او اوسنۍ دنده یې دلته په قرارګاه کې وه.ریک تېر ماښام له پاپي څخه غوښتنه کړې وه. پاپي پرته د کوچنۍ ساه بندي څخه ومنله او اووم منزل(لوړپوړي چارواکو دفتر) هم په دې اړه کومه ستونزه نه درلوده. د پاپي په رارسېدا سره به دله نوره د ارتباتي ستونزو څخه په امن کې وي.
ریک وویل چې د ډاکټر څخه باید غوښتنه وشي څو زموږ سره په ګروپ کې د ساحوي ډاکټر په توګه کار وکړي. ما هم پرته له کوم نظر هوکړه وکړه ځکه چې ډاکټر زما د لاس لاندې په ریاض کې د مېوري سره په یوځای کار کړی و او هغه د ځانګړو ځواکونو سره پخوانۍ پوځي ډاکټر و. په ویتنام او نورو خطرناکه ځایونو کې یې ښه کاري تجربه درلوده. د تقاعد وروسته هغه د سي ای اې د طبې خدماتو له څانګي سره یو ځاي شو. ډاکټر تر ټولو ننګوونکي او له خطره ډکه چاپېریال کې کار کړی دی. سربېره پردې یې بیا هم وخت پیداکړی څو د مرستیاله ډاکټر بری لیک ترلاسه کړي. او څو ډېر ګټور نظامي تاریخ کتابونه یې لیکلي دي.
زه او ریک په دې پوهېدلو چې د ډاکټر څخه غوښتنه وشي هغه به بې له کوم فکر څخه دغه دنده ومني. سره له دي چې یوازې څو میاشتي وړاندي د تروریزم د مبارزي د مرکز لخوا د امریکې څخه بهر هم په دنده ګومارل شوی و.
ریک تېره شپه خبر ترلاسه کړ چې ډاکټر په ګاندړ، نیو فاونډلر کې بند پاتې و. هغه د نړیواله الوتکو د هغه مساپرینو له ډلې څخه و چې د سپټمبر د پېښې

[1] ارتباطي افسر څخه یې منظور د اړیکو نیولو ماهر دی چې د تخنیکي سامان الاتو سره بلدتیا ولري.ژباړن

وروسته اروپا ته ګرځول شوې وې. هغه د خپلې دندې څخه کورته راروان و. دغه پېښې هغه بحث چې ډاکټر باید له کوم ځایه د ګروپ سره یو ځای شي، منځ ته راوړ.
د الوتکو هغه ټاکلې اسانتیاوې چې مورهلته لرلې، ددي سبب ګرځېده چې د ډاکټر یو ځای کېدل ښایي څو ورځي ونیسي.
د ځانګړوفعالیتونو فرقي ریک ته خبر ورکړ چې یو روسي جوړه چورلکه به چې اوس مهال په مرکزي اسیا کې زمور انتظار کوي. افغانستان ته زمور د لېږلو اصلي وسېله وي. ددي لپاره چې چورلکه په پرتلیز هوسا ځای کې لاسته راوړو هڅې رواني وي. مور د خپل خونديتوب لپاره چورلکه او توکي ازمویلې اود شمالي ټلوالې له نماینده سره مو وروستنۍ دقیقه اړیکه ټینګه وای څو زمور د چورلکې هوایي کربښه او د سفر چمتووالی د خپلو افغان کوربانو او سیمه ایزه مهمو حکومتونو لخوا تصدیق شوي وای.
د ازبکستان تاشکند او یا د تاجکستان دوشنبه تر ټولوشوني ځایونه ول چې مور به دهغه څخه د افغان خاوري ته ننوتلي وای.
ریک وویل چې ډاکټر باید تاشکند ته ولاړ شي او هلته له ګروپ سره یو ځای شي. تاشکند تر ټولوښه انتخاب ښکارېده ځکه چې د امریکې دولت ورسره په پرتلیز ډول ښې اړیکې دردلودلې. ددي اړیکو پراختیا د ازبک حکومت د اندېښني سبب ګرځېده. که چېري تاشکند زمور وروستني اډه نه وای انتخاب بیا به هم ډاکټر په تاشکند کې د ګروپ سره یو ځای کېدل په پرتلیز ډول اسان وای. ډاکټر زمور په ډله کې دوهم زور سړی و. زه نهه پنځوس او ډاکټر اووه پنځوس کلن و. کریس د اوپراسیون د افسر په توګه زما په نظر کې و. کریس که په ساده توګه ووایم ترټولو وړ اوپراتیفي افسر و او ما سره یې ډېر وخت کار کړای و.
په ۲۰۰۱ کې یې د طالبانو او د ترهګرو په ښښه کولو له دفتر سره په پاکستان کې خپله څلورکلنه موده سر ته ورسوله. هغه د سیمي سره بلدتیا درلودله. هغه افغانان پېژندل او په روانه توګه یې په پارسي ژبه خبرې کولې. (هغه ژبه چې د افغانستان په شمال کې سیمه ییز خلک وربانـدي غږېږي. لیکوال) د پاکستان په زیاتو سیمو کې پلی ګرځېدلی و.
ګروپ سره یو ځای کېدل به دده یوه قرباني په دې وي چې دی لا له وړاندې د خپلې کورنۍ څخه د یو کال دپاره جلا وتني کړې وه. په پای کې رېک د ګروپ د اووم کس لپاره سټان راوپیژاند.
سټان د ځانګړو فعالیتونو یواځنی انتخاب و. هغه د سمندري ځواک پځوانی غړی او د لویو عملیاتو او د سي ای اې د اوپراسیون د څانګي څخه په پوره ډول روزل شوی و. د ګروپ سره د سټان یوځای کېدلو له امله به زمور څارګره برخه

نوره هم څواکمنه شي. زموږ ګروپ يواځې د ساډ(ځانګړوفعاليتونو فرقه) نماينده په يو ځای کېدو سره د سفر دپاره چمتو و.

يو وروستنی کار پاتي و، او هغه دګروپ دپاره مناسب نوم و. زه په دې نظر وم چې ګروپ به د شمالي افغانستان د ارتباطي ګروپ؛ يا(NALT)[1] نوم ورکړو . دغه نوم د شمال ختيځه فرقې لخوا شمالي افغانستان ته پخوانيو ليږل شويو ګروپونو ته ورکړل شوی و. که څه هم زموږ د ګروپ دپاره په شفري نوم جابريکر يا ژامي ماتوونکی وي. دا يو کوچني خو په سمبوليکه توګه مهم امتياز و.

هغه مرغی يا چورلکه چې په هغې باندې به موږ په افغانستان کې عمليات کول د شمال ختيځې فرقي امانت و خو د ترهګرۍ ضد مرکز د هغه ستونزې لپاره چې موږ افغانستان ته سفر کاوه، خپل ماموريت باله. په تېرو وختونو کې چې کوم ګروپونه افغانستان ته ليږل شوي و، د شمال ختيځې فرقې او د ترورېزم په وړاندې مرکز لخوا د نظرتوپير شتون درلود خو ما غوښتل چې د فرقې دننه کورنۍ سيالۍ په ټيټه کچه کې وساتل شي.

پاپي په هغه سهار ناوخته راغی. ما او ريک په پرمختګ او د ګروپ په حالت پوه کړ. پاپي د اړيکو نيولو د توکو په لست جوړولو بوخت شو ويې ويل چې هغه به تر ماسپښين پوري زيات کار پای ته ورسوي ما ورته وويل چې د ستونزې سره د مخ کېدلو په مهال له ماسره سمدستي اړيکه ونيسي او که زه يې په حل کولو ونه توانيدم نو زه به له کوفر بلاک سره د خندونو د له منځه وړلو لپاره اړيکه ونيسم. ما هم د وخت په تېرېدا سره پاپي خوښېده. پاپي خپل ځان ته لوړ فکر نه کاوه او په کار کې هومره وړتيا درلودله چې نور ترې اغېزمن کېدل.

ستان هم ناوخت راغی هغه هم لېوالتيا درلوده. د ظاهري بڼې څخه ډېر ځوان ښکارېده او تقريبا د څلويښت يا د هغه څخه کم عمر ښکارېده.

هغه وړين زوړ شوي ته ورته جاکټ درلود. د څرمنې لستوڼې لرونکې بنين يې په ځان و. هغه وويل چې په روسي ژبه په روان ډول خبري کولی شي. ما فکر کاوه چې دهيڅ څخه ښه دی او په پنجشېر دره کې به ګټور ثابت نه شي خو ما ناسم فکر کړی و.

ريک د غرمې وروسته د ساډ يا د ځانګړو فعاليتونو فرقې د لوجستيک د مسول سره يو ځای راغی. د ساډ د لوجيستيک مسول موږ ته ډاډ راکړ چې دهغوی دکانفرانس يوه کوټه به زموږ د ګروپ دپاره خالي کېږي او په دې ترتيب موږ کولای شول چې لنډمهاله کارځای او په څنګ کې خوندي برښنايي اړيکه هم ولرو.

په شپاړسم سېپتمبر باندې دغه کوټه د ژامې ماتوونکي ګروپ جايداد

[1] (NALT) يانې د شمالي ټلوالې لپاره د سي ای اې ارتباطي ځانګړی ګروپ. ژباړن

وګرځېدله. ریک په هغه ماسپښین معجزې ته ورته کار وکړ. هغه د کوفر بلاک مېرمن زموږ دلنډ مهاله دفتر د مشرې په توګه په داسې وخت کې چې موږ د سفرلپاره تیاری نیوه،وټاکله.

مېرمن بلاک ډېره اغېزمنه، زیار کښه او د خپلې دندې توان لرونکې وه.

د تروریزم په وړاندې دمرکز له مشر سره د هغې پټې خو ډېرې نږدې اړیکې هغه مخالفت چې د نورو سره د مرستې د غوښتنې په وخت کې لرلی، له منځه یووړ. میوري د سي ټي سي (تروریزم ضد مرکز) له ریس سره د ګروپ د غړو دپاره د ساحې دپاره د جامو/ټوکر غوښتنه وکړه. میوري وویل چې هر غړی د کالو د رانیولو لپاره د دولس سوه ډالرو پورې لګښت کولی شي.

په پای کې موږ په دې هوکړه وکړه چې کریس او ډاکټر دپاره جامې او نور اړین توکي واخلو او ماموریت ته د تګ په وخت کې یې له ځان سره ولېږدوو. که څه هم موږ ددوی دپاره ددوی او د ساحې سره سم رنګونه نه و اخیستي خو په پرتلیزه توګه مو په توکو سمبال کړل.

د بهر دپاره د سامان خوښول څومره چې ساده ښکاري هومره ساده نه دي. موږ په دې نه پوهېدو چې زموږ د ژوند حالات به څنګه وي؟ د میلې په ډول په څپرو کې به وي او که د ختو څخه جوړ ې شوي کوټو کې به وي؟ ایا سیمه ییزه خواړه او پاکې اوبه به شتون ولري؟ او په دې ترتیب له څه ډول هوا سره به موږ مخامخ و. موږ په دې پوهېدو چې د پنجشېر په دره کې هوا توده نه ده او د میاشتو په بهیر کې باران هم نه و شوی. موږپه دې هم پوهېدو چې واوره هلته د اکتوبر میاشتي د نیمایي څخه پیلیږي. د غرونو په سر خو تردي لا وړاندي هم واوره توییږي .ایا په دره کې به د واورې سره مبارزې ته اړ شو؟ او ایا د ژمي بارانونه به هم وي؟ ځکه چې موږ ټولو د چورلکو په ذریعه افغانستان ته سفر کاوه. د توکو لیږدولو لپاره به ټاکلی ځای ولرو. اضاف تېل، جنراټورونه،وسله،د اړیکو نیولو توکو د لېږد له امله به شخصي توکو کې د کمښت راوستلو ته اړ کړي.

نوددې دپاره د جامو ګډ انتخاب، مناسب بوټان،د خوراک لپاره لوښي،د اوبو د چڼ کولو توکي، اړین تخنیکي توکي لکه چاقوګان اود قطب نامو وړل هم ډېر مهم ول.

د اړتیا په مهال د وروستۍ هڅې څخه د نوموړي سامان څخه یوازې نیمایي برخې په وړلو وتوانېږو، نو باید څه وکړو؟

څنګه به دا ټول توکي سره وویشو؟ دلته کوچنۍتیروتنه به په هغه سر کې ډېرې ناوړه پایلې ولري. ما او میوري په همغه شپه دواړو په نوموړې مغازه کې درې ساعته تېر کړل څو دا ټول توکي راونیسو د سودا په پای کې زه اومیوري

دواړه مشهور پیریدونکي ونومول شوو.

## د ریم خپرکی

د سپټمبر د اوولسمې پر سهار د ساډ یا د ځانګړو فعالیتونو د ځانګې له لوړپوړو مامورینو سره کېناستلو چې د لېږدونې د تیاری په اړه ورسره خبرې اترې وکړو. زموږ د ماموریت او راسره توکودځرنګوالي په پام کې نیولو سره چې موږبایدله ځان سره اخیستي وای زموږ د لیږدونې لپاره په ګډه د امریکې پوځي الوتکه او یوه کرایه شوې الوتکه په پام کې ونیول شوه. دلېږدولو دچارو پازوال مأمورچې زموږدعلمیاتودغه چارې یې سمبالولې وویل چې د سفردلومړي پړاولپاره به مو دامریکې دپوځ د سي پینځه ای ډوله الوتکه ترټولو ښه وي چې په عادي مهال ویش سیمې ته الوتنه کوي او زموږ ډله او توکي به په دلاوري[1] کې د دوور له پوځي هوایي ډګر څخه د جرمني تر فرانکفورته پورې ولیږدوي. له هغه ځایه موږباید دامریکې دپوځ ترځارلاندې نورې اسانتیاوې وکاروو. له همدغه ځایه موږ باید ایل ۱۰۰ چارټر الوتکه (د سي ۱۳۰ ملکې ډوله کارګو الوتکه) ونیسو چې دازبکستان ترتاشکند ه پورې په کې ولاړ شو.

له فرانکفورټ څخه ترازبکستانه زموږ د الوتنې وخت. د ازبک حکومت دهوایي کرښې دوخت پر ټاکلو او هوایي اجازې پورې تړلی و. په تاشکند کې زموږ د سي ای اې افسرانو ډېر ه هڅه کوله چې د ازبک حکومت هغه راپورته شوي بېوروکراتیک خنډونه هوار کړي چې ګڼې ازبک حکومت نه غواړي د هغوی هېواد دې دیوې اډې په توګه د سي ای اې د پرسونل له خوا افغانستان ته د ننوتلو لپاره وکاورل شي. که څه هم د امریکې حکومت د ازبکستان له حکومت سره ډېرې ښې اړیکې درلودلې خو دغه سیاسي حساسیت چې ددغه ماموریت دتر سره کولو لپاره دې دازبکستان خاوره وکارول شي باید حل شوي وای. دلته موږ د روسېې د حکومت مرستې ته چې پرازبک حکومت یې پیاوړې اغېزه درلوده. اړتیا درلوده. موږ ته ډاد راکړل شوچې که اړینه وګڼل شي نو ولسمشر بوش به له روسي مشر پوتین سره اړیکه ونیسي چې راودانګي.

موږ د چورلکې په اړه نور مالومات هم ترلاسه کړل. چورلکه په روسیې کې د درندو کارونو لپاره جوړه او د پوځیانو او پوځي توکو د وړنې راوړنې وړتیا یې درلوده او سي ای اې (د امریکې خارګره اداره) څو کاله وړاندې پېرودلې وه او د سي ای اي کارکوونکې یې شمالي افغانستان ته له احمدشامسعود سره دلیدني لپاره لیږدول. که څه هم چورلکه نوې نه وه خو له تخنیکې پلوه په نوې او په

[1] د لاورې په امریکا کې د یوې سیمې نوم دی. ژباړن

خپل سرکارکوونکې تیکنالوجې سره سمبال شوې وه. ددغه تخنیکي نویز په پام کې نیولو سره دغه چورلکه په سیمه کې تر ټولو ښه چورلکه وه. مورته خبرراکړ شو چې د سي آی اې دوه د چورلکو پیلوټان تاشکند ته په لاره وو او یو د میخانیک دې لې مشر له بلې لارې را روان و چې په تاشکند کې به له پیلوټانوسره یوځای شي. چورلکه به دسپتمبر په شلمه یا یوویشتمه چمتو او د الوتلو لپاره وازمویل شي. په تاشکند کې زمونږ افسران ډاډه وو چې د ازبک له خاوري څخه زمونږ د پلي کېدلو په وړاندې راپورته شوي خنډونه به ژر لیرې شي. خو د ګاونډي هېواد تاجکستان د حکومت ددریځ په اړه هیڅوک ډاډه نه وو چې هغوی به څه غبرګون له ځانه څرګند کړي. زمونږ لپاره تر ټولو ښه اویا لږ ترلږ خوندي لاره له ازبکستان څخه نیغ په نیغه د ختیځ په لورد غرونو په سر د تاجکېستان دوشنبې ته الوتنه وه. په دوشنبه کې مو کولی شوای چې تېل واچوو او له هغه ځایه نیغ په نیغه سویل لورې افغانستان ته والوځو. په دغه ډول به مونږ دافغان هغه هوایي تشیال (فضا) ته ننوځو چې د شمال ټلوالې په ولکه کې ده اود طالبانو له شوني هوایي ضدغبرګون څخه به په څه ناڅه ډول خوندي اوسو. طالبانو له اوږو څخه توغول کېدونکې هر ډول هوایي ضد توغندي درلودل او حتی دیوه بې تجربې توغندي ویشتونکې لپاره دداسې یوې الوتکې ویشتل چې په ورو ورو خوځښت کوي اسانه کارو.

له بده مرغه له تاجکستان سره زمونږ اړیکې دومره ښې نه وې. د څو تېرو کلونو په اوږدو کې په تاجیکستان کې د نړدې او کارپوهنیزو (مسلکې) اړیکو دټینګولو په اړه دسي آی اې هڅې له تېروتنو سره مخامخ شوې وې ځکه په دوشنبې کې د بې قانونی اوپه سړکونو کې د تاوتریخوالي کچه دومره لوړه شوې وه چې زمونږ مأمورینو ته یې اجازه نه ورکوله چې حتی دیوې یا دوه ووورځولپاره له هغه ځایه لیدنه کتنه وکولای شي. سره له دغه هم. مونږ له تاجک حکومت سره لومړنی بنسټیزې کاري اړیکې درلودلې او د سي ای اې له خوا به یولوړ پوړی مأمور وګومارل شو چې دوشنبې ته په میاشت کې یو ځل دڅو ورځو لپاره سفر وکړي او هلته له ځارکښو ځانګو سره وګوري څو داړیکو کړکی پرانیستلې وساتل شي. دغه افسر باید دوشنبې ته سفر کړای وای او له هغه ځایه یې زمونږ د نیغ په نیغه یا ترانزیت تېرېدلو په اړه مرسته کړې وای اوباید ورزیاته کړم چې تر ټولو اړینه دا وه چې دغه مأمور باید تاجیکان داسې همکارۍ ته لېواله کړي وای چې که زمونږ مأمورین هرڅه وپېري باید په پېرودلو کې له هغوی سره مرسته وشي.

که چېرې دننوتلو لپاره د تاجیک د هوایي تشیال په کارولو نه بریالي کېدلی مونږ اړ وو چې نیغ په نیغه له تاشکند څخه سویل لورې دطالبانو ترولکې لاندې

هوايي تشيال ته ننوځو او بيا څو سوه ميله ختيځ لورې بيا هم د هغوسيمو پرسروالوځو او پوهېدلو چې په دغو سيمو کې هم طالبانو هوايي ضددفاعي توکي ځاى پرځاى کړي دي. په دغو سيمو کېداى شواى چې څوځايونوراداردرلودل او موږ کولاى شواى چې د برېښنايي تکنالوجۍ په مرسته هغه په نښه کړو څو ورځخه تيښته اودځان ژغورل ناشونی و.

په پاى کې زموږ مأمور د شمالي ټلوالې له استازي سره په تاشکند او دوشنبې کې وکتل. دڅوکلونو په اوږدو کې سي اى اي له هغوى سره اړيکې درلودلې او بيا هغوى په خپل وار د پنجشېر په درې کې د شمالي ټلوالې له سرمشريزې ډلې سره په اړيکه کې وو. موږ ته ډاډ راکړل شو چې زموږ ډلې ته په پرانسيتلي تندي ښه راغلاست ويل کېږي او د شمالي ټلوالې سرمشريزه ډله په پنجشېر کې زموږ د ډلې شتوالي ته په ډېره مينه لېواله ده.

د امتياز په توګه د شمالي ټلوالې دڅورلکو يو کارازمېلی پيلوټ به هم زموږپه چوپړ کې وي چې په تاشکند يا دوشنبې کې به زموږ له ډلې سره يوځاى شي څو د لارې په اوږدو کې زموږ پيلوټانو ته د لارې په موندلو او د الوتنې په اړه سلا ورکړي. موږ بايدخپلې ټولې چارې د شمالي ټلوالې د همدغو استازو لارې سمبال کړې واى او موخه داوه چې موږبايد پرډاډ د شمالي ټلوالې سرمشريزه په کړۍ کې زېندۍ وساتو.

هرڅه يو پرپل پسې په سمه توګه پرمخ تلل. پاپي سهار ناوخته له دوه کراچېو سره چې له بکسونو ډکې وې راغی دغه توکي زموږ له مرکزونو سره د اړيکو د نيولو زره بلل کېدل او دهغو په مرستې کولاى شواى چې د ډلې له غړيو او د سي آى اې له ټولو سټيشنونو سره خوندي اړيکې ټينګې کړو.

انډيوالانو د سفر دپاره تياری نيولي. پاپي په همدغه ورځ دوه کراچې چې د سفر د توکو څخه ډکې وې. راوړلي. دغه دوه کراچې سامان زموږ دپاره ډېري حياتي وي په دې منظور چې په دغه کراچېو کې هغه توکي وو چې موږ يې په کارولو سره د قرارګاه او د ګروپ د غړو سره خوندي تماس ونيسو. پاپي د بکسونو په خلاصولو بوخت شو که څه هم چې دغه توکي پاپي ته د سپارلو وراندې څو ځله په ساحه کې د کارولو وروسته رغول شوي او ازمويل شوي و. په سامان کې کوم ښکاره تخنيکې ستونزه نه تر سترګو کېده څو دويمه معاينه د دې د پاره اړينه وه چې په افغانستان کې د خرابېدو وروسته د پرزو پيداکېدل ناشوني ول.

پاپي همدارنګه څو دوله سټلايټ ټليفونونه راوغوښتل څو وکولی شو د قرارګاه او د اړتيا په وخت کې د ژغورنکي ډلې سره په خوندي ډول اړيکه ونيسو. زموږ ګروپ ته د ژغورنې د ډلې سره په ځانګړي ډول د اړيکو د ټينګولو زده کړه

ورکړل شوې وه. په ټليفون کې مې د يو ساعت د غږيدو وروسته د شمالي ټلوالې دپاره بديجه تصديق کړه. پيسي هغه يوارينی انرژي ده چې په افغانستان کې کارونه سرته رسولی شي. ما د پيسو د غوښتلو موضوع د کوفر د مرستيال. بين سره وڅېړله او په دريو مليونو ډالرو باندې هوکړې ته ورسېدو. د ډېر وزن له امله ما کولی شول چې يوازې درې مليونه ډالرپه يو ځل له ځان سره وليږدوم. زه د پخوانی تجربې په اساس پوهېدم چې درې مليونه ډالر په هغه کوچنيو بکسونو کې نه ځايېږی چې مافيا يې په فلمونو کې له ځان سره وړي. ددې دپاره چې موږ بايد د سفر دپاره په څو ورځو کې چمتو وای، نو د تروريزم ضد له رياست سره مې اړيکه ونيوه او د هغو څخه مې نقدې پيسي وغوښتلې هغوی ډاډ راکړ چې پيسی به د نولسم سپټمبر په سهار چمتو کړي.

سټان چې د مېوري څخه يې د لنډ وخت دپاره د هغه د لوجستيک دندې مسوليت په غاړه اخستی و، رپوټ راکړ چې زموږ د گروپ دپاره وسله هم تياره ده او ويې وويل چې د ځانگړو فعاليتونو د فرقی منسوبين دغه مسوليت په غاړه لري. د ځانگړو فعاليتونو فرقه ساډ په نړۍ‌واله کچه وسلو ته د لاس رسی لري. موږ ته لس دانې کلاشينکوف او نهه ملي متره په مختللي اتومات تو پانچې هم راکړل شوي. ددغه وسلو دپاره د مهمات. بندونه او د پاکولو سامان مو هم راواخيستل. سټان د ځان سره دگروپ دهرغړي لپاره يو. يو جي پي اېس (هغه اله چې موقيعت پېژندنه کوي. ژباړن) اويوه قطب نامه راواخيستل.

زما دپاره د حيرانتيا وړ د امريکې د هوايي ځواکونو هغه ځانگړي نقشې وې چې سټان له ځان سره را اخيستي وي. دغه نقشې/خريطې زموږ د عملياتو د سيمي وي. هره نقشه د اوبو ضد له ټوټو څخه جوړي شوې وه. چې د اړتيا په وخت کې د کمپلې. د ښباك اوبود پاره د لوښی او د ټپ لپاره د پټۍ په توگه کارولی شوه. پرلومړنيومالوتوسربېره يې زيات شمېر حياتي مالومات هم درلودل لکه له اورلگيت پرته د اور بلول. د اوبو پيداکول او د بيړني وخت لپاره او د بېړنيوطبې مرستو لارښود هم پکې شته و.

ماښام شپږ بجې ناڅاپي ټليفون په لړزه کړم راډ وويل چې د ساډ (ځانگړو عملياتو فرقه) مشرتابه د خپل دفتر څخه څو شېبې وړاندې راوتلی و او خبر دا و چې زموږ گروپ د سفر نېټه د پخواني ټاکل شوي نېټې څخه راوړاندې شوه.

راډ وويل چې ددغه امر څخه سر غړونه ځکه نشو کولی چې د امريکې ولس مشر د سي ای اې په مشر د فشار راوستلی و او هغه هم ورسره وعده کړې وه چې دغه نېټه راوړاندې کړي. د اړتيا وړ سامان د راټولو دپاره زموږ سره پوره وخت نه و.

موږ په بيړه سره د سفر دپاره تياری نيول پيل کړل او هغه لومړني شخصي

توکي چې ډېر اړين و. موږ درلودل. هغه شيان چې موږ تر اوسه د هغو په لټه کې و. هغه به مو يا په لار کې اخيستل او يا به يې د غوښتنې په صورت کې راليږل. موږ ټولې شخصي دندې تر اوسه نه وې بشپړې کړې د دې لپاره چې زموږ په نه موجوديت کې زموږ مېرمنو د کورنيو او ماشومانو مسوليت په غاړه اخيستلی شوای. نو موږ بايد وصيت نامې ليکلې وای. موږ پدې نه پوهېدو چې څه وخت اوايا کله به هم کورته ژوندي راوګرځو؟

موږ د خپل لنډ مهاله دفتر څخه د کور په لورې روان شوو څو پاتې مهم کارونه سرته ورسوو. د نورو شپو په څېر تر نا وخته بوخت وم.

# څلورم څپرکی

زمونږ د سفر څخه يوه ورځ وړاندي نږدې مغازې ته ولاړم. ما غوښتل چې د تيارو جوړو شويو خوړو، د وچې مېوې،پاور بار(يو ډول چاکليټ چې مختلف ويټامينونه لري. ژباړن) د ليست د پوره کولو او خوړو ته د خوند ورزياتولو لپاره مرچ او مسله او نور ځانګړي مواد راواخلم.

د ممپلي کوچ او د کافي را اخيستل هم ښه نظر و. ددواړه څخه مې دوه لوی بنډلې کراچې ته ورواچول. ګيټريډ(يو ډول نوشابه. ژباړن) د ټوباسکو چکني. په پنيرو غوړې شوې ډودی. د سوی (يو ډول نشايسته. ژباړن) چکني او وچ شوي بسکټ هغه څه و چې ما له ځان سره وړل. د هغه څخه وروسته درملتون ته ولاړم څو له ځان سره د سفر لپاره مناسب دارو لکه سپرين. ابوپرافين. پټۍ. د مېکروب ضد کريم. دلاسونو لپاره د مکروب ضد صابون. د لاسو وچولو دسمالونه او د ټوخي او زکام دپاره دارو واخلم. کله چې کراچۍ تقريبا ډکه شوه. نو بيا په دې وپوهېدم چې له ځان سره د سامان ليږدول خو محدود دي. ما له ځان سره وويل چې زه خو جنګ ته روان يم نه د سيل دپاره نو يو څه توکي مې وروګرځول. بېټسي(د ليکوال مېرمن) او خپله ما په هغه ماښام ډېره لږه ډوډی وخوړله او د تېرو دريو شپو د سفر لپاره د تياری نيولو له امله بيټسي هم ناراحته شوې وه.

زما د دوو ورځو د سفر د راوړاندې کېدلو دغه اور ته تيل نور هم ورزيات کړل(ليکوال دلته د خپلې کورنی د ناراحته کولو منظور دی. ژباړن) دا ځل اوښکې وې خو غوسه نه وه. بيټسي وويل چې ولې ځان په خطر کې اچوې. تا خو دغه هېواد ته له دېرشو کالونو زيات خدمت کړی ولې په پای کې غواړې چې افغانستان ته ولاړ شې؟ ما غوښتل چې په ارامه او مينه سره ځواب ورکړم.

په پخلنځي کې د واشنګټن پوسټ اخبار و او په لومړی مخ يې د اور ضد رياست يو مامور چې يونيفارم يې درلود عسکري سلام کړی او په مخ يې اوښکې روانې وې. ما اخبار راوخيست او ورته مې وويل: ګرانې دغه انځور ته وګوره. ځکه زه افغانستان ته ځم. مونږ ټول د مرګ دغه درد احساسوو. او مونږ ټول غواړو چې هغه حراميانو ته چې له امريکې سره يې دا ډول وکړل. ځواب ورکړو!زما د خپلې پرېکړې په نظر کې نه نيولو سره. زه د دغه دندې دپاره مناسب سړی يم. زه په رښتيا سره کولی شم چې دغه ګروپ ښه رهبري کړم.

ما خبرې وځنډولې. موسکی شوم بیا مې وویل: او که چېرې زه دغه دنده ترسره نه کړم، زه به په راتلونکې کې ستا د مینې او خوښ کس نه وم. یا له چاسره چې تا ټول ژوند په یو ځای کار کړی و. زه ددغه دندې لپاره باید لاړشم.

زما د هڅولو لپاره همدومره تشریح او هڅونه وه چې ما کولای شوه. په داسې حال کې چې په پخلنځي کې مو پشقابونه پریمینځل، یو بل مو سره وموښل. غېږې مو سره ورکړې او یو او بل مو په شونډو ښکل کړل. یوازې د ؛پر ما گران یې؛ نور څه نه و چې سره ویلې مو وای او په راتلونکي ساعت کې مو همدغه خبرې څو ځلې تکرار کړې!

د تېرې شپې فکرونه مې په داسې حال کې چې قرارگاه ته په وروستۍ ورځ ورننوتم. له مغزو لیرې کړل .د اندېښنې ور شېبې وې. پاپې هاخوا دیخوا منډې وهلې څو د سي ای اې له شبکې سره د اړیکې نیولو لپاره مهم توکي راپیدا کړي. هغه لس دانې لوړه فریکونسي لرونکې لاسي مخابرې هم رااخېستې وې څو په دره کې د گروپ غړي د خوځښت په مهال په خپل منځ کې خوندي اړیکې ولري. مېوري د تروریزم په وړاندې په ریاست کې پېژنگلوي درلوده او له هغه سره یو ځای یې د توکو د پیریدلو د همیشني عادت سره سم، ډیر وخت پرې تیراوه. په همغه سهار یې شپږ سوني لاپ ټاپ کمپیوټرې د اړوند توکو سره پېرودلي دي. نوموړي کمپیوټرونه د هغه کمپیوټرونه چې پاپي د خپلې دندې لپاره راوړي وو،څخه اضافه وو. هغه څلور دانې ډیجیټل یا کمپیوټري کمرې. د انځورونو لپاره سافټ ویر او د انځورونو د چاپ لپاره یې دوه پرینټرونه هم پېرودلي وو. د تروریزم په وړاندې د ریاست لوجستیکي افسر نوموړي توکي په همغه سهار په بنډلو کې تاو او ولېږل. ریک د ځانگړو فعالیتونو د فرقې سره د لېږدونې پر چمتووالي کار کاوه. د ډاورډیلویر څخه باید د سیپټیمبر په نولسمه د ماښام په اووه بجې د هوایي ځواک اړوند په سې پینځه اې ډوله الوتکه کې مو الوتنه کړې وای. د گروپ نور غړي مېوري، پاپي او سټان به د ځمکې له لارې ډورته د توکو سره یو ځای راتلل.

زه او ریک باید ماسپښین ډور ته په چارټر الوتکه کې تللي وای . موږ د لوړ پوړو افسرانو او کوفر بلاک سره لیدلي وای څو موږ ته یې د ماموریت په اړه وروستي مالومات او لارښوونې راکړې وای. زموږ ټول شیان په همغه شپه جرمني ته لیږل کېدل. کله چې د تروریزم په وړاندې د مبارزې مرکز خلاص شو، ما ورته ټلیفون وکړ څو پیسې تیارې کړي او دوی هم ډاډ راکړ چې د سپټمبر په نولسمه د ورځې په یوولس بجې به تیارې وي. پیسې مو له ځان سره د شخصي توکو په توگه لیږدولې.

کریس هم فرانکفورټ جرمني ته د سفر دپاره په خپلواکه توگه سفر کاوه .

هغه ته ویل شوي و چې د امریکې په نظامي اډه کې هلته زمور سره وګوري. ډاکټر هم له پخوا څخه په تاشکند کې مور ته انتظار و. زمور افسرانو خبر راکړ چې ازبکستان ته زمور سفر د ازبک حکومت لخوا تصدیق شوی دی. افغانستان ته د اجازې په اړه تر اوسه کوم مالومات نه ول. د نولسم سپټمبر پورې مې یوازینی شی چې له یاده نه وت، هغه د امریکې د پوځ د ځانګړو عملیاتو د برخې کوم غړی چې غوښتل یې له ګروپ سره یوځای شي. و. ریک د تېرو دوو ورځو رهیسې د ډالټه څواک(ځانګړې ډول ځواک. ژباړن) له قرارګاه چې په فورټ براګ کې وه او دمتحده ایالاتو دپوځ مرکزي قوماندني چې په ټامپه فلوریډا کې ده،اړیکې ونیولې څو هغوی ته ددغه ماموریت د اهمیت او د ځانګړو عملیاتو د ځانګې زمور د ګروپ سره په همکارۍ او د امریکې د ځانګړو ځواکونو سره په رڼا او په ډانګ پیلې اړیکه باندې یې ټینګار وکړ.

مور ته د حیرانتیا خبره دا وه چې که څه هم چې د ریک اړیکې د ځانګړې ځانګې مامورین لېواله کړل خو دوی په خپل منځ کې په دې بحث درلود چې څنګه او څومره کسان به افغانستان ته لېږدوي.

پوځ په دې بحث کاوه چې ایا دوی د ډلته (ځانګړی ځواک) که نور ځانګړی ځواک د لومړی کرښې شاته د طالبانو په وړاندې او د شمالي ټلوالې سره د مرستې لپاره ولیږي. او ایا د ژغورنې او مرستې چورلکې په پنجشیر کې ځای په ځای کړي؟ ایا د پوځ ځانګړی ځواک د شمالي ټلوالې سره یو ځای په لومړی کرښه باندې په لایزري تکنالوژي د طالبانو مرکزونو د بمبارۍ لپاره ولیږي؟

د هوایي ځانګړې مرستې ګروپ په سر هم بحث را ولاړ و. هغه څکه چې په پنجشیر کې کومه هوایي مرسته د هغه کسانو دپاره چې هلته ځای په ځای کېدل. شتون نه درلود. د شمالي ټلوالې دشوني ماتي په صورت کې به ټول ځواک په دره کې (پنجشیر. ژباړن) له منځه ولاړ وای. د بحث په وروستیو کې په دې سره یوه خوله شول. چې هیڅ د ځانګړو عملیاتو ګروپ د ژامې ماتوونکې ګروپ سره پنجشیر ته نه لیږل کېږي او یوازینی رسمي دلیل ددغه پرېکړې دپاره د هوایي ژغورنې د ګروپ نشتوالی و.

دغه ماښام هم ډېر اورد ماښام و او ما د دریم ځل دپاره خپل توکي سره ټول کړل او هغه توکي چې ددغه سفر دپاره افراط ګڼل کېدل. له خپلو بکسونوڅخه لېرې کړل دبېلګې په توګه مالګین بسکټ . مربع او داسې نور.

کافي مې هم په پلاستکې کاسو کې ونغوښتله او هر هغه څه چې د شلیدلو او بهېدلو شونتیا یې وه. هغه مې په کې واچول. جامې مې بیا ټولې کړې. ما ددې لپاره چې بیټسي ته نږدې وم. د هغې ترځنګ په داسې حال کې چې هغه تلویزیون ته په کتلو بوخته وه. ترسره کاوه خو په پای کې په یوولس بجو هغې

لاسونه پورته او د خوب ځای ته لاړه.

زه هم د هغې وروسته زېرزمینی ته ولاړم او په کمپیوټر مې د مېراث وصیت نامه ولېکله.

د لیکلو سره سم ددغه ماموریت د خطر او د نه راګرځېدلو احتمال مې هم سترګو ته ولاړ و. ما هغه شونتیا چې ښایي بیرته را ونه ګرځم. لیرې نه ګڼله. مور په دې چې په پنجشېر کې به له څه سره مخ کېږو. نه پوهېدو. څکه چې طالبان په شمالي ټلوالې باندې د مسعود مړینې وروسته په منفي اغېزه باندې پوهېدل.

ایا شمالي ټلواله به د یوه څواکمن برید په وړاندې مقاومت ولري؟ که څه هم چې په افغانستان کې د ځمکې لاندې د ماینونو له امله هر کال په زرګونو خلک خپل ژوند له لاسه ورکوي. د سختو او زیږو غرونو د خرابو او جنګ ځپلو سړکونو د بې تجربه موټروانانو له امله په سلګونه خلک خپل ژوند د لاسه ورکوي نو د ددې دپاره یوه مناسبه وصیت نامه لیکل اړینه وه.

په زیرزمینی کې په ساعتونو کېناستم. پرته زما د جایداد د ویش څخه بیټسي. زما مور. زما ماشومان او زما خور ډونا. ټولو ته مې د مینې خرګندونه په جلا ډول په پاڼو کې ولیکله. په پاکټ کې مې بند کړل. تاریخ مې پرې ولیکه او پر پاکټ مې ولیکل چې: یوازې زما د مرګ وروسته باید پرانستل شي. بیټسي ته مې وویل چې وصیت نامه د الماری په پاسنی خونه کې ده!

## پنځم څپرکی

د نولسم سپټمبر په سهار په پینځو بجو له خوبه راویښ شوم او یو ځل مې بیا په راسره توکو نظر واچاوه څو رایاد کړم چې په نوموړو دریو بکسونو کې کومو توکو شتون درلود. زیاتې جامې مې په یو لوی بکس چې اوسپنیزه فریم یې درلود،ایښې وې. خواړه او نور توکي مې په دوه متوسطه اونرمو بکسونو کې و. د بکسونو وړل او څکول راته یو څه ستونزمن ښکاریدل خو د میاشتو سفر او د اکمالاتو نشتوالی راته په یاد و.

بیټسې خپل کار ځای ته د تګ تیاري نیوله. ما ارام کاوه او کافي مې څښله. خپلې لور جینې ته مې ویلې و چې تر کار ځای مې په موټر کې وېسې څو موټر مې په سي ای اې دفتر کې ولاړ پاتې نشي.

بیټسي راکوزه شوه. کار ځای ته تګ لپاره تیاره وه. خپله وروستنی خدای په اماني موسره وویلې. یو او بل ته د مینې داظهارولو او یو او بل څخه مو د جدایې په مهال د محتاط اوسېدلو د ټېنګار څخه پرته نور د ویلو لپاره څه نه و

پاتې. مور د ښه ځنډ لپاره سره ودرېدو. ټينګې غېږې مو سره ورکړې وې او دهغې اوښکې زما په غومبوري راولوېدلې. په غېږ کې نيولو يې ډېر خوند کاوه او هغه حقيقت چې د مياشتو جلاوتني يې را په يادوله. دغه غېږ ې ته نور هم ارزښت ورکاوه. مور سره ومچول او ډاډ مې ورکړ چې له سفره به خوندي راګرځم.

دې سر وښوراوه د خبرو کړلو کوښښ يې وکړ خو غږ يې بندشو. موسکا يې وکړه. مخ يې بل خوا وګرځاوه اوله دروازې ووتله.

دفتر ته د تګ په مهال جيني هم خو شبيني ځرګنده کړه. ما ورته وويل چې سي اى اې د دفتر په دروازه کې به د تروريزم په وړاندې رياست د لو جستيک افسرسره وينم اوهغه به ټول توکي د راټولولو(تر دې مهاله ناځرګند. لېکوال) ځاى ته ولېږدوي او د غرمې شاوخوا به خوځښت وکړو. زه پوهېدم چې جېني دخندا ډک مخ نه شو ساتلى خو هغه تکړه وه. جېني ډاډ راکړ چې هغه او کېټ به د بېټسي سره زما په نشتوالي کې په اړيکه کې وي. هغې ته مې وويل چې په دره کې د سمباليدو وروسته امکان لري چې د سټلايټ تېلفون له لارې ورته ټلېفون وکړم. دفتر ته په رسېدو مې جېني ته وويل چې موټر د دفتر مخ ته ودروي. ما د وېډيو کمرې له لارې ځان وروپيژانده. او امنيتي مامور ته مې وويل چې زه کارمند يم او د پذيرايې د دروازې ترڅنګ له موټره ښکته شوم.

له جيني سره مې رخصتي اخستنه پيل کړه. ټينګې غېږې مو سره ورکړې او په غومبوريو مې ښکل کړه په سترګو کې يې اوښکې راټاو شوې. هغه تاو شوه د موټر دروازه يې خلاصه کړه. بيا موسکى شوه راوېې کټل او وېې ويل چې پر ما ګران يې او پر تا ويارم. بيا به راځې. موټر ته ور ننوتله. زه هم ولاړ وم د جيني موټر ته مې کتل څو مې موټر له سترګو پنا شوه. دغه يواځينى ځاى و چې له سترګو مې اوښکې را وبهېدې.

توکي له وعدې سره سم تېره شپه فرانکفورټ. جرمني ته دتروريزم په وړاندې رياست او د ځانګړو عملياتو د مامورينو لخوا لېږل شوي و. ګروپ د ځانګړې فرقې او د تروريزم په وړاندې د مرکز له نماينده سره د لېږد رالېږد د تيارولو لپاره ليدنه وکړه. ميوري. سټان او پاپي بايد په يوولس بجو څوځيدلي واى. مور د خپلو شخٌصى بکسونو سره په لس او پينځه څلوېښت دقيقې موجود واى. ددې لپاره چې ما او ريک بايد يو څه جدي ليدنې کړې واى. نومور لږ وروسته خوځښت کاوه. زمور وروستى ليدنه د کاپر بلاک سره وه. د هغې په ځار د دوور هوايي ډګر ته بايد چارتر سوداګريزه الوتکه کې تللي واى. د ګروپ له نورو غړو سره مو د مساپرينو د ترمينل د روانېدو په برخه کې لېدل. زمور بله نابللې موضوع د اې پينځه سي الوتکې ددې په ځاى چې په رين مين هوايي ډګر کې کښيني. په

رمستېن هوايي ډګر چې دفرانکفورټ څخه د سویل په خوا یو سل اویا میله واټن لري. کښیناستله. زموږ په رسېدا سره یو ملکې بس چې باید فرانکفرټ ته یې رسولي وای. ترتیبات نیول شوي ول. له دې هاخوا نور داسې کوم شخصي څه نه ول پاتې چې باید ترسره کړي مو وای.

زه په ۱۰:۳۰ بجو د تروریزم ضد مرکز ته ولاړم او له هغه ځایه مې درې ملیونه ډالر چې د کارډبورډ په بکسونو کې وو. له ځان سره را واخیستل. پیسې سل ګون نوټونه و. ټول زاړه وو. په نویو بنډلو کې نه وې. او ټول په لس زریزه بنډلو کې وې. لس ددغه بنډلو څخه په پلاستیکې بنډلو کې چې هر یو یې سل زریزه بنډل جوړاوه. تړل شوي و. په هر بکس کې د ددغه خښتو لس بنډل په سم ډول بند شوي وو. د هر یوه بکس تقریبا پنځلس پاونډه وزن درلود نوځکه زه اړ شوم چې ددې د وړلو دپاره یوه کراچۍ پیدا کړم. ددغه دریو بکسونو هرې.خوا ته څکول په ښکاره ډول یو ځانته کار و.

په لس او پینځه څلویښت دقیقو زه د ګروپ له نورو غړو سره په هوایي ډګر کې انتظار وم او د ګروپ غړو په خپل منځ کې ټوکې کولې. ددغه مسلکې کسانو ګروپ ته په رسېدا سره هوسا شوم. دغه ډول ماموریتونه د دوی لپاره عادي وو ځکه هغوی ډېر ځلې خطرناکه ساحو ته د دندې لپاره تللي وو. د ا شېبه هغه ډول وه لکه په کوم کمپنۍ کې چې د نوکرۍ د ساعت د بدلېدا پرمهال ډلې سره ولاړې او په خپل منځ کې سره ټوکې کوي. دوی افغانستان ته د لومړنیو کسانو په توګه د تګ له امله خوښ ول او په افغانستان کې به د اونیو په موده د یو نا ازمویل شوي دوست سره د یوې خطرناکې کرښې تر شا چې په زرګونو طالبان او عرب جنګیالو په وړاندې واقع و. دنده اجرا کوي. موږ ټول له خطر څخه خبر و او خپل خوښي(داوطلبي) موکړې وه. په ساده الفاظو که ووایم. زموږ دنده وه او باید پرته له ډېرې اندیښنې مو بشپړه کړې وای. ما خپل درې بکسونه ستاڼ ته وسپارل اوله هغه مې وغوښتل چې دغه پېسې د نور و توکو سره یو ځای کېږدي. فرانکفورټ ته د سي پینځه اې پرځای په موټر کې د سفر له امله مو یو څه ټوکې سره وکړې اود هغې وروسته مو توکي شاته ورواچول. مېوري. ستاڼ او پاپې وروختل. او موټر روان شو. ما او ریک د جلسو خپله دوره پیل کړه. کله چې په دهلیز کې روان شوم هر افسر چې به ددې ماموریت په اړه اورېدلي ول. راودرولم څو زموږ دپاره د ښه سفر غوښتنې دعا او په ورته وخت کې به هر یو زموږ د ګروپ سره د یوځای کېدو ارمان کاوه. په دهلیز کې مې یو پخوانی دوست چېز براندون هم ولید او د هغه سره مې ددغه ماموریت او زما د بچیانو په اړه لنډې او جدي خبرې وکړې. د چېز سره مې ددغه ماموریت او زما د بچیانو په اړه د خبرو کولو هغه حقیقت چې ښایي کور ته ژوندی را ونه ګرځم. را

یاد کړ. رېک او زه دواړه د کوفر په دفتر کې په خپل وخت حاضر شو هغه گوښی و او د هغه سره مو روغبړ وکړ. د هغه د غونډې مېز گرد چاپېره کېناستو. د عادي خبرو اترو وروسته مې د خپلې تیاری ډاډ او د سفر د پلان په اړه لنډ مالومات ورکړل. کوفر مخ ته راټيټ شو او خپل لاسونه يو پر بل کېښودل. يو ځل يې ماته او بل ځل يې ريک ته وکتل او ويې ويل چې زه غواړم چې تاسې ته د تيارسی امر درکړم او غواړم چې ښه يې واضح کړم. ما ددغه موضوع په باب د ولس مشر سره هم خبرې کړي دي. هغه هم راسره ومنله. ستاسې دنده داده چې شمالي ټلواله زموږ سره گډ کار او مرستې ته و هڅوی چې زموږ پوځ ته په پنجشېر دره کې اجازه ورکړي څو سيمه د عملياتو د مرکز په توگه وکاروو. د هغې نه پرته ستا دنده داده چې اسامه بن لادن او د هغه جگپوري چارواکې پيدا او ويې وژنی! يو څه يې خبرې ودرولې څو هغه څه چې يې وويل تېر کړي. او بيا يې ادامه ورکړه: زه نه غواړم چې اسامه بن لادن او د هغه جنايتکاره ډله ژوندي ونيول شي. زه غواړم چې هغه مړه ووينم او نه غواړم چې ژوندي يې وساتم او په متحده ايالاتو کې د هغوی زندانول به د نوروو ترهگرو د راغونډيدلو لپاره يوسمبول او جالبه نقطه وگرځي. دوی زموږ په زرگونو بې گناه ښاريان ووژل. دوی حتماً بايد ووژل شي. او زه غواړم ددوی د سرونو انځورونه د نېزو په سر ووينم! زه غواړم چې د اسامه سر ماته په يو بکس کې چې د وچ يخ څخه ډک وي. راولېږل شي!؟ زه غواړم چې هغه د امريکا ولس مشر ته وښايم. ما له هغه سره د دغه کار د ترسره کېدلووعده کړې ده! کوفر خبرو ته ځنډ ورکړ او بيا يې وپوښتل چې ايا کومې خبرې چې ما وکړې په هغې ستا سر خلاص شو؟

رېک او ما يو بل ته وکتل او موسکي شوو. ما ورته وويل: کوفر ستا په خبرومې سر په پوره ډول خلاص شو.. زه نه پوهېږم چې وچ يخ به په افغانستان کې له کومه پيداکړم خو زه ډاډه يم چې په دښته کې به د نېزو سرونه ډېر پراته وي!! د سي ای اې سره مې د ديرشو کلونود دندې په بهير کې لومړی ځل و چې محکمې ته د راکشولو په ځای د يو چا د مرگ امر راکول کېږي! موږ ولاړ شوو. لاسونه موسره ورکړل او موږ ته يې د برياليتوب دعا وکړله. کله چې له دفتر څخه بهر ووتم. له ما ته د کوفر په ډول د خپل زړه ورتوب او ځان ښودونکې وينا د الن ولف هغه وينا (هغه ته يې پکې ماتې ورکړه. لېکوال) چې په کال ١٩٧٨ د اگسټ په مياشت کې مې ترې واورېده. را ياد کړله. هغه وويل چې سي ای اې به افغان کمونسټ رژيم راوپرځوي او ددغه کار لپاره هڅه همدا اوس له دغه کوټې څخه پيل کوو. موږ د ولف سره په مېز باندې څلور کسان په کوټه کې ناست و. چارچاپېر مې ټولوته وروکتل. او فکر مې وکړ چې نوموړی پلان بواځې د څلورو کسانو په واسطه سرته رسول خو ډېرخوشبين ښکاري!! د کوفر د دفتر

څخه دوتلو پر مهال مې همدې ته ورته احساس درلود. زموږ د ژامې ماتوونکې گروپ اوو کسانو ته بې د کار خپله برخه را بېله کړه!

## دوهمه برخه
## شپږم څپرکی

د سي اې ایس دوله نظامي الوتکې منځ کې تته رڼا وه. سیټونه یې ډېر هوسا ول او د چوکۍ سره ازاد ځای ددې اجازه راکړه چې خپلې پښې په ازاده توگه وغزوم او د ارام هڅه مې وکړه. ماغزه مې ډېر بوخت وو او په افغانستان کې د سي ای اې ماموریت پیل کېدل د شوروي یرغل د کال۱۹۷۹ ډیسمبر څخه تر اوسه پورې او ددغه په څنگ کې مې خپل کردار ته چې څنگه د هغې وخت نه وروسته تر اوسه پورې پرې تړلی و په داسې حال کې چې د الوتکې غږ مې په غوږونو کې انگازې. په تته رڼا کې د الوتکې انجن غږ ویده کولم. فکر کاوه . په دې وپوهېدم چې د افغان مجاهدینو سره مې د سي ای اې د ښکېلتیا په بهیر کې په دغه اوږده تاریخ کې څومره مهم او بدلېدونکې رول درلود.

هغې پېښې چې سي ای اې یې په لومړی ځل په افغانستان کې راښکېل کړه په کال ۱۹۷۳کې وه کله چې داودخان د محمد ظاهرشا د تره زوی چې د یوې مسلمانې سخت دریځه ډلې او د یو څو کمونستانو په مرسته ظاهرشاه د تخت څخه لیرې او په ایټالیا کې یې پنا وړلو ته اړ کړ. د شوري اتحاد دپاره دغه یو طلایې چانس و چې په افغانستان کې خپل نفوذ زیات کړي. د پیړیو اوږده لوبه وه چې روسانو بل گام اوچت کړ څوخپل نفوذ او کنټرول په پخواني انگلیس هندي امپراتوري کې نور هم زیات کړي.

په افغانستان کې د گوتو په شمېر خلکو د پاچا په لېرې کېدو خپگان څرگند کړ. د کابل څخه بهر خلکو ډېر بې وزله ژوند درلود او زیاتو یې له دې چې پاچا څوک دی یا خبر نه درلود او یا یې پروا نه لرله.

په حقیقت کې زیاته برخه اسلامي رهبران چې وروسته رهبری ته ورسېدل لکه پروفیسورربانی، گلبدین حکمتیار اواحمدشاه مسعودچې په ملي رهبري کې

بدلون راوړاود داود په نوي رژيم کې يې زيات اومهم رول درلود. ډېره هيله لرله. خوددوی هيله هغه وخت خاورې شوه چې کله داودپه اسلامي گوندونوراتيته کړه اوهغه يې له هېواده پاکستان ته تښتېدوته اړکړل.

پاکستانيانوچې د داودپه رژيم کې يې دکمونستانوله نفوذڅخه اندېښنه لرله. دغواسلامپالوته ښه راغلاست ووايه اودوی ته يې مرسته او پناورکړه.

پــه (١٩٧٥) کــال کــې ددغواســلامپالولخواد داود دحکومــت پرورانــدې ناکامــه کودتا وکړه. اوددغې کودتاله مخې اسلامپال په خپلوکې سره بېل اودغه بېلـوالی ددې لامل شوچې کمونېست راغوړېدونکې گوندنورهم ځواکمن کړي.

داود هــم يــوبې اغېــزې رهبــرو. هغــه کوښــښ کــاوه چــې روســان. امريکايــان اوپاکستانيان پخپل منځ کې سره ولوبوي!

افغان کمونستان دشـوروي اتحادپه لاسنيوي نـورهم ځـواکمن شـول. په ١٩٧٨ کــال کــې يــې لــه داود څخــه دکرکــې اودواك ترلاســه کولولېوالتيالــه مخــې يــې داودپرحکومت کودتاوکړه اوپه پايله کې يې د داودحکومت راوپرځاوه.

افغان کمونستان پخپل منځ کې په دوو لويوډلو(خلق اوپـرچم) وېشل شـوي وو اودوامدارپه دې هڅوکې ووچې کوم يو گوندبه رهبري په لاس کې ولـري چې کله ناکله به ددولت واگې ديادشويو دووډلو ترمنځ بدلون کاوه.

ســره لــه دې چــې دروســانولويې مرســتې ورســره وې خودغــه مبــارزې دوی حاکميــت دخلکوپرورانــدې ســرتيتی کړاودافغانســتان عمــومي خلکوپــه مــنځ کــې ددولت پرورانديې خپگان رپورته شو. کوچنيوډلودهېواد په کچه د دولـت پرورانـدې ځرگند وسلوال مقاومت پيل کړ.

دغه مخالفت غيرمنظم. ټوټې. ټوټې اوبې له بهرنيومرستوڅخه يـې پخپلـو لـږو تجهيزاتوخپلې مبارزې ته دوام ورکړ.

په ١٩٧٩ کې حفيظ الله امين دخلق له گوندڅخه رپورته شـواودحکومت واگي يې په لاس کې واخيستې. په دې وخـت کـې ډېره نـا ارامـي رامنځته شـوه اوپه امين باندې دروسانوباورهم ختم شوچې په پای کې د١٩٧٩ کال دډېسمبرمياشتې د کرېســمېس پــه شــپه(د عيســويانو مــذهبي ورځ چــې پــر پيښځــه ويشــتم ډيسمبرلمانځل کېږي. ژباړن) دروسانوحوصله پای ته ورسېده اوپه سترځواك سره يې پدغه هېواد نېغ تېری وکړ.

روسان دشـپې دکابـل پـه هـوايي ډگرکـې کوزشـول. امـين اودهغـه دحکومـت لوړرتبه چارواکي يې له منځـه يـووړل اودده پرځـای يـې ببـرك کارمـل دهغـه پرچم گوندته د واك واگې ورکړې. دځواونيوپه اوږدوکې روسـان افغانسـتان تـه دځمکـې اوهواله لارې ننوتل اودهېوادټولوبرخوته په لنډوخت کې ورسېدل.

کابل پوهنتون د روسانواشغال پـر وړانـدې غبرگـون وښـود. چـې محصلين يـې

پاکستان ته وتښتېدل څوزندانیان نه شي. یوځوان تاجك رهبر احمد شا مسعود له دغومهاجروسره په پېښورکې یوځای شو. په ۱۹۸۰ کې یې دکمونستانوپه وړاندې جهاداعلان کړ. نوموړي یوځه تاجك محصلین له ځانه سره پنجشېرته بوتلل څودکمونیستي دولت پروړاندې جګړه پیل کړي.

همدارازنوروکوچنیوګروپونوهم رسمي مخالفت اعلان کړاوله بهرڅخه دمرستې نشتوالي له امله غیرمنظم اوغیرمجهول. له دې امله دروسانود زور لپاره لوی ګواښ نه و.

دسي ای اې رول په دغه کیسې کې یوازې اتلس میاشتې وړاندې د ۱۹۷۸ کال په وروستیو کې هغه وخت پیل شوکله چې دخلق ګوندکوچنی خوجدي تېروتنه وکړه.

دوی دهېوادلپاره یونوی بېرغ اعلان کړ. دغه بېرغ انځور یوځوروځې وروسته په واشنګټن پوسټ کې راخرګندشو. دیوې اونۍ په دننه کې غوسه شوي الن ولف اسلام اباد ته لاړ. الن په هغه وخت کې دختیځې اوسویلي اسیاد سي ای اې دڅانګومشرو.

الن د سي ای اې په دفترکې یوافساني ډول شهرت درلود. هغه څوکاله دسویلي اسیالپاره وقف کړي وواودپاکستان اوافغانستان د اوپراسیون دبرخې مسول و. د لومړیو سفرونو پر مهال هغه په لاهور کې د اړوند برخې مشر و او په یو ډول یې داوه ګارډنر سره هر ماسپښین له لیدنې په داسې وخت کې چې هغوی RANCHITPUR OF RAINS فلم انځوراوه. خوند اخېسته!ځه وخت وروسته الن په کابل اوبیاپه اسلام ابادکې زموږدمشرپه توګه کاروکړ. هغه ددغه زون په باره کې ډېره مطالعه لرله. دهغه ښځه هم دافغان په کلتوراوقبیلوي تاریخ باندې دښه پوهېدوله امله مشهوره وه. زه په ۱۹۷۸ کې اسلام ابادته راغلم اوله ماسره خپله لومړنۍ میرمن پاټریشه اوزمادرې بچیان هم وو. زه ترټولوټیټ رتبه افسروم.اسلام اباد ته د الن سفر زموږدټولولپاره یوحیرانوونکی خبر و . ځکه په هغه وخت کې دغسې کوچنیودفترونوته له قرارګاه څخه دجګپوړي چارواکي راتلل معمولي خبره نه وه.

زموږمشرجان ار له الن ولف سره دکتنې لپاره د تیار پر مهال داسې لکه پېشو اندېښمن و.

د رارسېدا سره سم. ولف لکه د فلم لوبغاړي په ډول هر وخت په صحنه حاضر و. موږ درې واړه ټیټ رتبه افسران یې د سفارت د تشریحاتو خوندي کوټې ته چې په پوکنه مشهوره وه ځکه چې روڼ پلاستیکې چت. غولی او راڼه دېوالونه یې درلودل. راغوښتي کړلو.

ولف د دهغه مېز سره چې په شنه بخمل پوښل شوی و کېناست. موږ ټولو

ته يې په کراره او په غور سره راوکتل.

هغه بيا په خبرو پيل وکړ: زه له خپلې ميرمنې سره په انګړ کې دمازيګرچای پرخوړلوناست وم. موږ د ماښام مارټينير[1] ځښل او د واشنګټن پوسټ اخبار مې لوست. باور مې نه راته. د اخبار په لومړي مخ باندې د نوي افغان بېرغ انځور ترسترګو شو. ماخپلې ميرمنې ته مخ ورواړاوه. ورته ومې وويل چې ګرانې دغه کمونيست حراميان زموږله افغانستان سره دغسې لوبې نشي کولای! زه به دغه لعنتي رژيم رانسکوره وم. او ښا غلو زه دلته د مبارزي د پيلولو لپاره راغلی يم. زموږخلک په کابل کې دشته رژيم له امله څه نه شي کولی خومجاهدين په پاکستان کې. په پېښور او دلته په اسلام اباد کې نمايندګان لري. له دغه ځايه زموړاوستاسې جنګ پيلېږي. تاسې بايددمجاهدينوپه ليکوکې خپلې سرچېنې پيداکړئ اوماته رپوټ رکړی. چې دوی څه شي ته اړتيالري. ددوی جنګ څنګه پرمخ ځي اوڅنګه موږکولی شو له دوی سره لاسنيوای وکړو. تاسې بايدکاروکړی اوزه غواړم دهغې پايله وګورم.

ښه تياتر و او ډېر ښه کردار يې ترسره کړ. ماغورنيولی واوله بيا هم ځان سره مې وويل چې کاش کېمره مې لرلئ څودغه صحنه چې دتاريخ پاڼې يې زماپه مخ کې واړوله. ثبت کړې وای.

د۱۹۷۹ کال په نيمای کې موږ د ولف ديونځاپي امرونوله مخې دمجاهدينوپه ټولو اوو(۷) لويوډلوکې سرچېنې پيداکړې.

د ولف پرامرونوسربېره په واشنګټن کې دده دهڅوپه مټ دامريکې دولت دپاکستان حکومت په لاسنيوي کوچنی پټې ډلې جوړې کړي څوله مجاهدينوسره بشري مرستې وکړي.

د۱۹۷۹ کال دنوامبرمياشتې په ۲۱ مه نېټه په اسلام اباد کې يوه پېښه وشوه چې په اسلام اباد کې يې نړۍ پرمخې واړوله. هغه داچې يوې کوچنۍ جنايتکاره ډلې چې وروسته يې دکسانوشمېرپنځلس زره تنو ته ورسېددامريکې دسفارت دېوالونـــه مـــات کـــړل اوودانـــۍ تـــه يـــې اور واچـــاوه. دووتنـــوامريکې يانواودووتنوپاکستانيانوچې هلته يې دنده لرله په کې خپل ژوندله لاسه ورکړاو زماپـه شـمول ۱۳۸ کسـان دسـفارت پـه ودانـۍ کـې چـې اوريـې اخيسـتی وترپينځوساعتونوپورې بنـدپاتې شـوو. موږپـه دې وتوانېـدوچې ځانونـه لـه مرګـه وساتوخودډېروخت لپاره په لړزه اوڅپڅپانده وو.

لـه پېښـې څخـه وروسـته داماليومـه شـوه چـې پاکسـتاني حکومـت دجنـرال ضياالحق په مشرۍ دغه پېښې ته په دواړوپښو ولاړواودپېښـې مخنيـوی يـې ونـه کړ. چې وروسته پاکستانۍ چورلکودسفارت ودانۍ پرسرکشفي الوتنې وکړې اوپه

---

[1] مارټينيز يو ډول شراب دي. ژباړن

اشتباسره يې فکروکړچې تراورلاندې ودانۍ کې څوك ژوندي نه دي پاتې. له کشف وروسته يې ولسمشرضياالحق ته خبر ورکړ چې په ودانۍ کې څوك ژوندي نه دي پاتې نوبهتره ده چې د څو وژل شويو امريکايانو جسدونو د لاسته راوړلو په خاطر د زور څخه کار وانه اخيستل شي. بهتره ده دغې ډلې ته اجازه ورکړل شي چې خپله غوسه سړه کړي او په پای کې په خپله سره خواره واره شي. له پاکستان سره زموږپه اړيکوکې توپيرراغی اوله مجاهدينوسره دامريکې ناڅرګنده مرسته هم په خطرکې شوه. بيا شوروپانو په افغانستان يرغل وکړ. د١٩٧٩ کال د ډېسمبرپه مياشت کې روسانودومره ناسمه پرېکړه وکړه چې دکرملين ماسټرانويې وړاندوينه نه شوه کولی.

دغې پرېکړې دامريکې دولت اړ کړچې دمجاهدينوترشاخپل پوره لاسنيوای پياوړی کړي. او اسلامي نړۍ يې دېته وهڅوله چې له مجاهدينوسره په ليکو کې ودرېږي اوله دوی سره دخپلواکۍ په اخيستلوکې مرسته وکړي.

پرافغانستان باندې دروس له يرغل څخه يوازې څو ورځې وروسته دامريکې دولسمشرکارټرپه لاربښوونه يو دولس کلن لوی پروګرام پيل شو چې دهغې له مخې به په بليونونوډالرمجاهدينوته دنظامي تجهيزاتواوبشري مرستې لپاره ورکول کېږي. چې پاکستان دولت مجاهدينو ته ددغومرستودوېشلومسوليت پخپله غاړه اخيستی و.

کله چې له مجاهدينوسره د ١٩٨٠ کال په لومړيودريوکلونو دمرستې لړۍ ګړندۍ شوه. داموضوع ټولوته څرګنده شوه چې که څه هم پاکستان زموږسره پخپل هدف (دروسانوماتې) کې شريك وخودمجاهدينوله بېلا بيلو ګروپونواودافغان مجاهدينوله قوماندانانوسره يې دمعاملې خپله اجنډادرلوده.

پاکستان حکومت له پيله د(امريکې )دغه کوچني اوپټ عمليات (له مجاهدينوسره مرسته) په افغانستان کې دخپلواوړمهاله سياسي موخودترلاسه کولولپاره يوه ښه وسيله وګڼله اودپاکستان لپاره يوه ساده مفکوره وه. چې دافغانستان سره بايدمرسته وشي څويوپښتون نفوذه. سخت دريزه مذهبي ګوندواکمن شي اوپاکستان وکولی شي په اسانۍ سره ددوی نظريې بدلې اوپخپل منځي موضوعاتويې بوخت اودافغانستان له لارې دېخواني شوروي اتحادله اسلامي جمهوريتونوڅخه دتېلولاسته راوړل اوخپله سوداګري په اسانۍ ترسره کړای شي .پاکستان په ورته حال کې يوارامه لوېديځه سرحدولري. دپاکستان دغې موخې ځينوقوماندانانوته ډېره ګټه ورسوله. دبېلګې په ډول. دګلبدين حکمتيارحزب اسلامي ګوندته پيسې اوتجهيزات ورکړل شواوپه ساده ډول احمدشاه مسعود(له ټولونه ښه تکتيکي قوماندان. لېکوال) به په ساده ډول په ډېر لږ څه غولاوه.

ګلبدین حکمتیاردسخت دریزه عقېدې په لرلوسره په افغانستان کې دپاکستان دستراتیژیکوموخو د ترلاسه کولولپاره تر ټولو ښه لوبغاړی و.
مسعوداودهغه تاجکوپه افغانستان کې له جهادڅخه وروسته یوپراخه نظردرلودچې دپاکستان له غوښتنوسره یې سمون نه کاوه. ددې لپاره چې دغه یوړاخیزقضاوت په نظرکې ونیسي سي ای اې یوپروګرام جوړکړڅوله هغومهموقوماندانانوسره په جلاتوګه اړیکې ټینګې کړي چې دجګړې په ډګر کې اغېزمن وو. او دپاکستان حکومت لخاورته پام نه وشوی د دغو قوماندانانو د نمایندګانو پېژندنه ستونزمنه نه وه. ټولو مهمو قومندانانو په پاکستان کې دمرستې ترلاسه کولولپاره خپل نمایندګان لرل. موږله هرنماینده سره یواړخیزاوپه جلاتوګه اړیکې ونیوې. ناسته مووږسره وکړه اویوې ساده پرېکړې ته ورسېدو. معامله ډېره ساده وه. موږبایدهرقوماندان ته دمیاشتې نغدې پیسې ورکړې وای. (ځینې وخت موجګپوړوقوماندانانوته د میاشتې تر پنځوسو زرو ډالرو پورې ورکولې خوزیات وخت موپنځه زره ډالرعادي قوماندانانوته ورکولې اوپه بدل کې قوماندانانوموږته دجګړېزو عملیاتومیاشتینۍ رپوټ اودپاکستان لخوا له دوی سره د کېدونکې مالي اونغدي مرستولېست راکاوه. هېڅ قوماندان چې ماپېژاندزموږسره دوکه ونه کړه. دوی زموږداړیکودوامداره سرچینې نه وې. په کومه سیمه کې به چې جګړه پای ته ورسېده او یا به جهاد په سیمه کې وګټل شو. نوزموږاړیکې به هم له اړوند قوماندان سره پای ته رسېدلې. دغه پروګرام دوه ګټې لرلې. یوه داچې کوم قوماندان به دپاکستان په ګټه نه و هغې ته به زموږمرستې په نېغ ډول رسېدلې اوبل دپاکستان لخوامجاهدینوته دمرستواو وسلو وېشلودهغه رپوټ سمون اوکړون راته مالومېده چې دپاکستان لخواموږته راکول کېده.
د1988 کال په اوږي کې روسان په افغانستان کې مات شول اوددوی وتل دافغانستان څخه نور یوڅرګندحقیقت و. په کابل کې زموږ سفارت د څو لوېدیځواله سفارتونوله ډلې څخه یوسفارت وچې دیوشمېرپرسونل په لرلوسره یې کولی شول له انقلاب څخه وروسته حالات وڅېړي. که څه هم له سفارت څخه دپرسونل ایستل اوپه پایله کې دسفارت بندول دواشنګټن دلوړپوړوچارواکو موافقه وه او په ورته حال کې دغه کار روسانواوپه کابل کې کمونیستي رژیم ته یوه ځواکمنه او څرګنده ضربه هم وه. په کابل کې دقرارګادرئیس په توګه (خو واشنګټن ته د سفارت په اړه د وروستۍ پرېکړې لپاره منتظر) مې کوښښ وکړچې فرانك انډرسن او په افغاني چارو کې د سي ای اې مشر دې ته وهڅووم چې دسفارت پرسونل هلته پرېږدي خوبریالی نه شوم.
سفارت دبندېدوپه حال کې و. انډرسن اوڅولوړپوړي چارواکي په دې باوري وو

چې له افغانستان څخه به دروسانو وتنه په کمونېست رژيم باندې سخت منفي اغېزولري اودسفارت بندول به دکمونېستي رژيم نسکورول ګړندي کړي. د۱۹۸۶ له مې مياشتې راهيسې دغه رژيم دنجيب الله ترمشرۍ لاندې کارکاوه. نجيب الله د کې جي بې لخوادجوړې شوې افغان څارګرې ډلې يا(خاد)د مشرۍ پر مهال خپل ځان يو بې رحمه وژونکی معرفي کړ. که چېرې نجيب الله دمخالفينولاسته ورغلی وای نودوينوتويلودپخواني ريکارډله مخې به يې يوازې دمرګ هرکلی کړی وئ. نوله دې امله نجيب الله هم نه غوښتل چې جګړه ودروي. سربېره پردې دنجيب الله ځواکونه دمجاهدينوپه پرتله ځواکمن وواودهېواد په کچه ورسره ستراتيژيك اوځواکمن دفاعي ټکي (نقطې) وې.

ماخپلومشرانوته وويل چې دغه جګړه به راتلونکې ته ادامه ولري. که چېرې سفارت خلاص وي. زه موجودوم. په ښار کې د ګرځېدلو له امله به. د روسانو څخه په وروستي افغانستان کې پېښې له نږدې وڅارلی شو.

اندرسن زمانظردلاس په ښورولوسره ردکړاو ويې ويل چې نجيب الله به په ځومياشتوکې له منځه لاړشي اوموږبه خپل سفارت په د ۱۹۸۹ کال په پيل کې بياخلاص کړو. نوبې له کوموتشريفاتواومراسمويې زه له دفترڅخه وشړلم اوزه هم دښه عسکرپه توګه اسلام ابادته لاړم ځودنجيب الله اوهغه دجنايتکاره ډلې دنسکورېدوانتظاروباسم. ولف اندرسن او دهغه ملګرويوځه ناسمه وړاندوينه کړې وه. دنجيب الله حکومت دروسانوله وتلودرې کاله وروسته په ۱۹۹۲ کال کې راوپرځېد.

په کابل کې د امريکې سفارت د طالبانو د ماتې يوه مياشت وروسته په کال ۲۰۰۱ د ډيسمبرپه مياشت کې بيا په کار پيل وکړ!

## اووم څپرکی

په ۱۹۸۸ کال کې زه اسلام ابادته ور وګرځېدلم. مېلټ بېرډن په خوښۍ سره راته هرکلی ووايه او هغه دا حقيقت چې په اسلام اباد کې هغه يوازېنی سي. ای. اې مشر و. څرګند کړ. زما په مغزو کې هغه شک چې مېلټ د خپل عمر په لحاظ په لويه رتبه کې و. شتون نه درلود. زه په لنډوخت کې ترټولولوړرتبه افسرشوم اودافغان استخباراتو دراټولولو(له قوماندانانوسره ديوارخيزواړيکو درلودل. لېکوال) دبرخې مسول شوم. د اوږدې مبارزې لپاره دا زما لپاره ښه فرصت و ځکه چې په همدغه وخت کې ما له احمد شا مسعود سره اړيکې پيل کړې.

په ۱۹۸۰ کال کې کله چې مسعودله پېښورڅخه پنجشېرته روان شو نو د مسعود يو نږدې ملګری او سلاکار تاجک ځوان (مسعودخليلي) له ده سره په

دغه تاريخي مزل کې د لارې ملګرتياوکړه.

په کم وخت کې څرګنده شوه چې خليلي يوځيرك شاعر. ليکوال. په دريو ژبو غږېده. ښه ويناوال او د شمالي افغانستان په غرونو باندې د کلاشنکوف د ښکته او پورته ګرځولو پر ځای هغه د سياسي موضوعاتو د پر مخ بېولو لپاره ښه لوبغاړی و.

خليلي په پاکستان کې دمسعود يو مهم استازی واوپه پای کې په پېښور کې مېشت دبرهان الدين رباني اودهغه دتاجك اسلامي حزب (ښايي جمعيت اسلامي يې منظور وي. ژباړن)لپاره جګپوړی سياسي مشاور وټاکل شو.

د۱۹۸۰ کال په نيمايي کې د سي ای اې افسرانوله خليلي سره وپېژندل او له هغه سره يې د همکاری اړيکې ټينګې کړې. هغه د سي ای اې کوم جاسوس نه و[1]!؟ خوهغه خپلې اړيکې دکمونيستي رژيم له نسکورېدا وروسته دافغانستان په راتلونکي کې له سي ای اې سره دخپلونظرياتودشريکولو له امله خپل شخصي نظر پراخول غوښتل! کله چې زه د ۱۹۸۸ په وروسيتو کې اسلام اباد ته را وګرځېدلم. خليلي ته وروپېژندل شوم او اسلام اباد ته د هغه د هر رسمي سفر په مهال به مې له ده سره ليدنه کوله.

له خليلي سره زمادپېژندنې لېوالتياپه دې کې نه وه چې هغه د مسعود نږدې سړی دی. له مسعودسره خوموږدهغه د ورور احمدضيا په واسطه (له قوماندانانوسره ديواړخيزواړيکو) له مخې اړيکه لرله. له خليلي سره زما د پېژندنې لېوالتيا د مجاهدينو د ګروپونو سره د هغه د پراخه اړيکو او د هغه قوماندانو او سي ای اې ترمنځ د هغه په منځګړېتوب کې چې سي ای اې يکې لېوالتيا لرله. وه. دځواونيوپه تېرېدوسره زمادخليلي ترمنځ ځانګړې ملګرتياجوړه شوه او زما اودده ملګرتياددې لامل شوه چې د سي ای اې سره د هغه د مرستې لامل په ډاګه کړم.

هغه په ټينګ باور سره له مجاهدينوسره د(سي. ای. اې) مرسته دروسانوماتې ګڼله. هغه په دې هم باوري وچې پاکستانيانو د سي ای اې دغه پروګرام يو فرصت ګاڼه څو د پښتنو مجاهدينو په ګروپونو په ځانګړې ډول په هغه ډلو کې چې سخت دريزه مذهبي عقيدې لري. خپل نفوظ زيات کړي.دخليلي په باور کله چې کمونستان مات شي پاکستان به له خپلوپښتنوملګروسره لاسنيوای وکړي ځودواك واګي دوی ترلاسه اوتاجك او نور عقليتونه دتل په شان په دويمه درجه کې پاتې شي.

خليلي له سي ای اې سره داړيکو لرلوله مخې دخپل بريالیتوب په زر ترلاسه

---

[1] سي ای اې هغه اورګان دی چې پرته له ځانګړې موخې له چا سره اصلاً د اړيکو نيولو اجازه نه لري. ژباړن

کولوډېرباوري و. سي ای اې ته د هغه ښو قوماندانانو ورپېژندل چې دپاکستان په خوښه نه و. دی په دې باوري کاوه چې دغه قوماندانان به دکمونیستي رژیم له نسکورېدو وروسته دسیاسي جګړې په ډګرکې د پاکستان په خوښه د پښتنو قوماندانانو په وړاندې د مقاومت لپاره ښه سمبال وي. د خلیلي اړیکې د قوماندانانو سره د یادولو وړ وې. دخلیلي پواسطه موړکولی شول چې دهېواد په کچه له ټولو توکمو مهموقوماندانانوسره لکه دشمال ازبك. دجلال اباد د پاکستان او افغانستان تر منځ د سرحدي سیموپښتانه قوماندانان اوحتی د کابل په لوېدیځ کې له شیاقوماندانانوسره موهم دده په لاس اړیکي ټینګولی شولې.

خلیلي [1]په ربښتیاهم یو افغان هېوادپال و او دی او دغه حقیقت یې د خپل ځلوریشت کلنیز خدمت او قربانۍ په واسطه څرګند کړ!

خلیلي په کال کې دوه ځله دپاکستان دچترال له غرنیوسیموښکته د اس په شا دپنجشېردرې ته د مسعود د لېدنې لپاره سفر کاوه. دا یو له خطره ډک او اوږد سفر و چې د تنګو لارو له امله یې اته ورځې نیولې. په سیمه کې شورویانو د هوا له لارې په زرګونه کوچني مځکني ماینونه راغورځولي ول او د هر سفر پر مهال د یوه اس یا د کچر له لاسه ورکول او یا د سړي لپاره که چېرې د ښې کارول شوې اوتنګې لارې څخه وتلی وای د یوې پښې دلاسه ورکول عادي وو!هغه له ماهم په شوق غوښتل چې یوځلې له خلیلي سره یوځای سفروکړم اوله مسعودسره مخامخ وګورم خوخپلومشرانوراته(د خطر د اخیستلو وړتیا نلري) له امله اجازه نه راکوله. څوکاله وروسته پوی شوم چې د نوموړو سفرونو پر مهال خلیلي مسعودته زمایادونه کړې وه اوهغه باوراودرناوی چې خلیلي ماته درلودمسعودته هم ولېږدېده. داهغه څه وو چې زما اود سي ای اې لپاره یې په راتلونکي کې ښه خدمت کاوه. د۱۹۹۰ دجون په میاشت کې ماپه ریاض کې دزون دمرستیال په توګه دنده واخیسته اوددغه کال داګسټ په میاشت کې زمالپاره د خلیلي پرېښودل په پاکستان کې زما د وخت تر ټولو سخته او غمجنه برخه وه ځکه چې هغه یورېښتینی ملګری و او په افغانستان کې دنجیب الله حکومت د سرټمبه مقاومت له امله حالات غمجن ښکارېدل. داحمدشاه مسعود شمالي ټلوالې د ځواکونو اوګلبدین حکمتیار او د نورو وړو سخت دریزه پښتنو ګروپونو ترمنځ شخړې په زیاتېدو وې. له دې امله د افغانستان څخه د روسانو د وتلو ستره خوشالي او د کمونستي رژیم په وړاندې د ژر کامیابۍ هیلې له خاورو سره خاورې شوې. دا هم ښکاره وه چې د متحده ایلاتو حکومت هم د افغانستان څخه خپل لاس راپرې کاوه او د روسانو سره د دواړو جګړه کوونکو خواو ته د

[1] خلیلي په هندوستان کې د حامد کرزي د دولت پر مهال د سفیر په توګه د دولت د استازیتوب پر ځای د جمعیت بیرغ د سفارت په ودانۍ ځوړاوه. ژباړن

مرستې او همکارۍ د بندولو پر څرنگوالي باندې جدي خبرې اترې روانې وې. د هغه شپېې ليدل چې گټلو ته يې ډېرو کسانو زياته قربانۍ کړي وي او بيا له منځه ځي. ډېر گران وي. زماپه اند زما تگ خليلي ته هغه حقيقت چې سي ای اې د مجاهدينو سره د ملاتړ پروگرام. داسې پروگرام چې خليلي ورته تېر لس کاله ځان وقف کړی و پای ورکوي. څرگند کړ. ما د خليلي سره د بيا ليدنې هېڅ هيله نه درلوده. زه په هغه حقيقت چې د خليلي سره به د راتلونکو شپږو کلونو پر مهال زما اړيکې دوام او بيا به هم ډېر اهميت لري. هېڅ نه وم پوهېدلی.

## اتم څپرکی

د۱۹۹۲ کال داگسټ په مياشت کې وروسته له هغې چې زمادنده په رياض کې پای ته ورسېده. زه لينگلي ته راوگرځېدم څو دنويوعملياتوچې (ايران دعملياتوځواك) نومېدل د مشرۍ مسوليت په ـغاړه واخلم.

د۱۹۹۲ کال داپريل په مياشت کې کابل دمسعود تاجکوځواکونولاسته ورغی اودنجيب حکومت له منځه لاړ. هغه وړاندوينه چې گڼونکې مجاهدين به د کمونسټانو په وړاندې د بدل اخستنې لپاره ستره وژنه ترسره کړي. سمه نه وه. نجيب دملگروملتونودفترته پنا يووړه اود هغوی په يوه کلا کې په غيررسمي ډول ترڅلورکلونوپورې نظربندپاتې شو څودمجاهدينو نوی رامنځ ته شوی دولت دنجيب په اړه پرېکړه وکړي.

کله چې طالبان کابل ته په کال ۱۹۹۶ او د سپټمبر په وروستيو کې ورننوتل. دهغوی ترټولولوړمړی گام دملگروملتونودفتر ته په زورننوتل وڅو نجيب له دفترڅخه په کشولوراوباسي اوترټولوسخته او وحشيانه سزا ورکړي.

په ټايم مجله کې هغه انځور چې ډاکټرنجيب الله په کې دسړك پرغاړه له ولاړې متې په ناوړه توگه راځوړند و. لويديځ ته دطالبانودغوښتنوڅرگند پيغام و.

برياليومجاهدينود حزب اسلامي د ليډر(ښايي مراد يې جمعيت اسلامي وي. ژ) ربـاني ترمشرۍ لانـدې پـه بيړه يـوه نـوې اداره را مـنځ تـه کړلـه او احمدشـاه مسعوديې ددفاع وزير وټاکه.

خليلي اوس مهال په پاکستان کې ددغه نوي دولت سفيروټاکل شو. کله چې مجاهدينودنوي دولت ځواکمن او واگي يې په لاس کې واخيستل. سي. ای. اې ته په رسمي ډول امر وشوچې له مجاهدينوسره دمرستې دولس کلن پروگرام ته پای ورکړي. تر دغه وخت پورې د مجاهدينو لپاره د پخواني جوړ شوي پروگرام(د مجاهدينو سره د مرستې پروگرام. ژ) يوازې نوم پاتې و. زموړلپاره ددغه پروگرام

بندول په دا مانا چې د هغومجاهدینوسره چې موږ ورسره معاملې کړې وې.
اړیکه ونیسواو خدای په اماني ورته ووایو خوپاکستانیانوته په کابل کې د روانو سیاسي حالاتو له امله فرصت په لاس ورغی ځوپه افغانستان کې خپلې اجنډا (موخې) ته دوام ورکړي. پاکستان له ګلبدین حکمتیارسره چې دنوي دولت دبهرنیوچارو وزیر ټاکل شوی و اوددې ترڅنګ یې له نورو سخت دریځوپښتنو مشرانو ته د مرستې ورکولو ته دوام ورکړ څو دنوي تاجك دولت او نورغیر پښتون پروړاندې وجنګېږي. پروفیسور رباني اواحمدشاه مسعوددپاکستان له دغومرستوڅخه بې برخې واوبې له شکه چې دغه ډول حالاتوخپل منځي جګړې ته هرکلی وایه.
د۱۹۹۲ کال په نیمایي کې داحمدشاه مسعوداوګلبدین حکمتیارترمنځ دکابل په لوېدیځه برخه کې جګړه پیل شوه. دڅومیاشتوپه اوږدوکې دکابل ښارویجاړاوودانۍ په ودانۍ ړنګ او په لوټو او خاورو بدل شو. چې د هغې ورانۍ ځیني برخې خو لا تراوسه هم د کابل په ښار کې لیدل کېږي.
دپاکستان دغه ډول مرسته له ګلبدین حکمتیارسره ډېره بې شرمانه وه اوخلیلي په پاکستان کې خپلوخلکواونړۍ ته له دغومرسته څخه دپردې په پورته کولوکې ډېرفعال و.
پاکستان دخلیلي دغه ډول کړنې سترې کړ(ویې نه زغملې) نوخلیلي اودده کورنۍ دپاکستان لخوا ونیول شوو. د څو ورځو لپاره ددوی د اوسېدلو ځای تنګ و .کورنۍ یې هم وځورولە. په پای کې دی له بند څخه ازاد شوخو اته ځلویښت ساعته وخت ورکړل شوچې دپاکستان له خاورې څخه ووزي. خلیلي دامریکې د تابیعت په لرلوسره وکولی شول چې خپله کورنۍ دامریکې شمالي ویرجینا ایالت ته ولېږدوي. کله چې زه امریکې ته دخلیلي له راتګ څخه خبرشوم. نو سي ای اې دفترته مې خبرورکړ.کوم رسمي دلیل نه وچې ما اوخلیلي یې بایدله مخې سره لیدلي وای. یوازې ددوملګروټولیزه لیدنه وه.
مابه په میاشت کې یوځل له خلیلي سره دغرمې ډوډۍ خوړله. هغه درسنیو سره ښې اړیکې ساتلې او د افغانستان دولت ته به یې کار کاوه. ځینې وخت خو به دومره په زړه پورې څه ویل چې یو ځوک به د هغه په هېواد کې د روانو چارو د څرنګوالي په اړه د پوهېدلو لپاره ورته غوږ نیوه. د ۱۹۹۰ په نیمایی کې د افغانستان خبرونه د وروستي مخ خبرونه وو او دا د جګړه سالارانو ترمنځ په یوه ډېر وران شوي او وروسته پاتې هېواد کې هغه نانداری وې چې دجګړې لپاره په کې ډېر لږ اویا هم هیڅ څه شتوالی نه درلود. خلیلي په خپل هېوادکې د روانو حالاتو څخه سرټکاوه او خلیلي لکه د زیات شمېر نورو افغانانو په څېر د هغه حقیقت چې د متحده ایالاتو دولت او سي. ای. اې د مجاهدینو سره د بریالیتوب

د راوړلو لپاره ځومره مرستې وکړې او اوس مهال چې بریا یې ترلاسه کړله لیرې ولاړ دي او د هېواد په غمېزه کې د رادانګلو څخه انکار کوي. سخته کرکه کوله.
دده له نوموړې سردردۍ سره سره زموږترمنځ ملګرتیاهمغسې توده وه. ما له خلیلي سره دده په ستونزوکې پرته له غمشریکۍ نورهېڅ مرسته نه شوای کولی. موږپه افغانستان کې نه سي. ای. اې پرسونل اونه هم سفارت درلود. او ما هم دغه پړه پرځان منله. دافغانستان په اړه زموږڅانګوچې په اسلام اباد کې وې ډېرکم مالومات راکول. دهغوڅانګوډېرپام نشه یې توکیواوړوندچارو ته وه.
په ۱۹۹۴ کال کې زه اروپاته د(ایراني عملیاتو) په دنده وګومارل شوم اوبېټسي ته هم په اروپا کې جي اېس او یا عامه خدماتو په څانګه کې مهمه دنده ورسپارل شوې وه.موږدواړه اروپاته دتګ له امله خوښ و. زه له خلیلي سره بیاخدای په امانی ته اړشوم. وروسته خلیلي دافغانستان دولت لخواپه هندکې سفیرکړای شو. هغه د ددغه دندې لپاره وړ شخص و. په هغه وخت کې دا حقیقت چې موږ به د دندو له امله له یو او بل سره بیا مخامخ کېږو. ناشونی ښکارېده.
ماپه اروپاکې دځلوروپینځوکالولپاره دپاتې کېدوهیله درلوده. خو په ۱۹۹۵ کال په اکتوبر کې دسي. ای. اې په لوړپوړوچارواکوکې دناڅاپي بدلون راغی. په اسلام اباد کې سیمه ایزه مشر د لوړې دندې د مشرۍ په غاړه اخیستلو لپاره قرارګاه ته ورغی او ماته امر وشو څو د هغه ځایناستی شم. دا یوه دنده وه چې ما ترې انکار نشو کولی. ما هر وخت دغه دنده غوښتله. زه او بېټسي په نوموړي دنده باندې وغږیدو.که څه هم چې زموږ تر منځ بل بیلتون سخت و خو دنده ډېره ارزښتناکه وه او د ۱۹۹۶ کال په جنوري د پاکستان په لورې وخوځېدلم.
د۱۹۹۶ کال داګست په میاشت کې مابیا دافغان اوپاکستان د سرحدي سیمو دعملیاتومسولیت پرغاړه واخست. په هغه وخت کې دپاکستان ډېرپام کورنیو حالاتو ته و. سیاسي بدلون هم له نږدې څارل کېده خود پاکستان تمرکز دهندوستان سره په اړیکو و. د هندوستان لخوا د نیول شوي کشمیر ي جنګیالیوسره د هند د پوځ په وړاندې د پاکستان پټې مرستې. دهندوستان اوپاکستان ترمنځ اتومي جګړې ته ښه راغلاست وایه. دپاکستان حالات خراب واو د هر واکمن سیاسي ګوند له امله د زیات اداري فساد په کراره خو په ډاډ سره د بربادۍ په لور روان کړی و. د دواړو لویو ګوندونو--دنوازشریف ترمشرۍ لاندې دمسلم لیګ اودبېنظیربوټوترمشرۍ لاندې دپاکستان د پیپل(خلک) ګوند د هغوی د واکمنیدو پرمهال د اداري فسادترمنځ کوم توپیرنه و. له دې دووګوندونوڅخه به چې هریوپه واك کې و. کوښښ به یې کاوه چې هر ځومره زیاتې پیسې بهرنیو بانکونو ته واستوي.

په ۱۹۹۴ کال کې کله چې دګلبدین سخت دریزه قوماندانانو د مسعود د شمالي ټلوالې لخواماتې وخوړه نوپاکستان دغه ماتې دخپل سیاست ماتې وګڼله. همدالامل وچې د ۱۹۹۴ په نیمایی کې پاکستان دملامحمدعمرترمشرۍ لاندې دطالبانو نوی پیدا شوي تحریک ته پام واړوه.

دطالبانوتحریک له هغوسخت دریځومدرسوڅخه چې په بلوچستان او د پاکستان په شمال لوېدیزو ولایتونوکې وې راوپارېد. په سلګونومدرسو بې کوره افغان اودپاکستان غریبوماشومانوته کور. ډوډۍ اومذهبي درس ورکاوه. له دغومذهبي مرستوسره دپاکستان دسخت دریځه سیاسي ګوندونو او په سعودې کې د بسپنې د څو لویو مرکزونو څخه ورسره شخصي مرستې کېدلې. په دغومدرسوکې زده کوونکیوته سخت دریځه. جدي اوحتی د اسلام د بې فکره بڼه ور ښوول کېدله. ملامحمدعمردمجاهدینوله وخته یوتجربه کار جنګیالی و. هغه د جګړې یو ریکارډ جوړ کړ چې هغه ته یې په قران کې د زیاتې پوهې شهرت ورکړ. په ۱۹۹۴ کال کې ملامحمدعمرخپل عملیات کندهارته وغزول اوپه ورو. ورو یې د رشوت خورو او بې قانونه قوماندانانو په وړاندې جګړه پیل کړ. په لومړیووختونوکې خلکودملامحمدعمر تود هرکلی وکړ. ملامحمدعمر له ځان سره ملګري راټول او دطالبانو نوم یې ورکړ.

پاکستان دطالبانوتحریك له مخې په افغانستان کې خپلې سیاسي موخې ته رسېدل شوني وګڼل اوله دې امله یې خپله ټوله مرسته طالبانوته متوجه کړه.

دپاکستان له دغه ډول مرستې سره طالبان په ثابت اوګړندي ډول دافغانستان سویلي ولایتونو واګې لاسونو ته ورغلل.

د۱۹۹۶ کاله په نیمایي کې طالبانودهېوادپه درېیوکې دوه برخې په لاس کې واخیستې. دطالبانوتحریك چې دپاکستاني اوعرب جنګیالیو پواسطه ځواکمن و. دکابل په څنډوکې یې ځواکمنې دفاعي لیکې جوړې کړې او افغان اداره چې په هېواد باندې یې نازکه والکه لرله. له ګواښ سره مخامخ کړله.

د۱۹۹۶ کال داګست ترمیاشتې پورې دامریکې حکومت په افغانستان کې دسیاسي بدلونونو څخه اندېښنه نه درلود ه.

د متحده ایالاتو حکومت په افغانستان کې یوازې په دوه برخو کې لېوالتیا درلودله. یو په دغه هېواد کې د مخدره موادو د سخت زیاتوالي او بیا له دغه سیمي اروپا ته د مخدره موادو لیږد و. دا حقیقت چې افغانستان د نړۍوالو ترهګرو د پټېدلو لپاره لویه سرپناوه، راڅرګندیده.

په هغه وخت کې په اسلام ابادکې بې ساري عملیات پیل شول. ددغوعملیاتویوه برخه یې په افغانستان پورې اړونده وه چې هغه دمیرعمل قاسي ښکارو.میرعمل قاسي هغه پاکستانی بلوچ وچې دامریکې په مکلین.

ويرجنيا په ۱۲۳ سړک. په کال ۱۹۹۳ د جنوري په درويشتمه سهار د سي. ای. اې مرکزي قرارګاه په عمومي دروازه کې دسي. ای. اې دوه تنه مامورين مړه اودرې نوريې ټپيان کړل. ميرعمل قاسي پاکستان ته په تېښته بريالی شو. سي. ای اې اوایف. بـي. ای لـه ډېروهڅـو سـره سـره دهغـه په نيولوبريـالي نـه شـول. هغـه دخپلوبلوچوملګرولخواساتل کېده. چې د افغانستان او پاکستان په سرحدي سيمو کې د کوټې او کندهار په سيمو کې يې خوځښت کاوه.

اسـلام ابـاد يوافغـاني ګـروپ دميرعمـل قاسي دښـکارلپاره جـوړاو سي ای اې ورسره ددغه ګـروپ په جوړولـوکې موافقه وکړه. دغه ډلې د طالبانو په اړه په سيمه کې د طالبانو د شخصيتونو او د هغوی د فعاليت څارګره مالومات راوړل او د ځو سي. ای. اې څېړونکو افسرانو دلېوالتيا سبب ګرځېده . موږ په اسلام اباد کې د طالبانو او په افغانستان کې پر حالاتو د پوهاوي لپاره کار پيل کړ.

که څه هم چې دغه ګروپ ونه توانېده چې قاسي ښکارکړي. خو ما د اف بـي ای سره د هغه عملياتو په رهبري کې د هم غاړېتوب څخه خوند واخست چې په پايله کې په کال ۱۹۹۷ د جون په مياشت کې مېرعمل ونيول شو. په دې عملياتو کې د سي. ای. اې د ونډې د اهميت په څرنګوالي د پوهاوي لپاره  ددغه کېسې ويل اړين دي.ما تـه واضـح وه چـې يـوه ورځ خـو ژر د متحـده ايالاتو حکومت بـه هغه حقيقت ته چې طالبـان د افغانستان د پـوره اداري کولـو تـه نـږدې دي . کلـه چې پـوره ځـواکمن شـو. هغـوی بـه افغانستان د نړيواله ترهګرو لپـاره پـه يـو بـې مثاله ځاله بدل کړي. راوبنښ شي. ورپسې بـه د کانګريس نعارې او ژړا چـې ولـې سي. ای. اې نوموړی حالت له پامه غورځولی دی. راوپاريږي.

موږبايد د سياسي پرمختګ په اړه د مالوماتو په ورکولو پيل کړی وای. پوښتنه دا وه چې څنګه دواشنټن خپل لږ پام دغه هېوادته راواړوو؟ ددغـه ډول هڅـې د پيل په پام کې نيولو سره مو ځو عامله او فکټورونه مخې ته پراته ول.

په سويل کې طالبانودجنـګ سالارانوبې وسلې کـول پيـل کـړل اوطالبانودغـه عمل ددې لپاره په ټولنه کې دمنولو وړو چې ټولنه دشـل کلـن جنـګ څخـه سـتړې وه. طالبانوپه لومړيووختونـوکې ښـه شـهرت درلودخودوخـت پـه تېرېداسـره خلـك ددوی نه هم ستړي شـول.دطالبانوله تنګ نظرۍ څخه چې داسلام پـه نـام يـې کوله خلك ستړي شول.

زيـات قـومي مشـران دطالبانولـه دغـه کړنلارې څخـه سـتړي واوداهغـه قـومي مشران ووچـې پـه زړه ورتـوب سـره دروسـانواودافغان کمونيسـتي ژريـم پروړانـدې جنګېـدلي ول. زه ډاډه وم چــې دشـرايطوپه برابرېدوسـره بــه نومــوړي قــومي مشـرانوحتماً لـه سـي. ای. اې سـره دطالبانوپروړانـدې لاسـنيوای کـړی وای. خـو پـه سويل افغانستان کې د طالبانو د سختې ادارې  په نظر کې نيولو سره بـه داډول

اړیکې له ستونزو خالي نه وای.
په شمال کې دتاجکونظامي ځواك دطالبانوپرواندې په جګړه کې نښتی و خوله بهرځخه دمرستې له نشتوالي يې هغه ورو په وروتوته کیدواوشاتګ ته اړ کړ. دشمال له قوماندانانوسره اړیکې نیول هم یوځه ستونزمن وخوزه ډاډه وم چې هغوی به له سي ای اې سره دلاسنیوي تازه کولو ته حاضر شي.
ماپه دې ترتیب فکروکړچې دانتقالي دولت له دفاع وزیر احمدشاه مسعودسره اړیکې ونیسم ځکه چې مسعودترټولوځواکمن قوماندان واود په شمال کې يې د هر توکم ګروپونو له مشرانو سره اغېزمنه اړیکې لرلې. د هېواد په کچه يې د غیر تاجک قوماندانانو سره هم اوږدمهاله اړیکې لرلې.
مابایدواشنتېن ته له مسعودسره داړیکوټینګولولپاره یومعقول دلیل وړاندې کړی وای ځکه چې واشنتېن له طالبانوسره کارنه درلود خودواشنګتن اندېښنه دنړیوالوترهګرو لکه اسامه بن لادن اودهغه ملګروته وه چې طالبانوساتلي وو.
د ۱۹۹۶ کال په مې میاشت کې اسامه بن لادن دامریکې د زیات فشار له امله خپله عملیاتي قرارګا له سوډان ځخه افغانستان ته ولېږداو بن لادن په افغانستان کې د پخوانیو فعالیتونو په اساس دغه هېواد د ځان لپاره ښه امن ځای وباله. افغانستان ته دهغه له رسېدوسره سم اسامه بن لادن دسخت دریځه جهادي قوماندانانولکه پروفیسورسیاف اویونس خالص میلمه شو.
د اسامه د جهاد باورلیک او د لوېدیځې نړۍ سره د هغه مخالف دریځ او دپیسولوی صندوق په لرلوسره ملامحمدعمرهغه خپل ګران میلمه وګاڼه.
په ۱۹۹۰ کې پاکستان افغانستان اوسرحدي سیمووزیرستان ته دنظامي زده کړوپه موخه دخپلوکشمیري جنګیالیولېږل پیل کړل. دپاکستان دولت لپاره دغه خوځښت له ماناډك و. داځکه چې دنړیوالې ټولنې اودامرېکاله دولت ځخه په پاکستان فشارو چې دکشمیري جنګیالو(د خپلواکې جنګیالي) کمپونه له خپل ملك ځخه وباسي.
زیات عرب ترهګر چې له خپلوملکونوځخه په منډه کې وو په دغه کمپونوکې چې کشمیري اوپاکستاني خپل خوښو (داوطلبو)په کې زده کړې کولې ځای پرځای شول. د اوسنیو لویو ډلو ترمنځ د اړیکو سرچینه له هغه وخت پیل شوې وه. کله چې د ۱۹۹۶ په نیمايي کې د ترهګرو دغه تور جوړښت په راځرګندېدو شو. اسامه بن لادن د سي. ای. اې اصلي هدف وګرځېد.
په افغانستان کې داسامه شتون له مسعود سره په کابل کې زما د لیدنې لپاره معقول دلیل پیدا کړ ځو د اسامه او په افغانستان د بهرنیو ترهګرو په وړاندې د سي. ای. اې سره د هغه د مرستې د کولو توان او د هغه رضایت وسپیړو!

زه پوهېدم چې زماپخوانی دوست خلیلي چې تراوسه په نوي ډهلي کې افغان سفیر دی د مسعود سره د یوې مثبتې او بریالی لیدنې په دایرولوکې اړین کس وي. مادغه وړاندیز په یوه تلگراف کې د تروریزم پروړاندې دمبارزې مرکزته ورولېږه. هغوی خپله د نوموړي سفر لپاره د بودیجې ورکولو هوکړه وکړله.

# نـهم څـپـرکـی

خلیلي هم د نوموړي وړاندیز له امله خوښ و او له وړاندیز رسېدا وروسته یې یـوازې د یـوې ورځـې پـه بهیـر کـې لـه احمدشـاه مسـعود څخـه دجلسـې هـوکړه راواخېستله .په دومره بیړه سره د دغه کار ترسره کولو سره یې زه هم حیران کړم. مـا فکـر کـاوه چـې دسـي، ای،اې سـره بـه دده دویـم ځـل اړیکـې دده دټـلـوالې لخـوادومره پـه بیـړه تصـدیق نـه شـي ځکـه چـې امریکـې پـه کـال ۱۹۹۳ کـې د مجاهدینو سره اوړدمهاله مرسته ودروله خوخلیلي په دې نظروچې دافغانستان په چاروکې دامریکې دحکومت لاس لرل گټوردي. د کلونو په تېرېدا سره هغه ما ته تکراړ ویل چې دامریکې حکومت به په افغانستان کې د پېښېدونکو پېښـو لـه امله خپله ونډه بیا را ژوندی کړي.

پـه کـال ۱۹۹۶ کـې مـااوخلیلي پـه هندوسـتان کـې زمـوږ د لیدنې اوکابـل تـه د سفر لپاره نېټه وټاکله. ما د دغه ترتیباتو د نیولو لپاره لـه قرارگاه او د نـوي ډهلـي سره اړیکه ونیوله. او ما او خلیلي هلتـه پـه کـال ۱۹۹۶ د سپټمبر پـه وروسـتیو کـې سره یو ځای شوو. زه پوهېدم چې مسعودبه دامریکـې لـه دولت څخـه د طالبـانو پـه وړانـدې دسیاسـي اومـالي مرسـتې هیلـه وکـړي خومـاخلیلي تـه وویـل چـې پـه امریکـې کـې خـوك اوس مهـال نـه غـواړي چـې نومـوړي موضـوع مطـرح کـړي خوداسامه اودهغه دملگروپه نیولو باندې دامریکې حکومت د بهرنیو چارو وزارت د ځار لاندې انعامونه ایښي که دغه کاروشي دمسعودپه گټه به وي. کابـل تـه زه اوخلیلي له هندوستان څخه یوځای په یـوازینی الوتکه اریانا بوینگ-۷۲۷ ا لوتکه کې راغلو. دغه یوازینی وسپله وه. الوتکه زړه وه او ښه ساتنه یې نه کېدله او په مینځنی خونه کې یې یوازې دېرش چوکی درلـودلې. د الـوتکې وړانـدېنی برخـې په لورې ټولې سره غونډې شوې وې.د اصلي دهلیز باقي برخه د کارگو لپـاره لکـه لوی او واړه صندوقونه. لرگین کریټونه. او په نازکه بوجیو کې تـړل شـوي بکسـونه ټول په منځنی برخه کې په غیر منظم ډول دلی‌او په یـوه زاړه ترپـال پټـی بانـدې

خوندي شوي وو.کله چې ماخليلي ته په دغه الوتکه کې دسفرکولو د خطرپه اړه خبرې کولې. دهغه يوازېنی ځواب داوچې ګيري دومره اندېښنه مه کوه. دغه الوتکه تراوسه هرځای ته خوندي سفر ترسره کوي او ځان يې په سيټ کې ارام کړ. زه هم چوپ شوم او قمربند مې وتړه.

پرته له ځينې عجيبه اوازونو او د اوسپنې د زګېرويو څخه تربګرامه مو سفر بې له کومې پېښې پای ته ورسوه. بګرام هغه نظامي هوايي ډګردی چې له کابل څخه دېرش ميله واټن لري. دروسانواوله هغه څخه وروسته دنجيب دحکومت يومهم پوځي ډګرو.

په دغه ډګر باندې په تکرار ډول ډېرې جګړې شوي دي. په راکټونو. بمونو او په توپونو باندې لګېدلی او ويجاړ شوی دی. هوايي ليکه يې په داسې حال کې چې موږ د موټړوان رارسېدلو ته انتظار و. ګونځې ګونځې شوې وه. په تېرو بهترو کلونو کې دغه ډګر باندې د بيا جوړونې هېڅ کار نه و شوای. ماداريانااالوتکې مامورين ليدل چې په بې مهارته توګه يې بکسونه دمځکې پرمخ ښويول او ډګر ته يې د اوردې شېبې لپاره کتل!

په هغه ليکه چې موږ پرې ولاړ و. ژور غارونه شوي وو. د الوتکو څو ګراجونه وران او دېوالونه يې را لويدلي وو. دهوايي ډګر په څنډوکې پوځي الوتکې ګډوډې په داسې حال کې چې ويجاړې. کباړ شوې او په ځای پاتې وې.(۱)

کله چې موږدبګرام په هوايي ډګرکې منتظرو. دمسعوديوه اېم اې جې ۲۷ [1]چورلکه چې پوځي نسواري رنګ يې ورکړی و او يو دانه دوه سوه پنځوس پاونډه بم يې درلود. پورته اودختيځ په لورې يې الوتنه پيل کړه. طالب ځواکونو د جلال اباد له لورې د کابل په خوا رانږدې کېدل. همدارنګه د ښار په لويديځ او سويلي برخه کې دفاعي کرښې يې هم تر فشار لاندې راوستلې وې.

فعلاً حالات په سيمه کې ښه وو خو د طالبانو ځواکونه ډاډه ښکارېدل او په کراره خو په تدريجي ډول يې پرمختګ کاوه په ځانګړي ډول د ختيځ له لورې.سروبی چې د کابل او جلال ابادد لويې لار په نيمايې کې دی. وړوکی ښار و خو د همغه استقامت څخه يې ښار ته عمومي لاره کنټرولوله. د برېښنا کوټ چې دکابل ښار ته برېښنا ورکوي په سروبي کې په همدغه لاره باندې د سيند په غاړه موقيعت لري. نوموړی بند د طالبانو لپاره مهم هدف و او همدرنګه د جهاد پر مهال د مجاهدينو لپاره هم يو مهم هدف و.

---

[1] ميګ 27 روسي جوړ الوتکې دي چې د روسانو له وخته په افغانستان کې پاتې دي. ژباړن

(۲)دغوالوتکې په ۲۰۰۱ کال پورې پرتې وې. کله چې د متحده ايالاتو هوايي ځواک په هوايي ډګر کې د ټولو روسي الوتکو د بمبارۍ پرېکړه وکړه، ژامې ماتوونکې ګروپ ته يې يوه اندازه ستونزې راوپارولې.

کابل ښارنږدې هره ورځ د پوره سپټمبر میاشت د طالبانو لخوا تر راکټي بریدلاندې نیول کېده. خوخلیلي وویل چې حالات خوندي دي. هغه وویل چې کابل لوی ښاردی زه اوته کوم مهم هدف نه یو او پرته له دې طالبان هسې هم هدف نه شي ویشتلی.(زماګروپ د کال ۲۰۰۱ په سپټمبر کې هم همدا ډول خبرې اوریدلې ). له دغه ډاډ سره زه یو څه ارام شوم .د موټر چلوونکي د رارسېدا په هیلـه انتظـاروو.زموږموټروان ممتـازهم راورسـېد. مـوږ یـې د خلیلـي کـور تـه ولیږدلولو. دمسعودسره لیدل هم نږدې وخت کې شوني و.

په افغانستان کې هرڅه خپله همغږي لري. دکار د ترسره کولولپاره لیدنې او پلانونه ترسره کېږي خو وخت ته ډېره لږه پاملرنه کېږي. فکرنه کوم چې هېڅ دوه افغانان چې له یواو بل سره وعده کوي ځانګړي وخت ته په کې پاملرنه وکړي یوازې د ورځـې کومه برخه دبېلګې په ډول (دسهارلخوایادماسپښین لخوا) سره یـادوي. کلـه چـې افغانـان دکوم بهرنـي سره وخـت ټـاکي دوخـت ټکـی پـه کـې ذکرکېږي. د شپې لپاره بهرنی خوشاله ساتي خو بیا وروسته هوکړه شوی وخت اصلاً په پام کې نه نیول کېږي.

د کلونو په بهیر کې ما دغه حقیقت ته د (افغاني وخت) نوم ورکړ. او ما باور درلود چې د مسعود سره د لیدنې لپاره د ژر کلمې ذکر هم د همدغه کټګورۍ لاندې راځي.

دماسپښین نږدې څلوربجې به وي چې موږدخلیلي کورته ورسېدو. وروسته دخلیلـي پـه کـورکې وګرځېـدو. دغـه کـورخلیلي تـه لـه خپـل پلارڅخـه ورپـاتې واوبیارغونې ته یې ډېره اړتیالرله.

موږدچاې له څښلو وروسته انتظارشوو. دماښام په اووبجو خلیلـي مزدورانـو ډوډۍ چې کباب. وریجې. پېرونـي اوخونـدورختکی پـه کـې و راوړه او ومـو خوړله. وروسته خلیلي خپل ځان د ورځني ژورنال په لیکلو بوخت کړ او مایې د لوستلو هڅه وکړله.

نیمه شپه یوناڅاپي خلک د حیرانیتا او ویرې په ډول هاخوا دیخوا بوخت شول. موږ ته د مسعود سره د لیدنې لپاره امر وشو!

موږتـه دوه ټویوټـا لنـډکروزر راغلـل یـویې زمـااوخلیلي لپـاره اودویـم یـې دهغوڅلورو وسلوالوکسانولپاره وچې زه اوخلیلي یې بدرګه کولو. موږیې موټرته ورټېله کړو. موټر دکابل په تورو کوڅوکې ګړندي روان او په جمپونو ښکته او پورته غورځېده. د سړکونو د خرابۍ له امله په موټرکې ښکته اوپورته کېدلو خوله دې څخـه زیـات نـاوړه حالـت یـې بیاپـه پـاټکونوکې و چـې وسـله وال اومجهزځـوان مجاهدین سرتېري په کې ولاړو. یوسرتېری به یې د موټر ښیښې ته په داسې حال کې چې نورو به یې کلاشنکوفونه تیار نیولي وو. د شپې د پټې کلمې د تبادلې

لپاره راغی.

دغو ساتونکو د طالبانود همکارانو په لوی لاس د ورانکاری د ویرې له امله د شپې شپفر ډېر جدي ګاڼه. زه پوهېدم چې دغه قهرجنوافغانانوته به ډېرلږ شی ددې لامل شي چې په سړي ډزې پیل کړي.

د مسعود سره لیدنه له ویرې او بحرانه ډکه وه خوخلیلي ډاډ راکړ چې مسعود د جهاد په کلونو کې د مجاهدینو سره د مرستې له امله د سي. ای. اې څخه مننن‌دویه دی اود همغه اړیکو د بیا پیلولو لپاره هیله مند دی!

زه پوهېدم چې مسعود هغه حقیقت له امله چې د متحده ایالاتو دولت د ۱۹۹۲ پر مهال مجاهدین پرېښول بې له شکه له موږ سره په بیا اړیکو ټینګولو کې محتاط وي.

ماله احمدشاه مسعودسره ډېره لږه مرسته کولی شوه. مادهېڅ مالي اویادامریکې دولت لخواد رسمي مرستې ژمنه نه شوه کولی خو مسعود ته مې ډاډ ورکولی شوچې سي. ای. اې غواړي له ټلوالې سره په یوه هدف باندې په ګډه کار وکړي هغه د اسامه بن لادن له منځه وړل او د هغه عرب جنګیالي له افغانستان څخه شړل و. دا هغه څه و چې مسعود هم ورته ترې و.

زماموخه داوه چې له مسعودسره د دویم ځل لپاره اړیکي ټینګې کړم او د همکاریو په پایله کې مسعود ته د ګټو لاسنوی ورکړم.

د هغې توانایي چې د مسعود ځواکونو د اسامه بن لادن په وړاندې لري په پام کې نه نیولو سره. دهغه نظامي ځواک ترټولومجهزه و. د هغه حیثیت او اغېزه د هېواد په کچه ټولو سیموته غزېدلې وه. هغه کولی شول چې زموږ لپاره د یو شمېر پخوانیو قوماندانانو سره اړیکه ونیسي. که چېرې زه د سي. ای. اې سره مسعود همکاری ته په هڅولو کې ناکام شم. نو د نورو جهادي قوماندانانو سره به زموږ اړیکې په همغه اندازسختې کړي.

مسعود په یوه ډېره ارامه کوټه کې زمورانتظارکاوه. دغه ودانی داطرېش پخوانی سفارت واو اوس دمسعود او رباني دحکومت د مېلمستون په توګه کارول کېدله.

مسعودد معمول په څېر خړ لوېدیځ ډوله خاکي پتلون. ورته واسکټ او چترالي پکول درلودچې پکول به یې په مغرور ډول دسر په شاتنی برخه اېښوده. ده ډنګر بدن. زیتون ډوله پوستکی. نری مخ اوکلوښته ږیره اوبریتونه لرل. شتون یې ځانته پام اړوه. که څه هم هغه په چوکۍ کې تکیه کړې وه او ارام ناست و، زما پام یې ځان ته اړوه.

هغه له ماسره دسترې مشی له پاره له چوکۍ پاڅېد. دهغه لاس ښورول زماسره منظم واونېغ یې زماسترګوته راکتل. محاوره مو په دري ژبه پیل کړه.سره

له دې چې په ژبه پرتلیز ډول ښه پوهېدم خو په ځینو ځایونو کې را بندېدلم نو د دې لپاره خلیلي زموږ د ژباړن په توگه دنده اجرا کړله.

ما غوښتل چې په چټکۍ له مسعودسره اړیکې ټینگې کړم. زه پوهېدم چې خلیلي مسعود ته زماپه اړه په تېرو وختونو کې یادونه کړې وه .هغه زه پېژندلم او د جهادپه وخت کې زما په رول خبر و.

ما غوښتل چې لیدنه په شخصي خبرو پیل کړم. اوردې او رسمي خبرې په دغه ډول لیدنوکې معمول دي. مامسعودته وویل چې په ۱۹۸۸ او۱۹۹۰ کلونوکې د هغه سره د اړیکې نیولو مسول افسر وم او له هغه سره مې د اسلام اباد څخه د ده د ورور احمد ضیا په واسطه اړیکه ټینگه کړې وه.

ما هغه ته د سي. ای. اې د هغې مرستې چې د دولت په پیل او په لومړیو کلونو کې برابره کړې وه. او همدارنگه د هغې لویې یوځای مرستې چې په پنجشېر کې مو د بیا رغونې دپروژو د ترسره کولو لپاره ((لومړی مرسته وه چې د مجاهد قوماندان سره مو د جهاد په کلونو کې د بیا رغونې په موخه کړې وه)) مو د مسعود سره کړې وه. یادونه وکړه.

زه پوهېدم چې په ۱۹۹۲ کال کې د متحده ایالاتو لخوا د مجاهدینو د پرېښودلو موضوع به د لیدنې یو برخه وي خو ما هڅه وکړه چې د مبارزې په اوردو کلونو کې د مسعود سره د سي. ای. اې د همکارۍ په اړخ باندې ټینگار وکړم.

مسعود له روسانواونجیب د کمونستي رژیم حکومت پروراندې د جگړې پر تاریخ په روڼ او ښېل ډول وغږېده. هغه ټکي چې مسعودیاد کړل اړین اوله مانادك وو. نوموړی پرته له احساساتوغږېده او یوه حقیقي تاریخ ته یې لنډه کتنه وکړه. هغه دخپلوخبروپه اوږدوکې دمجاهدینوله بریالیتوب وروسته دامریکې مرستې په بندولواو دمجاهدینو پر نوي حکومت منفي اغېزو باندې وغږېده.

د امریکې دولت ددغه پرېکړې اوله گلبدین حکمتیار او نورو سخت دریزو سره د پاکستان مرسته په دغه هېوادکې دخپل منځي جگړو لامل شوه. که څه هم دغه قوماندانان مات شول خوهېواد اود مسعود قوماندانانو ته هم په ډېره لوړه بیه تمام شو. اوس پاکستان له طالبانوسره مالي اومادي مرسته کوي. مسعودوویل چې هغه له ایران څخه ډېرکمه مرسته ترلاسه کوي اوهرهغه پوځي تجهیزات چې له روسیې څخه یې ترلاسه کوي دهغوی په مقابل کې نغدې پیسې ورکوي. افغان دولت چې مشري یې دربانې پرغاړه ده یو قانوني حکومت دی. که چېرې امریکې اونورلوېدیځ ملکونه مرسته ونه کړي د طالبانو په وړاندې جگړه که ناشوني نه وي خو له ستونزو هم خالي نه ده. طالبان داسې ښکاري چې د هېواد زیاته برخه تر ولکې لاندې راولي.

دشپې ترناوخته سره ناست وو. ماهم پخپل وارسره د سي، ای، اې په همکارۍ ټینګاروکړ. دعرب او اسامه بن لادن پروراندې دهغوی جګړه اوبریا به هغه ته د امریکې مرسته او مننه ور په برخه کړي. د بن لادن او د عرب په وړاندې بریا به نیغ په نیغه مسعود ته ګټورې پایلې ولري ځکه چې عرب خپل خوښه جنګیالي د مسعود سره په جګړه کې هر وخت د اغزیو په ډول وو. ماهغه ته وویل چې دامریکې حکومت په افغانستان کې لېوالتیا بیازیاتوي اویوه ورځ به په واشنټن کې لوړپوړي چارواکي په افغان چارو کې په بیا ښکېلتیا باندې هوکړې ته ورسیږي.

له موږ سره د مسعود اوسنۍ مرسته به مسعود دمتحده ایالاتو په افغان چارو کې د بیا ښکېلتیا پر مهال هغه د مرستې په لومړي کتار کې وي.

مسعود ددغوهمکاریوپه پایله کې خپلې ګټې پېژندلې اوده کوم تا وان په کې نه درلود.که چېرې په هغه ډول چې ما مشوره وکړله. عمل وشي.د ګټو د زیاتوالي شونتیا وه. هغه د پوره همکارۍ د کولو وعده وکړله خودطالبانوپروړاندې یې دده دځواکونوپه شاتګ اوکونج ته کېدوله امله په اسامه پسې نیغ تګ ناشونی وباله.زه هم دده ځواکونو د موقف په نظر کې نیولو سره دده له اندېښنوسره موافق شوم. زه او مسعود ددغې ستونزې دشوني اواري لپاره دلارې دپیداکولو. دده په لاسنیوي له نوروقوماندانانوسره داړیکوپرټینګولواودوی د هڅولو لپاره د مرستې په څرنګوالي سره وغږېدو.

موږ نږدې د سهارپه څلورو بجوخپله ناسته پای ته ورسوله اومسعودهم له سي. ای. اې سره داسامه بن لادن په اړه دهرډول مالوماتودترلاسه کولوژمنه وکړه.

مسعوداسامه خپل شخصي دښمن باله اوله اسامه سره عرب جنګیالي دده لپاره لوی خنډ و. د مسعود لخوا به داسامه له منځه وړل. طالبانوته په ماتې ورکولوکې لومړنی ګام وي.

له مسعودسره دغه ناسته ډېره اړینه وه چې له مخې یې له شمالي ټلوالې اومسعودسره دراتلونکیو همکاریودروازه پرانستل شوه او مسعود په راتلونکي کې زما او سي. ای. اې له هر نماینده سره په کابل کې د لیدنې لپاره هوکړه وکړله. د راتلونکي لپاره یو مهم ګام و.زماګروپ (ژامې ماتوونکی) د دغې غونډې له برکته د ۲۰۰۱ کال دسپټمبرپه شپږوشتمه نېټه په پنجشېرکې د شمالي ټلوالې له تود او دوستانه هرکلي سره مخامخ شو. (1)

له دغې ناستې څخه وروسته طالبانوپه سروبي کې دمسعوددفاعي کرښه له منځه یوړه اودمسعودکسانو د ښار د ویجاړیتا د مخنیوي لپاره پرته له

مقاومت کرښه پرېښوده چې وروسته کابل هم په لنډوخت کې دطالبانولخواونیول شو.

مسعودله کابل څخه لاړاو په شمال کې بګرام د هوايي اډې د یوې سترې برخې په ګډون یې خپله لومړی کرښه جوړه کړه. دغه شمالي کرښه ۲۰۰۱ کال د سپټمبر پورې پرځای وه.

له مسعودسره زماداعتبار رسی په تېرو پینځوکلونوکې نوره هم څواکمنه شوه اودغه باوردې لامل شوچې دامریکې حکومت ته یې ستراتیژیک موقیعت او یو کلك سیمه ایزه ملګری ورکړ.دقیقابه ور وخت کې یې اجازه ورکړه چې د طالبانو او القاعده پروراندې خپل څواکونه راواندې کړي او د جګړې پر ډګر یو ه ګرندی او مهمه بریا ترلاسه او افغانستان د طالبانو له زورواکۍ څخه خلاص کړي.

[1] د لیکوال دغه اعتراف ځرګندوي چې د سپټمبر یوولسمې پېښه یوه ترتیب شوې سناریو وه. ژباړن

## له جرمني څخه د ازبکستان په لور
## ۲۰۰۱ د سپټمبر د 19-25
## لسم څپرکی

زمور د ګروپ برخه رمستېن ته کټ مټ پخپل وخت راورسېده او رامستېن ته د ننوتلو مرحله مو په اسانۍ سره تېره کړله. دهوايي خدمتګارانولخواپه الوتکه کې د ډالرو دری بکسونو اجازه لېږد راکړل شوی و او زماله اورو یې هغه اندېښنه چې بکسونه ؛ د ترانزیټ په مهال لادرکه شول؛ لېرې کړله.

فرانکفورټ ته زمور د لېږدونې د بس د پیداکولو له امله یو څه حیرانیتا وه. سارړه ول او ورو ورو باران ورېده. مور باید خپل بکسونه د امنیت له نویو امنیتي لنډ مهاله خونو چې د سپټمبر د یوولسمې څخه سمدستي وروسته جوړې شوې وې. څخه تېر کړی وای.

بس مو پیدا کړ او زه له دې امله چې د بس کرایه باید په خپله ورکړو. هک پک شوم.دبس له چلوونکې ټینګار وکړ چې که چېرې غواړو چې نقدې پیسې ورکړو. باید مارک وي او که غواړو چې چیک ورکړو باید هغه د پیسو د شتون د ډاډه کولو لپاره کریډیټ کارتونه معاینه کړي. زما خوښه وه چې د بس ټوله کرایه پر دولتي راکړل شوي کارتونو باندې واچوم خو بیا هم باید موږ موټرچلوونکي ته په داسې حال کې چې هغه د خپل ګرځنده ټلیفون له لارې د خپل دفتر سره د ۲۳۵ ډالرو د اخیستلو تصدیق وکړي. ډېرش دقیقې انتظار وباسو.

زه په هغوبکسونوباندې ناست وم چې درې ملیونه ډالر په کې و اود دوه سوه پینځه دېرش ډالرو د ورکړې لپاره اړ و چې تر ډېره وخته انتظار وباسو. په پای کې په داسې حال کې چې باران ورېده، فرانکفورټ ته روان شو.

په هغه ځای کې چې د سي. ای. اې لنډ مهال دفتر جوړ و. زموږ تود هرکلی هغومره چې هیله مو درلوده. نه و. موږ د سرې قالینې( هغه چې د امریکې او نورې نړۍ فلمي ستورو ته د جایزو د ورکړو په مهال غوړیږي. ژباړن) غوښتونکې هم نه و خو موږ فکر کاوه چې مامورین لخوا به زموږ په راتلو سره هیله مند او خوښ وي. اوس دا دی موږ دلته و. لومړني سي. ای. اې افسران د القاعده په ځپلو پسې د سپټمبر د یوولسمې وروسته راوتلي ول او په دغه دفتر کې چارواکي هم د همدغه هڅې یوه برخه وه. برسېره پردې دفتر ته زموږ راتګ دوی ته د سر درد جوړ شوی و. کارمندانو فکرکاوه چې دغه ګروپ وظیفې ته د پرسونل د اعزام کولو لپاره چې ښایي په نږدې راتلونکي کې ترسره نه شي. راغلي ول. په دفترکې یوازې یو یادوه کسان په دې پوهېدل چې زموږکوچنی ګروپ دالقاعده دځپلوپه لپاره راوتلي دي. او هغوی هم د ماسپښین زموږ د توکو د راتګ په ځرنګوالي ډېر وروسته پوه شول.یو څوک په دې پوهېده چې کرېس نومی امریکایی ښار ته راغلی. خوپه دې نه پوهېده چې هغه کله او چېرته شپه تېروي. په پای کې موږدالوتکې د الوتنې مسول ته ور ورپېژندل شوواوهغه وویل چې راتلونکې سهار وختي به تاشکند ته په چارتر ۱۰۰ ډوله الوتکه کې الوتنه کوو. ښه خبر و خو زموږدګروپ اودسامان ټول وزن ډېر و او موږ اړ ووچې یوڅه توکي را کم کړو ځکه هغې چورلکې چې له ازبکستان څخه دهندوکش له غرونوتېرېدله بایدمعیاري وزن درلودلی وای.

کریس په همغه ماسپښین د دوه نیمو بجو په شاوخوا کې راغی. یو څه ناوخت راورسېد. هغه اسانتیا د رارسېدلو په مهال د سپټمبر د یوولسمې پېښې وروسته د امنیتي تدابیرو د سختوالي له امله له ستونزو سره مخ شوی و. د استانبول څخه د راوتلو پرمهال له واورې سره هم مخ شوی و او له دې امله الوتکه فرانکفورټ ته ناوخته خوځېدلې وه.

کريس د ژمي لپاره لا له وړاندې توکي رانيولي وو او د هغه سره د لنډې ليدنې وروسته مو د متحده ايالاتو نږدې پوځي پوستې مرکز ته افغانستان ته د خان د مجهز کولو لپاره ولېږه.

موږدراتلونکي سهارپه پاوباندې پينځه بجې له خوبه بېدارشوو. که څه هم چې زموږ مرستياله ملګري زموږ د راتګ څخه خوښ نه وو خو هغوی موږ او زموږ توکي د الوتکې ساحې ته په لېږلو کې ښه دنده ترسره کړله. 100- اېل الوتکه زموږ په انتظار ولاړه او زېنه تړې راښکته وه. د کارګو په مخکنۍ برخه کې د ترپال څخه جوړې سره مېزونه د الوتکې د دواړو خواوو څخه راځورند وو او زموږ د شخصي توکو. د اوبو او دخوړو بکسونو د خالي خونو په منځ کې دلۍ ول. د مخکنۍ بيلوونکې دېوال ترشا د رڼو متيازو لپاره يو پايپ(هغه پايپ چې لوېديځوال پکې په ولاړې تشې متيازې کوي. ژباړن) او يو کېمياوي چرچوبۍ هم موجود و. چوکۍ مو خوښې کړې. کله چې ترپال د اوسپنيز فريم ته راکوږ او ځوړند شو ما يوازې د الوتنې د سختوالي او ناارامۍ په اړه فکر کاوه.

کله چې د کارې دلې مشر موږ ته د غوږونو خولپوټي(هغه پلاستيکې اله چې په غوږ په کېښودلو سره بېدياني شور غږ را ټيټوي. ژباړن) راکړل. د الوتنې پرسختوالي يې زما شک نور هم زيات کړ.

په الوتکه کې د کيناستلو خان الوتنې ته په پرتله ډېر هوسا و. د ترپال د سيټونو ها خوا ته مو ښې غزولې او حتی کولی مو شول چې کارګو يا توکو سر ه نږدې ويده هم شو. د ډېر شور له امله مو ډېرې خبرې نشوې کولی.کوچنی بريښنايي تنور هم و او پوهنيزه دلې الوتکه کې د ډېرو ژر ګرمېدونکي خواړه او د څښاک مواد درلودل. وخت مو پر لوستلو او ويده کېدلو تېر کړ او په تاشکند کې د ماسخوتن په اته بجې او ډېرشو دقيقو ښکته شوو.

په هوايي ډګر کې دسي. ای. اې افسرانواو ورسره سيمه ايزه ازبك مامورينوله موږسره وليدل. دازبکستان د وېزو په نه لرلوسره هغومامورينواندېښنه لرله. هغوی په هوايي ډګر کې د ګمرګ او د مهاجرينو اړوند مامورينو په منځ کې اړيکې او په پای کې يې هېواد ته د ننوتلو اجازه راکړله.

الوتکه په بيره سره خالي شوه اوديو لوی روسي موټر په ښار چې زموږ توکي هم پکې بار وو د متحده ايالاتو سفارت ته لاړو. کله چې توکي په سفارت کې نوې جوړې شوې لوژستيکې ودانۍ ته ښکته کېدل. زه د سفارت ودانۍ ته د سي. ای. اې د مسول پازوال سره د سفر په اړه د پلان پر څرنګوالي د خان پوهولو لپاره ورغلم. حتی د شپې د يوولسو بجو په مهال هم هر څه بوخت ول. او مشر يې يو ځوان افسر چې ما د ځو کلونو راهيسې پيژانده. دنده ښه ترسره کړله. هغه تاشکند ته په رسېدلو سره په مرکزي اسيا کې دغه هېواد ارام پيدا کړ

خو ناڅاپه دغه ځای ډېر بوخت او د قرارگاه څخه پکې زیاته لېوالتیا پیدا شوه.
په رسېدا سره مې ټولو قرارگاه او اړوندریاستونو لکه د تروریزم په وړاندې مرکز. شمال ختیځه فرقه او د ځانگړو فعالیتونو فرقې ته دخوندي راتگ ډاډورکړ. شریټن هوټل ته نیمه شپه راورسېدلو ستړي خو خوښ وو. موږ په خوښۍ سره د هرکلي مېز سره د ځوانو او زړه راښکونکو انجونو په لیدلو سره چې ټولو یې ښخي لنډې لمنې لرونکې جامې اغوستې وې. حیران شوو. ریک وویل چې د هغه په باور دغه انجونو ته هوټل د بې وزلۍ له امله پوره جامې نه شي اخېستلی خو د گروپ هیڅ یوه هم ترې شکایت نه درلود! ډاکټر هم هوټل ته ننوتلی و او میوري ورسره سمدستي اړیکه ونیوله او هغه ته یې وویل چې د سهار د چای پر مهال په اته بجو سره وینو. په خپل منځ کې یې سره ټوکې ټکالې وکړې. دوی دواړه نږدې ملگري ول او د ټول سفر په بهیر کې همدا ډول ټوکې ټکالې کولې. زموږچورلکه هم تر معاینې او رغونې لاندې وه اوپه یوه ورځ کې تیارېدله.

زموږگروپ دوه پیلوټان هم په دوه ورځوکې هلته راورسېدل. د ازبك او تاجك دولت لخوا زموږ لپاره د هغوی د هوايي لیکې د کارولو اجازه هم پاتې وه. دغه موضوع دلوړې دیپلوماسۍ موضوع وه او باید نېغ په نېغه دامریکې بهرنیو چارو وزارت باید ورباندې غږېدلای وای. د دغه مذاکراتو د اغېزمن کولو لپاره زموږ له وسه څه نه و پوره نو موږ یوازې اجازې ته په تمه وو. راتلونکې څلور ورځې مو د اجازې دراکړې لپاره په تمه تېرې کړې. پاپي خپل برښنايي توکي. ټلیفونونه اونور تجهیزات وازمویل اوچمتوکړل. دسټلایټ دوه ټلیفونونه یې معاینه او اړوند بټرۍ یې له چارجه ډکې کړې. گرځنده جنراټورونه مو معاینه او له تیلو مو ډک کړل. د هغې وروسته مو ټولې وسلې راواخیستلې او هره یوه مو معاینه بیا مو د کلاشنکوفو دېرش ډزې شاجورې ډکې او په هغه بندونو کې چې په افغانستان کې مو کارول. واچولې. لاسي جي پي اېس مخابرې مو معاینه او سټان یې په کارولو پوه کړلو. بیاپه بازارکې وگرځېدواویوځودانې مو روسي دوربینونه چې ډېرارزان وو واخیستل. یوه دانه مولویه اوغښتلې پلاستیکي بوجۍ واخیسته ځودگروپ پیسې په کې ځای کړم. بوجۍ ایله بیله پرې ډکه شوله. د وړلو لپاره نسبتا اسانه وه او ددرېیو بکسونو پرځای د یوه بکس ځارل راته اسان و.
له ازبك حکومت سره دځوورځولپاره دهوايي لیکې دکارونې بحث روان و. هیله کېدله چې ازبك حکومت به هوکړه وکړي خوتاجك دولت دزیات روسي نفوذله امله تراوسه بې ځوابه و. واشنټن پر روسانو فشار راوړ څو تاجک دولت د هوکړې لپاره وهڅوي.
که چېرې تاجکستان دولت موږته ددوی دهوايي لیکې دکارونې اجازه راکړې

نه وای موږ او ووچې دازبك خاورې له سوېل څخه دافغانستان خاورې ته دننه او د ختیځ په لورې د طالبانوتر ولکې لاندې الوتنه مو کړې وای. د شمالي ټلوالې سېمې ته تر رسېدلو وروسته به سویلي لورې ته د هندوکش غرونو په سر د پنجشېر درې ته ورگرځېدلو. د وروستي ذکر شوي طرحې سره د واشنګټن او د ازبک حکومت له پلوه مقاومت موجود و ځکه چې په دې ډول موږ په هواکې د طالبانو د ولکې لاندې سیمه باندې څو سوه میله الوتنې ته اړ کېدلو. په دې ډول موږ د دښمن د هوایي ضد بریدونو د شنډول لپاره هېڅ هوایي مرسته او د ژغورنې هېڅ مرسته نه درلودله. که چېرې د طالبانو د ولکې لاندې سیمه کې کېناستلو ته اړ شوي وای. موږ ټول به یې له مرستې او په خپلو مټو وای. څو ورځې خو داسې ښکارېدله چې د تاجک ددولت د اجازې پرته زموږ ماموریت په خطر کې پرېوتی و.

کرېس دافغان مقاومت دډلې له قوماندانانوسره په تاشکند کې د هغوی د کوربانو په واسطه په اړیکوتینګولوبوخت و. دغه قوماندانان دشمالي ټلوالې سره ملګري ول او په په پنجشېر کې په راروانه جګړه کې د شمالي ټلوالې سره همغږي ول. موږ غوښتل چې افغانستان ته د ژامې ماتوونکې ګروپ تر رسېدلو وروسته وتواونېږو چې نېغ په نېغه له نوموړو قوماندانانو او یا د هغوی له استازو سره اړیکه ونیسو. ما د پیسو بنډل د لومړي ځل لپاره خلاص کړ او هغه ته مې پنځوس زره ډالر ورکړل څو د هذاره هغه لوړپوړي قوماندان ته چې تاشکند ته دا مهال په سفر و. ورکړي. موږ له هغه سره د روسانو په وړاندې د جهاد په وختونو کې ډېرې معاملې کړې وې. دی او ځواکونه یې د کابل دننه او شاوخوا کې ډېر اغیز درلود. ایډ او ګریګ په ۲۳ م سپټمبر راغلل اوسمدستي د کاري ډلې له مشر مېخانیک سره د چورلکې د وروستنیو لاس وهنو لپاره کېناستل. راتلونکې ماسپیین یې د چورلکې الوتلو ته د چمتو والي خبر راکړ. ایډ او ګریګ دواړه پاخه پیلوټان ول او دواړه د متحده ایالاتو د پوځ د ځانګړو عملیاتو پخواني تجربه درلوده چې په زرګونه ساعته الوتنې یې په هر ډول چورلکو کې کړې وې. بک هم په مساوي توګه تجربه کار و. هغه د امریکې په پوځ کې روزل شوی و او هرډول مېخانیکې ماشین له چورلکې ترېبین انجن څخه رانیولې تر ګرځنده جنراټور او د روسي جیپ تر ماشین پورې یې جوړولی شول.

دسیپټمبرد ۲۵مې نېټې په سهاریې رسمي رپوټ راکړچې د ازبك اوتاجك دواړوحکومتونولخوادوی دخاورې دکارونې اجازه راکړل شوه.

ترراتلونکي سهارپور ې مورخپل ګروپ ته دچمتووالي اجازه ورکړه. چورلکه مو باید د سهار په شپږو بجو بار او دوشنبې ته مو الوتنه کړې وای. هلته مو بیا تیل اچولي وای اوله دوشنبې څخه مو دشمالي ټلوالې دوه کسان له ځان سره را

خیستي وای چې یویې په دوشنبه کې دشمالي ټلوالې نماینده اوبل یې یوتجربه کارپیلوټ وچې زموږله پیلوټ سره یې دهوایي لیکې په لاربښوونه کې دمرستې لپاره راغلی و.

موږبایدددغودووکسانوپه راخیستو انجمن له کنډو څخه تېر او دهندوکش دغرونوپرسر چې د پیلوټانو په وینا ۱۴۵۰۰ فوټه لوړوالی درلود. سفر لپاره الوتلي وای.

یوولسمه ورځ مو د اړیکو توکي باید بیا په بکسونو کې ترلي په سم ډول مهر لاک او شمېرل شوي وای. جامې مو هم باید مینځلې وای، قرارگاه ته مو تلگرافونه ولېږل او په تاشکند کې د مرستې له دفتر سره مو راتلونکی سهار هوایي ډگر ته د سامان د لېږدولو لپاره اړیکې ونیولې.

له تاشکند څخه د تگ پرمهال د ترتیباتو پر مهال د پلان د نورو برخو څخه تقریبا ډېر اندېښمن و ځکه چې تاشکند ته نوی گومارل شوی لوژسیتکې افسر سره معامله له خنډونو خالي نه وه. سفارت ته زموږ د راتگ او زموږ د گروپ سره د معاملې کړلو هغه په غصه کړی و. ما باید اندېښنه نه وای کړې ځکه چې هوایي ډگر ته خوځښت ارام ترسره شو.

زما په گومان نوموړی ځوان افسر له دې امله چې موږ ترې روان و. خوښ و.

موږ شریټن هوټل ته مازدیگر لاړو او راتلونکې سهار په درې بجې او پنځوس دقیقې مو د راوېښېدلو پلان درلود. موږ ټول خوښ و. تېرې یوولس ورځې په داسې حال کې دندې ته د تللو خبر راکړل شوی و،له اندېښنو ډکې وې.داسې ورځې چې له سخت کار او اوږدو کاري ساعتونو د بیروکروتیک ځنډ له امله د سر دردی او زموږ معشوقو ته د احساساتي خدای په امانی څخه ډکې وې. اوس انتظار پای ته رسېدلی و. سبا سهار به له خطره ډکه او د یادولو وړ کېسې پیلېږي!

## یوولسم څپرکی

زموږ روسی جوړه چورلکه د انجمن پرکنډو د ۱۴۵۰۰ فوټه لوړوالي باندې د

پورته کیدلو له امله په لړزه شوه.دانجومن کنډواودهندوکش غرونوله تېرېدو وروسته دپنجشیردره موقیعت لري.

سره له دې چې زموږ چورلکه د مجربه پیلوټانو لخوا ښه رغول شوې وه په دغه کنډو باندې الوتنې د چورلکې له حدودو تېرې و. زموږ بار درونډ و څو زره پاونډه توکي مو د کارگو د برخې هر کونج او غار ته ور تخته کړي وو. پرته له دپیلوټانو او بک څخه د مشر مېخانیک په گډون نهه مساپر وو چې ټولو یې د شخصي توکو درنه بکسونه له ځان سره لېږدول. د بار ترټول درونډ شی د لرگي هغه ستر صندوق و چې زموږ ټوله وسله پکې ځای په ځای وه. ترټولو مهم شی هغه ستره توره پلاستکي بوجۍ وه چې پیسې پکې وې او اوسپنیزه پټوره مې تر راتاو کړې وه، زما تر څار لاندې وه.

اکمالاتو دولس کسان ، د هغوی شخصي توکو او اضافه تیلو په دغه لوړوالي کې پر چورلکه باندې د کچې زیات بار و. زه د چورلکې په اوسپنیزه غولي باندې ناست او په خپل بکس باندې مې تکیه کړې وه. د چورلکې په وړاندیني دېوال او د ترپال چوکیو تر منځ بند وم.

د کوم سوري څخه راننوتونکې سخت ساړه باد په شا وهلم. جاکټ مې راټینگ کړ څو ځان د کنگل له تند باد څخه وژغورم. د گروپ نور شپږ غړي خو به یا د ترپال په چوکیو سره تنگ ناست وو یا خو به د توکو پر بنډل ناست وو. کریس د تیارو جوړو شویو خوړو ټیټ بنډل ته زما مخامخ تکیه کړې وه.هغه د کړکیو څخه بهر په واوره پټ شوي د غرونو سرونه کتل. هغه مخ راواړوه د ښي لاس غټه گوته چې په دستکش پوښل شوې وه. پورته او په مخ یې موسکا خواره شوه. هغه نږدې دېرش کلن وچې سره لویه ږیره. زموږ په ډول درنې جامې. د پیک خولۍ او دستکش یې په لاسونو وو څو د ساړه سره ارتفاع د لوړیدا پر مهال مبارزه وکړي.

الوتکه بیا په لړزه شوه او د څرخونو غږ د څو شېبو لپاره لوړ او تېره شو. بک چې دکرس تر څنگ ناست ووروکتل. هغه سپینې غوږۍ په غوږونو وې او د پېلوټ ترڅنگ ځای کې ناست او په غوږ سره یې غوږ نیولی و. څو شېبې وروسته هغه ټول گروپ ته وروکتل او په هوا کې یې د (U) ډول رسامي وکړله. ښی لاس یې پورته کړ. سبده یې یووړ. بیا ناڅاپي ښکته کړ. غټه گوته یې د ښه زیري په موخه پورته کړله. موږ د انجمن په کنډو اوښتي وو. دا یوازېنی ځای و چې (ټول موسکي شول. موټي مو داسې لکه هو چې وایې پورته کړل) زه په ځان پوه شوم چې له ویرې مې ساه بند نیولې وه. ترمخې له خطره ډکه الوتنه پرته وه خو ناوړه برخه مو ترشا پرېښود البته د فلمي صحنو سره په مخالفت کې! په پوځي چورلکو کې د ډېر شور ماشور له امله خبرې اترې کول ستونزمن

وي. موږ ربړین غوږ خولپوټی چې گوشکیو ته ورته و د غېږ د را ټیټولو لپاره په غوږونو کې ایښې وې. تکیه مې وکړه څو لږ ارام او حالتو ته بیا کتنه وکړم. اوس مهال د سوېل په لورې څلوېښت دقیقې الوتنه د چورلکې د کېناستلو هغه ډگر ته چې زموږ د کوربه افغان شمالي ټلوالې لخوا کارول کېده پاتې وه. له دې هاخوا موږ په هغه څه چې به ورسره مخامخ کېږو لږ خبر و.

د۲۰۰۱ کال دسپټمبرپه په نهمه نېټه مسعودپه پنجشېرکې دځانمرگي بریدله امله دشمالي ټلوالې دبادشاهی له کړۍ څخه لیرې شو. د مسعود مړینې د شمالي ټلوالې پر رهبرۍ ډېرمنفي اغېزاچولی و. موږ خبر و چې چا د مسعود مړینې سمدستي وروسته د ټلوالې واکمن سره راټول کړي ول او په شمال کې یې له ټولوقوماندانانوسره اړیکې ټینگې کړې وې څو هغوی ته دټلوالې د ثابت پاتې کېدو او د طالبانو په وړاندې د جگړې د دوام ډاډ ورکړي. خوموږدپاچاهی د زور د ویشل کېدلو پرځرنگوالي او یا دا چې د ټلوالې په ننۍ کړۍ کې د واک د کنټرول لپاره مبارزې روانې وې، نه پوهېدلو.

زه پوهېدم چې زموږگروپ لپاره به ښه راغلاست دوستانه وي. خوهغه فکر چې څوك به عمومي مسول وي اودنوي رهبرغبرگون به څنگه وي اندېښمن کړم. زمااورې وښورېدې اوریك ته مې مخ ورواړاوه. هغه ممتازته چې د شمالي ټلوالې سره زموږ اصلي اړیکه وه او ددوه افغانانو له ډلې څخه وچې د دوشنبې څخه مود تیلو د بیا اچولو پر مهال له ځان سره را اخیستی وو.

ممتازهغه څوك وچې په ۱۹۹۶ کې یې له ما اوخلیلي سره دلومړي ځل لپاره دبگرام په هوایي ډگرکې لیدلي ول. ممتاز واضحً له همغه وخته تراوسه په همدغه نړۍ کې رالوی شوی و.

هغه خپل غټ جاکټ کې ننوتلی و. په خپل پنجشېري ډوله سپین او تور دسمال یې مخ پټ کړی و. سترگې یې پټې وې. ریك زماغوږته رانږدې شوله یوه غوږ یې غوږۍ لیرې کړې او ویې ویل: زموږ اندېوال خویو څه ډار شوی دی!

ماریك ته وویل: بلې نه شو کولی چې ملامت یې کړو. هغه ددومره وخت لپاره له موږ سره واوخدای خبرچې په پنجشېرکې ترکوزېدووروسته به څه ورباندې تېرېږي. ریک وویل چې هو زه هم دومره نه یم خوښ. ماوریك دواړوتکیه وکړه اوپه فکرونوکې ډوب شوو.

ممتازپــه دوشــنبه کــې دشــمالي ټلــوالې مهــم نماینـــده و چـــې دمسعودترټولوباوري څوان افسرامرالله صالح سره یې کارکاوه سی، ای، اې له امرالله صالح او د هغه شمالي ټلوالې له کسانو سره په تېرو دووکلونوکې ثابتې اړیکې درلودې .ممتازچې اته ویشت کلن بااستعداده ځوان وپه انگلیسي ژبه ښه پوهېده او یو څه روسي ژبه یې هم زده وه.

ممتازپه پنجشېرکې پيدا شوی اولوی شوی و. هغه د مسعود تر ټولو ډېر خوښ و. د دوشنبه دنده ډېره مهمه وه او يوازې د مسعود باوري کسانو د دغه دندې مشري کولی شوه. ممتاز وويل: دامرالله صالح په امربه دی زمورله گروپ سره ترهغوچې په افغانستان کې وي يوځای وي.

دويم افغان چې زمورله گروپ سره و نصير نومېده. نصير د روسانو لخوا د پيلوټی زده کړې ورکړل شوې وې. هغه د کمونيستي رژيم له ماتېدا وروسته په ۱۹۹۲ کې له شمالي ټلوالې سره يوځای شوی و. نصيرپه ۱۹۸۹ کې د روسانوپه گټه پيلوټي کوله. او له هغه وروسته يې د نجيب الله کمونيستي رژيم په گټه د مسعود ځواکونو پر وړاندې عملا جگړه ايزې الوتنې کړې وې. کله چې د نجيب رژيم مات او هغه يې د سړك پرغاړه له ولاړې متې څخه راځوړندشو. نصيرله بريالی شمالي ټلوالې سره يوځای شو.

زمور( لوېدېځوالو)لپاره دغه کار ښايي نا اشنا وښکاري خوپه افغانستان کې د يو رژيم څخه بل رژيم ته خپل اړخ بدلول هيڅ نااشنا کار نه دی.

نصير اوسمهال د شمالي ټلوالې يوباوري تن واوځوځله يې مسعود ته هم الوتنې ورکړې دي. نصير په دريمه چوکۍ کې زمور د پيلوټانو ترمنځ ناست اوهغوی ته يې افغانستان ته د راننوتلو پر مهال په بهترموږونو باندې د الوتنې مشوره او پنجشېر ته له خطره ډکه موږونه او ځنډې له هغوی سره څېړلې.

له دوشنبې څخه دالوتنې له مهاله يوساعت وروسته نصيرځوکسانوته چې دغونډۍ پرسرېې دفاعي ځای جوړولواشاره وکړه او ويې ويل چې هغوی د طالبانو ځواکونه دي.

کله چې ايډ چورلکه له هغوی څخه بلې خواته وگرځېده نصير ورپورې وخندل او ويې ويل چې موږ ډېر تېزروان يواوپه دې سربېره دوی هدف هسې هم نشي ويشتلی. اندېښنه مه کوه. که چېرې پر مځکه کسانو زمور د چورلکې د کټلو لپاره وخت لرلی ښايي چې پر موږ يې شک پيدا وای ځکه چې چورلکې رنگ خړ و او پنجشير د رسېدلو سره سم مو د بدلولو پلان درلود. بک زمور دپاملرنې لپاره اشاره وکړه او ويې ويل چې د کوزېدالپاره يوازې لس دقيقې پاتې دي.

مېوري د کريس سره د کارگو ترځنگ ارام ولاړ و. هغه په دغه ډول کارونوکې پوخ و. يو اغېزمن سړی چې د شېړو فوټو څخه لوړ قد پلنې اوږې او نری ملا يې درلوده. لنډی شوې ږيره يې درلوده او توره بېسبال خولۍ يې په سر وه. جگړې ته د تگ پر مهال د ده په څېر کس ته اړتيا وي. چورلکې د بارولو وروسته ډاکټر د بار د انبار څخه پناه و. هغه ډنگر ځواکمن چې سپين ويښتان يې درلودل له ارزښته کم گټل يې اسان و(خاکساره خوی يې درلود. ژباړن). پرته له پوځې تجربې او د سي، ای، اې سره د ډېرو کلونو د ځانگړو عملياتو د تجربې څخه هغه

په ارواحي/روحياتي عملياتو ډېر ښه پوهېده.

د هغه سره د تېرو څو ورځو د یو ځای کارکولو پر مهال نـامتووالی او ځیرکتیا ثابته کړه(د هارورډ پوهنتون څخه يې ماسټري کړې وه:لیکوال) هغه په ډېر ښه فزيکي حالت کې و او داسې لکه تبر تېره(څواکمن) و.

پاپي د بک تر څنګ ناست و او د هغه مخابرې سره چې د ترپال چوکې لاندې تړل شوې وه بوخت و. هغه پنځه فوټه او لس اينچې لوړ، تـور ګورګوتي ويښـتان چې سپين پکې لګېدلي ول، لـرل. زه د پـاپي څخـه اغېـزمن شـوم. هغـه پـه سـاحه کې پوخ و. د کار ظرفيت يې ډېر لوړ و. د هغه ښه وجدان ډېر اغېزمن کړی وم او ده او ریک خو لا له وړاندې د مارک برادرز(د فلم نوم. ژباړن) په اړونـد خبـرې اتـرې پيل کړې وې. بک زمـوږ د پاملرنې لپاره په ناځـاپي ډول اشارې وکـړې. هغـه دواړه لاسونو پورته او ټولې ګوتې يې ودرولې. کوزيدا تـه لـس دقيقـې پـاتې وې. زمـوږ نږدې پنځه ساعته سفر پای ته رسېده. درې تـه پـه ورکوزيـدلو سـره پـه فشـار کـې ثابت بدلون راته او مازغـه مـې پـه ځـای شـول. د چـورلکې دننـه حـرارت ورو پورتـه کېـده او مـوږ هـم ګرمېدلو. د کـريس تـر شـا غرونـه نـوږ پـه واورو نـه و پټ بلکـه نصوراي رنګه او ډېـرين وو. د سترګو تـر شـا پـه سـر مـې تيـزه سـر دردي هـم پيـل شوه. ډاکټرهم ويلـي و چـې د انجمـن غرونـو پرسرپوساعت سفرښـايي داکسجن دکموالي له امله سردردي، داوبوکمېدنه اوسټرياڕامنځته کړي. ما ګډوډ باور درلود چې ښايي درې واړه نښې پـه مـا کـې پـاتې شي. بدبختانه چـې مـا رښـيتنی اټکـل کړی و. (ليکوال دلته په پنجشير کې د ورپېښې ناروغۍ يادونه کوي. ژباړن)

د بـک لـه دغـې اشـارې سـره موږټولوځانونـه وښـورول. بکسـونه موټينـګ کـړل اودسمالونه موله ځانونوتاوكړل. ددغه ماموريت د طرح کولـو اوږدې ورځـې اوس پای تـه رسـېدلې وې او کوزيـدلو تـه يـوازې څـو دقيقـې پـاتې وې. مالـه ځانـه سـره فكروكړچې (په افغانستان کـې دمسعودشمالي ټلوالـه يـوازېنی ساتندويه ځـواك دی چې دغه لس امريکايي ګروپ ساتنه به کوي.که چېرې کوم څه پېښ هم شي نوزموږيوازېنی هيله دغه چورلکه ده او ترټولو نږدې امريکايي مرکز پـه ازبکسـتان کې و چې د ستونزې په وخت مرستې کولو څخه ډېر لیـرې وو .کـه هغـه امرکـايې ځواکونه رارسدلی هم شواى هغوی د غبرګون ښودلو لپاره اجازه هم نه درلودلـه. چورلکه په هوا کې ودرېدله او د مځکې څخه يوازې يوه اينچه پورته وه. ساعت تـه مې وروکتل، د ماسپين ۰۲:۴۰ دقيقې وې.

بک د چورلکې په دروازه کې د خوځښت د څارلو لپاره ولاړ و. هغه پـه داسـې حال کې چې چورلکه وښورېدله راوګرځېد. چورلکې لړه جيټکه وخوړله خو بيا ثابته شو. بک موسـکی شـو. بيـا يـې لاس پورتـه اوغټـه ګوتـه سيخه کـړلـه. مـوږ ښـکته شوي وو!

بک دروازه خلاصه کړله او اوسپنیزه زینې یې برابرې کړې. د چورلکې خرخونو نصواري رنګه دورې پارولې. بک کوز شو په خولی یې لاس نیولی و او د چورلکې د مخ په لورې ورغی څو د خوندیتوب لپاره یې وازمویي. بیا پیلوټانو د هغه په اشاره د چورلکې ماشین بند کړ. موږ ټول ولاړ و او د ورو کړکیو څخه مو بهر ته کتل څو روان حالت وګورو. چورلکې خرخونه هم په کراره شول. مېوري له ټول لومړی وتلو ته ځان ټیله کاوه او غوښتل یې چې د ګروپ په منځ ګې هغه لومړنی امریکې یې وي چې پر مځکه یې پښه لګېدلي وي. ما او ریک یو او بل ته وکتل او په مسلسل ډول مو وخندل. زه د مېوري په څار په احتیاط سره ولاړم. د الوتنې څخه مې لینګي لړزېدل.

تېز لمر مې سترګې وبرېښوولې. اسمان ډېر شین اوهوا نرمه وه. نصواري رنګه مځکې ته مې ورټوپ کړ او څو ګامه لیرې ولاړم څو د ګروپ نور غړو ته لار خلاصه کړم.

ممتازهم له ما وروسته راکوزشو. ممتازهغه افغاني ګروپ ته چې دچورلکې په خرخونوڅخه یوڅوګامه لیرې ولاړو دستړي مشي لپاره ورغی. کله چې موږځانونه وځنډول یوه ډله افغانان چې ټول وارخطا وو له موږ سره د ستړي مشي لپاره راتاو وو. اوس دوه بجې او څلوېښت دقیقې او د ۲۰۰۱ کال د سپټمبر شپږویشتمه نېټه وه. موږ ښکته په شمال ختیځه افغانستان د پنجشېر په دره کې وو.

## د ولسم څپرکی

کله چې کوزشوو. څومره چې موږوراندوینه کړې وه زموږهرکلی هغومره ګرم او دوستانه و. واضح زموږ کوربه ګان له دې امله چې موږ وروړسېدو. خوښ و.
ممتازله ښکته کېدوڅخه شېبه وروسته کنټرول واخیست او په ټویوټا ډېل سیټه هایلکس موټرو کې یې دسامان دښکته کېدو او منظم کېدو. او د ګروپ غړو ته په همغه موټرو یا په روسي جیپونو کې د کېناستلو او کلا ته د لېږد هدایت وکړ.

زه د چورلکې سره ترهغې چې د پیسو لویه توره بوجی یې ترې را ښکته کړله. پاتې شوم او زما ترکنټرول لاندې په هغه روسي جیپ کې کېښودل شوه چې زه په کې تلم. د چورلکې کاري ډله او مېوري په سیمه کې پاتې شول څو د توکو را ښکته کول وڅاري او په پای کې چورلکې دروازې بندې او خوندي کړې. د نورو ټولو شمېرلو وروسته. کوچني کاروان په خوځښت پیل وکړ.

هغه سیمه چې چورلکه په کې کېناسته استنه نومېده. دغه سیمه دپنجشېر د سیند چې په هغه وخت کې نسبتاګړندی بهېده. ختیځه برخه وه او نږدې سل

متـره پراخـوالی یـې درلـود. د ښـکته کېـدلو ډګـر سـره نـږدې پـه سـیند بانـدې یـو اوسپنزه پول تېرل شوی و.

زه له ریک او کریس سره په روسي جیپ موټر کې چپ د کتار لومړنی موټر و. ناست وم. کله چې موټر د خوځېدلو لومړی جیټکه پیل کړله له پله څخه ښکته لورې تېراو سیند ور رېږده. ما نورو ته مخ وراړوه. هغوی هم حیران و او مټونه یې وښورول: ما وپوښتل ایا ستاسې په باور به موږ له سیند څخه تېر شو؟ مخکې له دې چې ځوک ځوب راکړي. موټروان موټر ودراوه او د ګیرونو بدلول را بدلول یې پیل کړل.

او په پای کې هغه وتوانېد چې په کمک کې یې واچوي. کریس وویل: زما په بـاور ددغـه پوښـتنې ځـواب هـو دی. او مـوټروان کلـچ راپرېښـی او د مـوټر د بلـې جیټکې سره د سیند له غاړې تېرشو. سیند ته په داسې حال کې چې ورګډ شو اوبه یـې شیشـې تـه راپاشـلې.. سمدسـتي اوبـه بولـټ تـه ورو ورنـږدې شـولې. او جیپ موټر ځپو په زوره واهه خو بیا هم موږ ته اوبه را ونه رسېدلې. اوبـه دلتـه پـه کـراره بهېـدلې. او د سـیند مینځ د باسـکټبال تـوپ پـه انـدازه پـه تیـرو سـره پوښـل شوی و.

د سیند په ببخ کې ښه کارول شوې لاره ښکارېدله. او موټروان په داسې حال کې چې موټر پـه صـحیح لار وربرابـر کـړي. مـوټر یـې ښـکته اوپورتـه. او مخکـې او وروسته رغړاوه.

د جمپونو پرمهال کریس وویل: که موټر بند شي. څه به پېښـېږي؟ لکـه غـړ یـې اورېدلی وي. د موټر ماشین ولړزېد او بیا بند شو. د مـوټر پـه مخکنـي سیټ یـې ناست وم او د اوبو جریان زمـا د سـیټ د دروازې سـره راټولیـدلې. مـوټروان هـم د دغه پېښېدونکې ډرامې له امله و نه خوځېده. هغـه زمـوږ پـارونکې تبصـرې څخـه ځان کوڼ کړ او د موټر سلف یې تکرارۍ د چالانېدلو په موخه تـاووه. زمـوږ وروسـته موټر زموږ له څنګه تېرېدل او ځپـو یـې زمـوږ مـوټر واهـه. هغـوی د مرسـتې هېڅ لاسنیوی ونه کړ. ما وویل: اوس ښه شوه. موټروان بـه پـه انجـن بانـدې اوبـه تېـرې کړي او بیا اوبه موټر ته راننوځي او د ښکته کېدلو څو دقیقې وروسته بـه پـه اوبـو کې ډوب شو! ما وروسته وروکتل او په دغـه حالـت بانـدې مـې وخنـدل. او ومـې پوښتل: باید له سیند څخه پلي تېر شو که څنګه؟

پـه همدغـه شـېبه کـې ماشـین ولړزیـده. بیـا چالان شـو. د ګېـر د غـږ او د یـوې ځواکمنې جیټکې سره موټر بیا په خوځښت پیل وکړ څو دقیقې وروسته جیـپ لـه اوبو پورې غـاړې تـه ووت.. مـوږ ډېـر ښـکته او پورتـه شـو خـو پـه حیرانتیـا سـره. وچ راووتلو! وروسته خبـر شـوو چـې اوسـپنز پـل یـوازې د پیـاده تـګ پـل دی. ځـواکمن ښـکارېده خـو د مـوټر د وزن سـره رالوېـده. د مـوټر پـه واسـطه د سـیند څخـه د

تېرېدلو يوازينی لاره په سيند ورگډېدل و. هوايي ډگر ته د ورپورې کېدو او رپوټې کېدو لپاره د ځلوېښتو ورځو په جريان کې ډېر ځلې تېر شو خو بيا هيڅ لوند او موټر هم هيڅ بند نه شو. شمال خوا ته په هغه مځکه چې د الوتنې پروخت پرې تېر شو. ولاړو. زموږ لاره د کيفيت له اړخه سړک ته ورنږدې هم نه وه. خامه لار وه. د نرۍ لار څخه لږه زياته پراخه او دومره سوري پکې و چې موټر که هرڅومره په کراره هم خوځېده. ښکته او پورته ټوپونه يې وهل. د لومړيو څو دقيقو په لړ کې موټر پورته او په اوسپنيزه چت يې ووهلم. څو ثانيې وروسته يې ښي اړخ ته وښويولم په ښی کړکۍ مې سر ولگېد. زه ډېر ژر وپوهېدلم چې بايد ځان راټول. لنگي شخ. پښې په کونجونو کې ټينگې. منگولې د کړکې پر سر په هينډل باندې راتاو او کوناټی د سيټ څخه لږ جگ ونيسم څو د جمپونو او ناڅاپي بدلون سره ځان راټينگ کړم. بارک کلی چېرې چې موږ اوسېدلو. يوازې د يوه ميل څخه زيات واټن کې و او تر رسېدلو پورې يې له موږ پنځلس دردناکه دقيقې ونيولې. بارک کلی د سړک ترغاړې له تيرو جوړ شوي کلاگانې وې. ځينې کلاگانې په عنعنوي ډول په خټو خړل شوې او د ددغه کلاگانو ترشا په گډوډ شکل جوړې شوې وې.

موږ خوځېدنې ته دوام ورکړ او ترشا مو خړ-نصواري رنگه دوړې پرتې وې. موټروان به د سړک ترغاړې د کوچنيو دوکانونو چې د مېوو او سبزيو سره د ولاړو ماشومانو او لويانو د پاملرنې لپاره هارن غږاوه. سړک ښی غاړې ته وگرځېده او موږ يوې شنډې ساحې ته ورگډ شوو. زموږ په ښی غاړه د شمالي ټلوالې د مهماتو ستر ډيپو و. دغه کلا باندې اغزن تار راتاو او په منځ کې يې د خټو يو بله ودانۍ ليدل کېدله. پاتې نوره سيمه د توپ د گوليو پر بکسونو او ۱۲۲ ملي متره راکټونه په بربنډ او بې احتياطه ډول چې اغزن تار ترې راتاو شوی و. پوښل شوې وه. د مهماتو له ډنبار څخه مخامخ تقريبا پنځوس گزه ليرې د تيرو يوه کلا وه. جيپ موټر نېغ د همغه کلا دروازې ته ورغی. همدا زموږ منزل و! ريک له وروستني سيټ څخه وويل: دا خو ډېره ښه شوه. موږ به د مهماتو د ډيپو ترڅنگ اوسېږو. که چېرې دغه شی کوم وخت وچاوېد. موږ به ټول له دوړو سره گډ کړي. د دغه خورې تبصرې سره. جيپ موټر د پاتې نو رکاروان د موټر ترشا ودرېده. دوړې هم راپسې راورسېدې او ترې ښکته شوو.

ممتاز د هرکلي کميټې مشر و. په داسې حال کې چې ممتاز دځان نه ټيټ رتبه کسانو ته سخت او سپک امرونه کول. هغه يو لوړ. څواکمن سړی چې خړ وېښتان يې لرل جان محمد نومېده مورته د دغه مېلمستون مسول راوپېژنده. ترهغې چې موږ دلته يوجان محمد به د دغه مېلمستون مسول وي.

ودانۍ دغره لمنې ته څېرمه جوړه شوې وه. په منځ کې يې له تيرو اوخاورو

جوړې شوې کوټې وې. افغانان چې زيات عمر يې پنځلس او شپاړس کلن وو سرتېري وو. هغوی له جيپه زمور سامان په بيړه راښکته کړ. ستان وويل چې هغه به د سامان لېږدول وڅاري. کله چې ټول گروپ سره راغونډ شو. جان محمد په کور کې راوگرځولو.

کلا د غره په ډډه باندې د دوو اصلي ودانيو په لړلو سره جوړه شوې او يوه پر بله سپړې وې. لومړی مو سکتنۍ ودانۍ وکتله. دغه وداني د دروازې سره ودانۍ ته ورته والی درلود. دا يوه اورده ودانۍ وه. سره له دې چې چت يې درلود. منځنۍ برخه يې بشپړه شوې نه وه. ساختماني توکي، خښتې، د ونې ستې. او د تيرو او شږو انبارونه د انگر ترنيمايې پورې پراته وو. د جوړې شوې ودانۍ په منځ کې يو اورد دهليز و. مور د ودانۍ په سر کې په دوه کوټو کې چې يوه يې د ممتاز او بله زما و. ځای په ځای کېدلو. زمور افغان کوربه گان په کوچنيو کوټو کې اوسېدل. دهليز زمور د توکو او د اکمالاتو د دلی د ايښودلو لپاره کارول کېده.

جان محمدزماداوسېدولپاره يوازې کوټه راکړه. ماپه پيل کې ددغې کوټې قبلول دځان لپاره ور ونه باله خوددې لپاره چې کريس جان محمدته ويلي ووچې زه دېرجگپوړی افسر او جنرال وم. جان محمدټينگار وکړچې زه بايددغه کوټه قبوله کړم اودهغه سمدستي وروسته زه شاغلی جنرال شوم. د نورو کسانو د اوسېدلو د کم ځای په ليدلو سره مې يو څه شرم احساس کړ خو دا چې صحي ستونزې مې لرلې د دغه کوټې په درلودلو سره بار بار مننداوی وم. دغه وداني د غونډی په لوړه ډډه پرته وه او په بام باندې يې د اوسپنې کټاره درلوده. د پنجشېر د درې په پورې غاړه ختيځ لورې ته د غرونو چې دره يې جوړوله. او سويل ته شکته د هوايي ډگر په خوا چې ډگر د غونډۍ د کرليچ پنا کړی و. ښه منظره درلودله. دغه ودانۍ سره يوه بله ټرل شوې ودانۍ وه چې د پخلنځی يا پخلنځي په نوم يادېدله او يوه کوچنۍ کوټه يې د نيمگړي تشناب په توگه کاروله. تشناب په خپله د چيني يو ځلور کونجه لوښی او په منځ کې يې يو سوری او د پښو نښان پرې جوړ شوي و.

جـان محمدپـه غرورسـره وويـل چـې احمدشـاه مسـعودبه هرکلـه چـې دپنجشېردرې دغه برخې ته راغی دغه ودانۍ به يې د قرارگاه په توگه کاروله. او له دې پاسنۍ کوټې څخه زيات کار اخيسته چې په دره کې ترټولو بهتره ودانۍ وه.

له جان محمدسره په ودانۍ باندې په گرځېدو. وروسته لوی روسي موټرچې له چورلکې څخه زمورپرسامان بار و په داسې حال کې چې مېوري ورپسې شا ته و او هارنونه يې کاول. راورسېد. له موټرڅخه دسامان کوزولو پر مهال کومه پېښه

را منځ ته نه شوه پرته له هغه وخت چې موټروان د شا ته تګ پرمهال د تيرو له دېوال سره دغه لوی موټر ووهه او دېوال يې راوغورځاوه. اوجان محمدهم پخپلوکسانوباندې چيغې وهلې څوهرڅوك په سم ډول سامان ځای ته ورسوي. دګروپ هرغړی د خپل سامان په منظم کولولګياشو. اود ګروپ غړو د هغه سره د لپ ټاپ راخلاصولو او د څومېزونو برابرولو کې مرسته وکړله. مېزونه مو د کاري سيمې د زياتوالي لپاره منظم کړل. د جان محمد سره د پوښتنې وروسته موږ بايد په خپلو جنراټورونو تکيه کړې وای. موږ له ځان سره يو دانه پينځه کېلو واټه هونډه او دوه دانې يو کېلو واټه هونډه جنراټورونه راوړي وو. د پاپي د ډېرې تجربې لرلو له امله د دغه زورونکو غصه کوونکو ځارويو فعال ساتلو ته اړتيا نه وه. موږ د پاپي ټوله او همدارنګه د بک مېخانکي تجربه په کار اچولو ته اړتيا درلوده څو دغه جنراټوران د دوړو. اوږدو ساعتونو او په زياته اندازه خيرنو تيلو په کارولو سره فعال وساتو. توره بوجۍ مې په کوټه کې دننه د وروستني چپرکټه سره څنګ ته انتقال کړله. اوسپنزه پټوره مې پرې څو اندازه او محتويات يې معاينه کړم. هر څه صحيح وو. ما پيسو ته دوام داره لاس رسي ته اړتيا لرله نو يوازې د صندوق قلفونه مې کارول(يوازينی کيلي مې له ځان سره ساتله) او دغه صندوق مې د نور خونديتوب لپاره په ځواکمن پلاستيکې ربړتيپ باندې وتړه. ما د خپلو کسانو له امله انديښنه نه درلوده خو په ودانۍ کې د زياتو افغانانو د شتون له امله انديښمن وم او صندوق مې د نورو توکو په بنډلونو کې پټ کړ. د وسلو ستر صندوق مو په دهليز کې ايښي و. د وسلې دپاره سم ځای و. ټولو په خپل وخت سره ځارلی او لاس رسی درلودلی شو. ما او ريک پرېکړه وکړه چې دا چې د پنجشير په زړه او خوندي ځای کې د کور دننه او په کلي کې د وسلې ګرځولو ته اړتيا نه وه. دا چې وسلې ټولې يو ځای وې د ستان لپاره به د وسلې ځارل چې هغه يې مشر و. اسان وي. خو سره له دې موږ په يوه خطرناکه هېواد کې و. نو د دې لپاره د ودانۍ څخه ليرې بهرته تللو. که څه هم چې دچورلکې کوزېدوځای ته به تللو. هروخت به وسلوال و. ډاکټرهم خپل سامان په دهلېزکې د زينې ترڅنګ د زيات شمېر دارو درمل اوکمالاتو ته د اسان لاس رسي لپاره ايښي و. يو څه چې زه پرې نه وم خبر هغه پينځه ګيلنه د اوبو د تصفيه کولو لپاره کلورين وو چې په شمالي ويرجينيا کې يې د يوه اکمالاتي مغازې څخه پېرودلي و. کله چې يې ما علت وپوښت. ډاکټر وويل چې په داسې سفر باندې د کلورينو راوړل بهترين شی دی. موږ يې د څښلو اوبو د تصفيه کولو. د تشناب د سيمې د صحي ساتلو او د حمام کولو وروسته يې په پښو اچولی شو څو د بوټانو د اغوستلو څخه پيدا شوي مکروبات له منځه يوسي.

ايا موږ په رښتيا سره کولای شو چې د لامبو د ډنډ کلورين د څښلو د اوبو د

تصفیه کولو لپاره وکار وو؟ ډاکټر موسکۍ شو او ویې ویل چې هو. په متحده ایالاتو کې په زیاتو ښارونو کې د عامه څښلو اوبو سره کلورین ګډوي خو د اوبو د بوتل په اندازه د اوبو د تصفیه کولو لپاره ډېره کمه اندازه پکارېږي. د ډاکټر له لړې اندازې څخه پوه شوم چې د ډنډ د پوره دوبي لپاره یوځل کلورین کول کفایت کوي.

د بخت د ملیتا له امله وروسته بیا موږولیدل چې له جان محمدسره د دېرش کرتنو څخه زیات معدني اوبه وې چې درې ته د تېر ځل راغلي سي، ای، اې ګروپ څخه دلته پاتې وې.

مـوږ تـر پایـه د دغواوبـو او د نـورو اوبـو پـه راوړلـو سـره محلـي اوبوتـه هـېڅ اړتیاپیدانکړه. دمابښام په شپږو بجو هر څه د سمون په لورې لاړ. د راتګ هغه بیړه اوسر دردي هم له منځه لاړه او ګروپ د ارتباطي توکو څخه راتاو و. پاپي د بک په مرسته لـوی جنراټـور د نابشـپړې شـوې ودانـۍ چـې زمـوږ مخـامخ وه. کېښـود او چالان یې کړ. د جنراټور لپاره دومره هوسا ځای نه و خو په دې سره یې غږ لیرې کېده. د شپږو بجو څخه څو دقیقې وروسته پاپي د خپل سامان وروستي سرونه او بیخونه سره وتړل او هر څه یې چالان کړل. هغه په انګړ کې د لګېدلي سټلایټ انتن ته د کیبل نښلول معاینه کړل د سیستم د چمتو والي اعلان یې وکړ. زه هم لپ ټاپ کمپیوټر تـه کېناسـتم اود سي. ای. اې قرارګاه تـه مې پنجشېرتـه زمـوږ د ګروپ د خوندي رسېدلو لپاره یو لنډ تلګراف ولیکه. مادوی تـه زمـوږ د موقیعـت د دقیق پوهاوي لپاره جغرافیایي کواردیناټ هم ورولېږل. څـودقیقې وروستـه پیغـام واشنګټن ته په هوا شواو ژامې ماتوونکي ګروپ رسماً خپل کار پیل کړ.

دریمه برخه
ژامې ماتوونکی گروپ
۲۰۰۱ کال د سپتمبر۲۸-۲۶
دیارلسم څپرکی

په هغه ماښام چې موږ راورسېدو. محلي کسانو هغه خواړه چې زموږ د ټول سفر په بهیر کې معیاري خوراک گڼل کېدل . په دې کې وریجې او چرگ او یا هغه څه چې د چرگ په نوم په دره کې پلورل کېدل. راوړل.
موږ په غیر منظم ډول د کاري سیمې په غولي باندې د بالښتونو په دایره کې کېناستلو او د پتنوسونوڅخه مو خواړه په قاشوغو سره قابونو ته واچول. تازه پیاز. واړه بانجان او تازه شنه مرچ د یو څه اندازه هغه مسالې سره چې موږ له ځان سره راوړې وو. خواړه یو څه خوندور کړي وو.
ایم ار اي (په پاکټو کې تیار جوړ شوي خواړه. ژباړن) او پاور بار(یو ډول چاکلیټ چې ډېر ویټامینونه لري. ژباړن) د خوړلو څخه چې موږ یې اټکل کړی و. په امن کې وو. په لومړي ماښام له ډوډۍ خوړلووروسته ممتاز راغی او خبر یې راکړ چې د مسعود د څارگرې ادارې مشر انجنیېر عارف سروري به د شپې د اتو بجو په خوا او شا کې زموږ سره د لیدو لپاره کلا ته راشي.
د شمالي ټلوالې د جگپوړي چارواکې سره زموږ دغه لومړنی لیدنه وه نو په دې اساس زموږ لپاره په زړه پورې خبر و. ځکه چې موږ غوښتل هر څومره په چټکۍ سره وکولای شو له شمالي ټلوالې سره په نېغه اړیکه ټینگه کړو.
زه له ریک سره وغږیدم. ددې لپاره چې عارف او د شمالي ټلوالې نورو جگپوړو چارواکو ته د رښتیني همکارۍ غږ او په عین وخت کې هغه خوښ کړو. باید په پرتلیزډول زیاته اندازه ورته نقدې پیسې ولروڅو عارف ته یې ورکړو.
موږ په پنځه سوه زره باندې سره هوکړه وکړه . زه او ریک وروستنۍ کوټې ته ولاړو چې پیسې په پاکټ کې بندې کړو. زه د مخکنۍ تجربې په اساس پوهېدم چې دهېڅ افغاني لوړپوړي چارواکي دا نه خوښېدل چې پیسې په نېغ ډول په خپل لاس واخلي. ما باید پیسې په کاغذ کې نغښتلې او یا مې په خلته کې د اسانه لېږدولو په خاطر اچولې وای.
زه پوهېدم چې پیسې به د لېدنې په وخت د دوی لخوا ونه شمېرل شي. زه

پوهېدم چې عارف به د پیسو د ورکړې په مهال د غبر ګون د نه ښودلو لپاره ډېر وګالي.

د سي ای اې په چوکاټ کې باید پیسې په اصلي حالت له صحیح شمېرلو وروسته وسپارل شي خو په دغسې اله ګوله کې زه په پوره ډول خپلواکه وم خو پیسې په هر ډول چې اړتیا وي. خرڅ او تادیه کړم. خپله مې کولای شول چې څومره او چاته باید پیسې ورکړم او د دې لپاره مې له قرارګاه څخه تصدیق ته اړتیــــــــــــا نــــــــــــــــه درلــــــــــــــــــوده.

دغه ډول پرېکړه له قانونه سرغړونه وه. خو دغه حالت نورمال حالت نه واو په عین وخت کې زه پوهېدم چې د دغه پیسو د لګښت د څرنګوالي لپاره به په نږدې راتلونکې کې وپوښتل شم.

ما له ځان سره دقیقاً ریکارډ ساته او عادت مې وګرځاوه خو پیسې حساب. ویې پیچم او د یوه (سي. ای. اې) افسر په شتون کې یې تسلیم کړم. په پنجشیر کې د ځلوېښتو ورځو په بهیر کې مې د پیسو زیاته برخه. پینځه ملیونه ډالر خپلو افغاني ملګرو ته د هغوی د اړتیا په خاطر ورکړل. ددغو پیسو ډېره کمه برخه زموږ د ګروپ د اړینو موادو د لاسته راوړلو په خاطر وکارول شوه. دغه یوه زیاته اندازه پیسې وې خو که د هغه لاس ته راوړنو سره یې پرتله کړو لکه د طالبانو د نظامي ځواک ړنګېدل. د القاعده شبکې ماتېدل او په افغانستان کې د تروریزم دپاره سرپنا له منځه وړلو په وړاندې. په ډېر ښه ډول خرڅ شوې وې.

انجینیرعارف تقریبا د اته بجو په خواوشاکې راغی. وروسته له دې نه چې ممتاز د ورځې په پېښو باندې په لنډ ډول مالومات ورکړل. ما او ریک ورسره ولېدل. عارف په ربښتیا هم انجینیر و او د ده لپاره مناسب لقب هم و. په افغانستان او ایران کې ځوک چې د پوهنتون څخه فارغ شي. همغه لقب د ځان دپاره خپلوي او عزت یې ګڼي.

عارف د دېرش کلنی په وروستیو کې و. نري تور ویښتان او لنډۍګیره یې درلوده. په دره کې زما د ماموریت په مهال هغه لوېدیځ ډوله خاکي پتلون. پتلون ته ورته بنیان او نسواري رنګه واسکټ اغوست زما نه په یادېږي چې هغه د خولی یا د سر پټولو دپاره داسې څه چې د یو افغان دپاره غیرمعمولي دي په سر کړي وي. هغه یو اغېزمن نطاق. ځواکمن او متحرکه سړی و. هغه پارسي ژبی لوی شوی و. په پښتو ژبه په روانه توګه غږېده. هغه په روسي ژبه ډېر ښه پوهېده او انګلیسي یې هم بده نه وه. هغه غوښتل چې د غونډو په دوران کې په دري ژبه وغږېږي داچې زما دري د ده د انګلیسي په اندازه وه. نوموړ ممتاز د ژباړن په توګه وکاروه. عارف سمدستي وپېژندم ځکه چې زه یو د هغو دوو سي ای اې افسرانو له ډلې څخه وم چې د قوماندان مسعود سره یې په پاریس کې

په ۲۰۰۱ کال کې لیدلي و. ما هم عارف و پېژانده. ځکه چې هغه د مسعود د افغاني ننني ډلې (مسعود ته نږدې کسان. ژباړن) غړی و. زه او دی د هغې لیدنې وروسته بیا نه وو سره غږېدلي خو یو بل ته ورپېژندل شوي وو. ما عارف ته وویل چې ما له مسعود سره په کابل کې د ۱۹۹۶ کال د سپټمبر او دوهم ځل لپاره مې په تالقانو کې په د۱۹۹۷ کال په وروستیو کې ورسره لیدلي وو. ما ورته وویل چې ممتاز مسعود سره په کابل کې زما دلیدنې پرمهال زموږ موټرچلونکی و.

ما بیا زما د ښه ملګري خلیلي د صحت پوښتنه وکړه ځکه چې هغه هم په هغه بمې چاودونه کې سخت ټپي شوی و. چې مسعودیې د سپټمبر په ۹ له منځه یووړ. ما هغه ته وویل چې زما او د خلیلي ملګرتیا د ۱۹۸۸ کال څخه راپه دېخوا پیل شوه او نږدې دوستان و. عارف وویل چې خلیلي اوس ډېر ښه دی که څه هم چې د هغه لنګي سخت ټپي و او د هغه لپاره په پښو ګرځېدل به له ستونزو ډک وي.

داسې ښکارېدله چې د ده ښی سترګې نظیر هم له لاسه ورکړی و. عارف پوهېده چې مسعود د ده ژوند ساتلای و. له وژونکې پېښې لږ څه ورانديې مسعود د هغه پاسپورت د خلیلي د جاکټ په مخ جیب کې د زړه په سر ایښی و. پاسپورټ په نهه دانو کوچنیو پرچو لګېدلی و او هیڅ یوه یې هم له پاسپورټ څخه نه وه تېره شوې. ډاکټرانو ویلي ووچې که نوموړو هرې پرچې د خلیلي زړه وهلی وای. ښايي چې هغه یې وژلی وای.

ما ورته وویل چې په تېرو کلونو کې خلیلې زما او د مسعود تر منځ د غونډو په جوړولو کې مهم رول درلود. د ۲۰۰۱ کال غونډه په پاریس کې غیر معمولي وه. ځکه چې مسعود به له افغانستان څخه ډېر کم ځل بهر ته سفر کاوه. په دغه سفر کې مسعود له پاریس څخه لیدنه وکړه او د پاریس د حکومت مېلمه و. چې ترتیبات یې د فرانسې دکورنی امنیتي څانګې یاډي اې ټي لخوا نیول شوي وو.

مسعود لدغه وخت څخه په ګټه اخیستنې د فرانسې او نورو اروپایي هېوادونو د مرستې غوښتنې په لټه کې شو. مسعود لدغه لیدنې وروسته د اروپایي اتحاد له پارلمان سره په سټراسبورګ. فرانس کې ولیدل څو له ده سره د طالبانو پر وړاندې د جګړې لپاره د مرستې غوښتنه وکړي. په همغه میاشت کې په بامیانو کې دوه غټې له تیرو دجوړو شویو مجسمو په ویجاړتوب سره اروپایې ټولنه ډېره ولړزول شوه او مسعود اروپایي پارلمان څخه د مرستې هیله مندو.

خلیلي په هغه هوټل کې چې د مسعود چارواکي پاتې کېدل. زما لپاره د یوې کوټې ترتیبات نیولي و. کله چې ما لېست وکوت. زه د هوټل له کارکونکو سره د افغان مېلمنو په لېست کې شامل وم. زه د فرانسې څارګرې ډلو کورنی او

بهرنۍ دي جي اې اي دواړو په ښه توګه پېژندلم. په دغه سفر کې مې خپل اصلي نوم کاروه. زه به کله کله حیرانیدم چې د دي اېس ټي د لېست د بیا کتلو پر مهال زما د نوم په لیدلو سره څه فکر کاوه. ښايي داسې يو څه به يې ويل. چې سي. ای. اې څنګه له دغه لیدنې څخه خبر درلود او څنکه د هغوی یو افسر د افغان مېلمنو په لیست کې و؟ څنګه دغه امکان لرلای شي؟

له مسعود سره زما د اړیکو او د خلیلي سره زما د شخصي ملګرتیا له امله عارف په ما باندې سمدستي باوري شو او دغه باور به دشمالي ټلوالې هغه لیډرانو ته چې له ماسره به یې په راتلونکې څو اونیو کې کار کاوه، وغځیږي. له عارف سره ملاقات ښه تېر شو. هغه غوښتل چې زموږ دماموریت په څرنګوالي باندې پوه شي. موږ به څو په افغانستان کې پاتې شو؟ د امریکې حکومت د افغانستان لپاره څه پلان درلود؟ ایا شمالي ټلوالې ته به مرسته ورسېږي؟ ما دده پوښتنو ته په دقیقه توګه غوږ نیولای و. ما ورته وویل چې د امریکې حکومت د القاعده شبکې د ختمولو او په افغانستان کې د هغوی لپاره د سرپنا په پای ته رسولو کې مطلق جدي دی. داپه سیاسي اونظامي لحاظ د طالبانو دله منځه وړلوپه ماناوو. ما عارف ته وویل چې زه د امریکې حکومت د پلان تشریحات نه لرم خو باوري یم چې د امریکې ولس مشر د امریکې پوځ ته هدایت ورکړي چې د طالبانو او د هغو عرب مېلمنو په ضد خپل ټول وس. ځواک او توان وکاروي.

ما ورته وویل چې د امریکې متحده ایالات په دې پوهېږي چې شمالي ټلواله د طالبانو پر وړاندې تر ټولو زیات مخالف اغېزناکه ځواک دی او د طالبانو او د عرب جنګیالو زیات نظامي ځواک له شمالي ټلوالې سره په لومړیو لیکو کې او په لوېديځ کې. چې د تخار دلومړۍ کرښې په نوم یادېده. متمرکز و. زما ماموریت دا و چې د شمالي ټلوالې له لیډرانو سره نږدې اړیکې وساتم څو د شمالي ټلوالې هغه ځواکونه چې د امریکې له اردو سره په یو ځای د طالبانو پر وړاندې جنګېږي. همکاره وساتم او د طالبانو د له منځه وړلو لپاره د پنجشېر د درې د امریکې د پوځ د ځانګړو عملیاتو د مرکز په توګه د کارولو لپاره ترتیبات ونیسم. زموږ ګروپ به د ماموریت د سرته رسولو تر پایه پاتې کېدلای. شمالي ټلوالې ته بودیجه ورکول کېدله او لومړنۍ ورکړه په همغه ماښام تر سره کېدله چې موږ له عارف او د شمالي ټلوالې د ګروپ له نوروغړو سره یو ځای کار کاوه. څو څرګنده کړو چې شمالي ټلوالې ځواکونه د راتلونکې جګړې ته د تیاری نیولو لپاره څه توکو ته اړتیا لری. هغه اړین سامان چې په سیمه کې موجود نه و. د هوا له لارې به په دره کې وغورځول شي او همدارنګه په نورو هغو ځایونو کې چې مجاهدین له طالبالون سره مخامخ دي. هم وغورځول شي.

ما ورته وویل چې زموږ یو بل مهم ماموریت به د شمالي ټلوالې د لمړیو

کرښو څخه د جي پي اېس (هغه اله ده چې د جغرافیایي شمېرو په اساس موقیعت پېژندنه کوي. ژباړن) په واسطه په نښه کړو څو زموږ الوتکې د شمالي ټلوالې د ځواکونو او د موقیعتونو په ضد بمباري و نه کړي. موږ غوښتل هغه توکي پیداکړو چې وکولای شو د شمالي ټلوالې درانده اسباب لکه ټانکونه په نښه کړوڅو زموږ پیلوټانو ملګري ځواکونه وپېژندلای او په ډاډه زړه د دښمن پر ضد یرغل باندې متمرکز شي.

موږ غوښتل چې له عارف سره ګډ استخباراتي دفتر زموږ له ګروپ سره یو ځای زموږ په کلا کې تاسیس کړو. ټول هغه څارګر مالومات چې شمالي ټلوالې به په راټلونکو څو ورځو کې راغونډول او که هغه استخباراتي مالومات چې له شمالي ټلوالې سره په لومړیو کرښو کې د دښمن فعالیتونو په باب یا له مستقیمې لیدنې څخه په لاس راتلل او یا د دښمن د مخابرو د پیغامونو څخه لاس ته راتلل. په دغه دفتر کې راغونډېدل او بیا به پرتله. تجزیه کېدل او د سي ای اې سره شریک کېدلی او په بدل کې به موږ له عارف سره له خپلو منابعو څخه اخیستل شوي مالومات شریک کول. د عارف لپاره دغه ښه خبر واو ما لیده چې زما د خبرو په بهیر کې د هغه په مخ کې هوسایې راغله.

د ۱۹۸۰ کال ورسته کله چې د روسانو رول د جګړې په ډګر کې په څرګند ډول کم شو. هر یوازینی فکټور چې د جګړې په پای کې به یې په سختو شېبوکې د جګړې د نتیجې پرېکړه کوله. بلې لورې ته د قوماندانانو تسلیمېدل او د هغوی سره یوځای کېدل وو.

بې جراته شوي او بې زړه شوي او سرخوړنده قوماندانان به له مخالفې ډلې سره د خپلو تاوانونو د پوره کولو لپاره معاملو ته غاړې ایښودې.

طالبانو چې د پاکستان او د عرب سخت دریځه اسامه بن لادن لخوا مالي مرسته ترلاسه کوله. په ۱۹۹۴ کې د کندهار سویلي دښتې د پاکولو وروسته یې زیاتې کامیابۍ د پیسو په زور واخیستلې.

د یوه ګوند څخه بل ګوند ته تښتېدل کومه د شرم خبره نه وه. مخالف ګوند ته په وفادارۍ بدلېدل ډېر اسان کار و. په ناوړه او سخت حالت کې له ګوند څخه تښتېدلوته په عمومي توګه د ښې پرېکړې فکر کېده.

د مسعود په مړینې او د طالبانو لومړۍ کرښې ته په پاکستان کې د مذهبي مدرسو څخه د داوطلبه شاګردانو د شمېر په زیاتېدو سره د شمالي ټلوالې لپاره هرڅه بې خونده او سپېره ښکارېدل.

د شمالي ټلوالې مشران له بهرنۍنړۍ سره د سټلایت ټلویزیون په واسطه نښلېدلي و. او د سپټمبر ۱۱ مې وروسته یې د امریکې د لیډرانو ویناوې لیدلې.

درې تـه زموږ د راتـګ خبرتیا دوی تـه د مسعود له مړیني څخه وروستـه د

هیلې درلودلو لپاره لومړنی کلک دلیل و. اوس موږ په دره کې وو او ما هغه څه چې دوی یې دقیقاً اورېدل غوښتل.

یوه نقطه وه چې عارف یې څوراوه. هغه دا چې ما ټینګار کاوه چې په شمال کې له ټولوهغو قوماندانانو سره چې د شمالي ټلوالې اړوند و او په اړونده سیمه کې یې په خپلواک ډول عملیات کول. موږ معاملې کوو. عارف په نبغ ډول وویل چې د قوماندانانو سره دغه نیغ په نېغه تماس به د ستونزو حل نه بلکې ستونزې به پیدا کړي ځکه چې دغه به د واک رسۍ ګډوډه کړي. هغه ډاډه و چې جنرال محمد فهیم چې د مسعود مړینې وروسته دهغه ځای ناستی او د شمالي ټلوالې عمومي لیډر و. غواړي چې د شمالي ټلوالې له قوماندانانو سره ټول تماسونه دده لخوا اداره شي.

ما ورته په ځواب کې وویل چې زه د فهیم مقام باندې پوهېږم ولې په راتلونکې جګړه کې د بریا لپاره د سي. ای. اې مسقیم تماس په ډګر باندې د هر او ټولو قوماندانانو سره چې غواړي د طالبانو په وړاندې لښکرې رامېدان ته کړي. اړین دی.

سي ای اې مخکې له مخکې زیاتو مهمو قوماندانانو سره اړیکې ټینګې کړې وې لکه جنرال دوستم سره په مزار کې. اسماعیل خان سره په هرات کې. شیه قوماندان خلیلي سره په بامیانو کې او همدارنګه موږ به له پښتنو قوماندانو سره چې په سویل کې وو. دې ته ورته اړیکو ټینګولو ته دوام ورکړو.

ما یوې مهمې موضوع ته اشاره وکړه او ورته مې وویل چې امریکې به د ۱۹۹۲ کال په ډول چې د مجاهدینو له کامیابۍ وروسته یې دوی ته شا کړه. ونکړي. دا ځل د امریکې دولت په دغه جګړه کې په اوږده مزل کې ده.

موږ غواړو چې په افغانستان کې حالاتو ته بدلون ورکړو. کله چې طالبان له منځه ولاړل او د اسامه بن لادن او د هغه عرب ترهګر له منځه ولاړشي. هېواد به د بیارغونې په لور روان. اقتصاد به بیا څواکمن او په پای کې به هېواد ته سوله راشي. یو سوله ییز او په اقتصاد ولاړ دولت به دا ډاډه کړي چې دغه هېواد به هیڅکله بهرنیو ترورېستانو ته د امن ځای په توګه ونه کارول شي.

ددې تضمین کولو لپاره د امریکې حکومت ته پکارده چې د یوه صادق منځګړي په توګه له طالبانو وروسته په افغانستان کې رول ولوبوي. ددې هدف دلاس ته راوړلو لپاره موږ باید د هېواد له هرځومره ډېرو لیډرانو سره اړیکې ټینګې کړو. ما په مودبانه او په ټینګه ورته وویل چې فهیم او د شمالي ټلوالې لیډران به د دوی له قوماندانو سره چې په شمال کې وو. خبر وي خو موږ به له دوی سره په نیغ ډول معاملې کوو. عارف په بې مېلۍ سره دغه حقیقت ومانه خو موضوع په راتلونکو اونیو کې زموږ د اړیکو لپاره بلا ګرځېده.

له ژمنې سره سم مې عارف ته هغه کڅوړه چې ما پکې پنځه سوه زره ډالر اېښي وو،وروسپارله. هغه کڅوړه واخيسته خو ويې نه کتله او ممتاز ته يې ورکړه. ما د پيسو مقدار ورته وښود او ورته مې وويل چې دا د شمالي ټلوالې لپاره لومړنی تاديه وه. ما ورته وويل چې زه هيله مند يم چې د عارف استخباراتي ادارې ته به د دغې لومړنی تاديې زياته برخه د شمالي ټلوالې لخوا تصديق شي.

ما عارف ته وويل چې زه غواړم د ده استخباراتي اداره وتوانېږي چې اغېزمنه دنده اجرا کړي او ګډ استخباراتي دفتر بايد زرترزره تيار شي. ما ورته وويل زه ډاډه يم چې جنرال فهيم به ددغه پيسو يوه اندازه پيسې د ځواکونو په اکمالولو ولګوي خو ما عارف ته وويل چې فهيم ته په ټينګار سره ووايي چې د ځانګړو نظامي مقاصدو لپاره زياته اندازه نوري پيسې هم موجودي دي. عارف په خپلې جيبې کتابچه کې د پيسو مقدار وليکه او ممتاز ته يې تکرار کړ. زه هم موسکی شوم. دا ښکاره وه چې عارف د پيسو لپاره زما غوندې دوه ځله احتياط کاوه. هغه غوښتل چې ممتاز په دې توګه وتوانېږي چې د پيسو مقدار د فهيم او نورو ليډرانو د پوښتنې په ځواب کې تصديق کړي. په دې سره دغه ليدنه پای ته ورسېده. لاسونه مو سره ورکړل او دراتلونکې ماښام لپاره موله عارف سره د ليدنې پلانونه جوړ کړل.

ممتاز د ګډې څارګرې ادارې په جوړولو کار پيل کاوه او کريس له هغه سره د مرستې لپاره وټاکل شو. عارف بايد له فهيم سره د کابل د لومړيو کرښو او د شمالي ټلوالې د موقيعتونو دجي پي ايس د سروې لپاره د ګروپ غړي ټاکلي وای. نومورې دنده له خطره ډک ماموريت و. ځکه چې د طالبانو لومړی کرښې دومره نږدې وې چې کولای يې شول زما افسر تر نېغ اور لاندې راولي او مور ټولو غو ښتل دغه کار چې هر څومره په احتياط سره امکان ولري. تر سره شي.

زه او ريک دفتر ته راوګرځېدلو او د ليدنې په باب مې يادښت وليکه. ريک له قراراګاه په خوندي کرښه باندې تلېفون وکړ څو له هانک سي سره وغږيږم.

هانک سي تازه د افغانستان د تروريزم ضد ماموريت يا سي ټي سي د ادارې کولو لپاره په دنده ګومارل شوی و.

دورځې کار مو د شپې تر نيمايې پای ته ورساوه. ما ددغه کار د سرته رسولو له امله ښه احساس درلود خو جسماً مې هيڅ ډول ښه احساس نه کاوه(لېکوال دلته د ناروغتيا يادونه کوي. ژباړن) د ماسپښين سر درد لا نور هم پسې ورزيات شو او لاندينی کولمومې هم ګواښوونکي اوازونه کول. زه خپلې کوټې ته چې دودانی په لاندې برخې کې وه. ولاړم. يوه بستره او يو محلې جوړ شوی بالښت زما د خوب ځای و. ما د زيات ځای په درلودلو سره ځان ګناهګار ځکه نشو ګڼلای چې ډېر ستړی او ناجوړه وم. او دا چې ګوښی وم. ډېر خوښ وم.

خو زه په دې نه پوهېدم چې د تشناب يوازينی اسانتيا د پخلنځي تر شا د ودانۍ په هاخوا کې ډېره ليرې وه. دوه ساعته وروسته له خوبه راويښ شوم. او دا يې پيل و. کولمې مې غړکه وې(پړسېدلې) او بايد ځان مې سمدستي تشناب ته رسولای وای.

په سويلي اسياکې مې زياتو کلونو د تېرولو له امله د اسهال له يوناځاپي يرغل سره پوره بلدتيا درلوده. ما د پتلون د ترلو لپاره هڅه وکړه خو ډېر ناوخت و. کوښښ مې وکړ خو کولمې مې په خپل سر د خلاصيدلو څخه بند نه کړای شوې. د تشناب کاغد له بنډل څخه مې د چټلۍ د پاکولو لپاره اوږد خولپوټی راپرې کړ خو ډېر کمه بريا مې ترلاسه کړله. زه په ويره او ډار کې وم. او پوهېدم چې د انګړ ها خوا تشناب ته په دغه حالت کې ځان نه شم رسولای. د ليټر په اندازه د اوبو پلاستيکې بوتل مې راواخيست او د جيبې چاقو په واسطه مې د بوتل خوله پرې کړه. د بوتل پريکړې خوله مې د کوناټيو لاندې ټينګه ورونيوله او ځان مې غلی کړ. په حيرانيتا سره ښه مې برابره وه. د ګوتو په سر کښيناستم. تبجن او د بدن اوبه مې کمه وه. شرم او درد مې په ورته وخت کې احساسول. خپل ځان اود مځکې مخ مې ککړ کړل. ما په همغه شپه د ښه کېدو هيله نه درلوده او دا په افغانستان کې زما د ماموريت لپاره ښه پيل و!

## څو ا رلسم څپرکی

زما لپاره راتلونکی ورځ تر ماسپښینه بې ګټې وه. په هغه سهار وختي تر بلې ودانۍ پورې د ډاکټر د پیداکولو په هیله کوړ وړ ولاړم.
بـك د دووپیلوټـانو. سټان او مېوري دچورلکې دبیارنګولولپاره په استنه کې دچورلکې ډګر ته ولاړل. چورلکه داوسني رنګ په درلودلوسره په دره کې ښکاره نښه وه اوداهغه څه وو چې موږنه غوښتل. دچورلکې نوی رنګ به دشمالي ټلوالې دشنه کموپلاژ(هغه وسیله چې ددښمن دغولولپاره کارول کېږي. ژ) له نمـونې سـره سـمون ولـري. زه د دوی تـګ تـه د تیـارۍ او بیـا پـه تللـو ډېـر لـږ وپوهېدلم.
ډاکټردمعـاینې داسـې وسیله نـه درلـوده چـې زمادنـاروغۍ لامـل څرګنـدکړي. هغه وویـل چـې سپیرو(یوډول مکروب ضد درمل) چې بازارتـه نـوي تولیدشـوي مکروب ضد درمل و. وکاروم اوهرڅه چې وي له منځه به یې یوسي.
یوه دانه مې وخوړله اوکوټې ته مې ځان وروځکاوه د ایموډیم په کارولو سره یې د ناروغۍ علایم یو څه کم کړل او یوه اندازه مایعات مې وڅښل.
سهارناوخته راویښ شوم. یوڅه ښه وم. خوبیاهم یا خو تشناب تـه نـږدې وم اویا خو پرېکړي بوتلانو ته نږدې اوسېدلم.
له غرمې وروسته (که څه هم چې زه یې له خوړلو تېر شوم) مې له ریك سره دراتلونکوڅو ورځولپاره دپلان جوړولوپه هکله ولیدل اومهم ټکي موطرح کړل. موږبایـددجنرال فهیم سره لیـدلي وئ. څـو د سي. ای. اې سره دهغـه د همکـارۍ هوکړه اودعارف هغه څرګندونې چې دامریکې ځانګړي ځواکونه کولای شي چې د پنجشېر دره د خپلو عملیاتو د مرکزپه توګه وکاروي. تصدیق کړې وای.
مادعـارف خبروتـه دشـك پـه سـترګه نـه کتـل خوماغوښـتل چـې همدغـه څرګندونې له فهیم څخه په نېغه واورم.
موږدشمالي ټلوالې له لومړیوکرښوڅخه چې دکابل په شمال کې پرتې وې. د جي پي ایس کوارډیناتود اخیستلولپاره د فهیم هوکړې ته اړتیا درلوده. دګډځارګر دفتـر جوړولـو لپـاره مـوکریس پـه خبـرو اتـرو کـې راګـډ کـړ. لـه هغـه څخـه مـې د بهترینومشورو هیله درلوده.
کـریس اوممتازپـه لانـدینۍ ودانـۍ کـې یـوه مناسـبه کوټـه خوښـه کـړې وه اودکـوټې لپـاره دځـو لویومېزونـو د پیـداکولوکارهم روان و. کـریس وویـل چـې د دېوالونودپراخـه ساحې(خالیګا) پـه درلودلوسره کولای شوچې دعملیاتودسیمې نقشې ورسرېښې کړواوممتازیوه اندازه لوی مقیاسه نقشې چې شمالي ټلوالې درلودلې. راوړې.

ممتاز د شپې په لسو بجوراغی اوخبر یې راکړچې جنرال فهیم. انجینرعارف او د شمالي ټلوالې د بهرنیوچارو وزیر عبدالله عبدالله زموږ سره د لیدنې لپاره د یو ساعت وروسته راروان دي.

عارف تېرماښام وویل چې دپېژندګلوی غونډه به د شپې ناوخته پیل شي. ما هیله درلوده چې ترهغې بـه مـې نـاروغي یـو څـه صـبر وکـړي. د ا چـې زه ډېرستومانه اوکمزوری شوی وم او د ارام لپاره مې اړتیا درلوده خـو د فهیم سره لیدنې لپاره لېواله وم.

سره له دې چې عارف ته مې یوه شپه وړانـدې پینځه سوه زره ډالـر ورکـړل. مابیـاهم غوښـتل چـې فهیم تـه یـوه لویـه انـدازه نغـدي تادیـه ورکـړم. څـو د لومړیوکرښوڅواکونه دجګړې لپاره تیارکړي.

د پیسو د پام وړ اندازه به دشمالي ټلوالې مشران خوښ کړي. سي. ای. اې لـه دوی سره د مرستې په کولو کې جدي وه او دا به زموږ د ګروپ سره په همکاری کې مستقیمې اومثبتې پایلې ولري.

ریك اوزه ولاړو او د توربکس څخه مـو یوملیـون ډالـر پـه کاغذ کـې تـاو او تیار کړل. غونډه له ټاکلي وخت سره سمه پیل شـوه د دوی درې مـوټره کـاروان دخړو او نسواري رنګه دوړوپه کولوسره راورسېد.

له فهیم سره دستړي مشي اوداخل تـه دهغـه دبدرګـه کولوپـه خاطر افغاني کارکوونکو منډې او رامنـډې پیـل کـړې. غونـډه د ودانـی پـه لانـدیني پـوړکـې چـې ممتـازپکې اوسېده پیـل شـوه. پـه کوټـه کـې ارزانـه لمڅـی پینځـه یاشـپږ چـوکی اوڅودانې محلي جوړشوي بالښتونه هـم پراتـه وو. دکـوټې کـړکـی خلاصـې وې او ارامه وږمې له مالوچوڅخه جوړې شوې پردې د بېړی د پردوپـه څېرکـوټې تـه دننـه راننه باسلې.

مالــه فهـیم ســره لـــه دې وړانـــدې هـــېڅ نـــه و لیـــدلي. اوکـــه ربښـــتیاوواییم دمسعوداوشمالي ټلوالې سره د ټولوکلونودکارپه بهیـر کـې مـې دده نـوم یـو یـا دوه ځلې اورېدلي و.

فهیم منځینی نرډې پینځه اعشاریه نهه فوټه څواني. دربلی اوکلك جوړښت لري ګـردی مخ اوپوزه خو یې په ښکاره ډول څوځلې له دې پخوا ماتـه شـوې اوبیا بېځایه پیوندشوې وه. چترالي پکـول یـې پـه ټنـډه راټیـټ اودګڼـو ورېځودپاسه یـې ایښی وي.

هغـه د مسـعوداو انجینرعـارف ترټولوخـوښ رنـګ خړخـاکي پټلـون اغوسـت. دهغه مخ به همېشه خریلئ او دپنجشېرمشرانوپه منځ کې غیرعادي ښکارېده.د غرېدلو پرمهال هغه عادت لري چې د سړي سترګوته ځیرځیرګوري او نږدې زیات وخت یې نه (زامبې) پټوي او دخبري کوونکي غبرګون سره په مساوي ډول عمل

ک ـــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــ

په چوکۍ کې لږ رامخکې اوخبروته پوره پاملرنه ورکوي. ـــــــــــــــــــوي.

هغه په انګلیسي ژبه نه پوهېږي. حتی په نېمګړې انګلیسي هم نه پوهېږي. دا هغه څه و چې عارف اوعبدالله دځان دګټې لپاره د فهیم سره د دغه او نورو غونډو پرمهال یې ترې ګټه پورته کوله. ممتاز زموږ د لیدلو لپاره د رسمي ژباړن په توګه کارول کېده.

د ځواونیوپه تېرېدوسره پوه شوم چې کله مسعودپه ۱۹۸۰ کال کې راوګرځېد. فهیم له هغه سره یوځای شو. هغه د مجاهدینو د کوچنۍ ډلې چې په شمال کې یې د تاجکستان له سرحدسره فعالیت کاوه،مشري په غاړه درلودله.

هغه یوکلک اوسرټمبه جنګیالی و. نوپه دې اساس هغه د مسعود احترام ځان ته قایل کړاو ده ته یې ترټولو لویه دنده چې مسعود تر دغه مهاله چاته نه وه سپارلې. ورکړه.

د ۱۹۸۰ کال په وروستیوکې فهیم دجنرالۍ رتبې په درلودلوسره د مسعود تر ټولو لوړ پوړی سیمه ییز قوماندان و. ماته داهم ویلي شوي وو چې که څه هم چې مسعود دفهیم له شخصیت سره په ځانګړي ډول مینه نه درلوده خودده دسیمه ییز مهارت له امله یې پرې پوره باوردرلود. په دې اساس یې هغه ډېرارین باله.

وروسته انجینرعارف اوعبدالله دواړوپه جلا ډول وویل چې دمسعودله مړینې وروسته فهیم وچې دواك واګې یې په لاس کې واخیستې اودشمالي ټلوالې مشرتوب یې یوموټی وساته. دوی دواړووویل چې هغوی اودمسعودخواوشاټول ددغه ناورین له امله په لړزه او وېرېدلي وو اوفهیم دواك واګې په لاس کې واخیستې اوپه ټلواله باندې د واك اچولوپه خاطرېې دمسعوددمړینې اعلان ترهغې چې په شمال کې نورو قوماندانانو ته د ټلوالې دثبات ډاډورکړل شوی نه وي. وځنډاوه.

په ماسپښین یې هغه چورلکه چې مسعوداوخلیلي یې تاجکستان ته لېږدول. له ځان سره کړه او ټلوالې ټولو لوړ پوړو قوماندانانو ته پخپله ورغی. که چېرې فهیم دغه پیاوړې او اړینه پرېکړه نه وای کړې ښایي چې شمالي ټلواله د مسعودله مړینې وروسته په لومړیوڅو ورځوکې له منځه تللې وای.

ماله ډاکټرعبدالله سره پخواهم څوځلې لیدلي و. په لومړي ځل په ۱۹۹۷ کال کې مې د مسعودسره دلیدنې پرمهال په تالقانوکې هغه وپېژاند او بیامې په ۲۰۰۱ کال د اپرېل په میاشت کې په پاریس کې دمسعودپه سیاسي سفر کې چې غوښتل یې په اروپایې ټولنه کې خپل ملاتړ زیات کړي. ورسره ولیدل. ډاکټر یوازینی هغه بل کس و چې د مسعود سره زما د لیدنو پرمهال یې په محاوره

کې فعاله ونډه لرله.

هغه منځینی قد ډنګر بدن او لنډۍ پاکه ږیره لري. هغه هر وخت فیشني لوېدیځ ډوله جامې په تن کوي. خاکي ډوله پتلون اوسپورت ډوله جاکټ اغوندي.

په انګلیسي ژبه پوره مهارت لري اوده په ټولوغونډوکې دمسلکي ژباړن په توګه د دري څخه انګلیسي ته په مودبانه ډول د ژباړن غلطی اصلاح کولې (ممتازبه دژباړن په توګه کاربده. لیکوال) او له هغه سره یې داصلي کلیمې په پیداکولوکي مرسته کوله.

ډاکټرعبدالله یو ارامه غږېدونکی. مودب او د ښه خوی خاوند دی. هغه ته د اصلي پنجشېري په سترګه نه کتل کېدل. ځکه چې یوازې مور یې د پنجشېر وه او دغه حقیقت مسعود د ډاکټر عبدالله سره د ښو اړیکو او په هغه باندې د باور کولو څخه منعه نه کړ.

دکلونوپه تېرېدوسره مسعودهغه دمشاور ډاکټر له چوکۍ څخه د لوړپوړي سیاسي مشاورپه توګه ومانه. زه نه پوهېدم چې فهیم به په غونډه کې له څه شي پیل کوي خوزه ډاډه وم چې عارف به هغه ته زموږدګروپ داهدافواوغوښتنوپه هکله مالومات ورکړي وي. ماله فهیم څخه دمثبت غبرګون اوهرکلي هیله درلوده خوځه موضوعات و. چې مورله عارف سره ذکرکړي و. زمورافغاني کوربه (فهیم. ژباړن) ته له ستونزو ډك برېښېدل اوهغه داچې په پنجشېرکې دامریکې دپوځ په لویه کچه په پوځي یونیفورم کې شتوالی به د افغانانوله نیوکوسره مخ شي. دشمالي ټلوالې له نورجګپوړوقوماندانانوسره زموږدګروپ په خپلواکه توګه تماس درلودل یوبل ممکنه مخالفت و.

ما د لیډنوپرمهال د مناقشو سره کوم مشکل نه درلود. موږهم اړ ووچې دډېروموضوعاتوسره مخالفت وکړو. ځکه مورغوښتل چې دامریکې لویې ګټې خوندي کړواوشمالي ټلوالې غوښتل چې دواك نازکه کړۍ باندې خپل موټی خوندي کړي.

ماغوښتل چې ټول مخالفتونه دنرم روش اودصادقانه معاملې له لارې حل اوپای ته ورسېږي.

نو د دې لپاره ماپلان درلودچې د فهیم سره به د هغو سرېښناکه موضوعاتوذکر کوم چې دئ دهغې د ذکرکولوسره بې میلي ښایي. زموږ د ګروپ دشمالي ټلوالې سره په خپلواك ډول دتماس درلودلودپرېکړې دبدلولوسره مخالف وو.

سي. ائ. اې دشمالي ټلوالې له مهموقوماندانانوسره یوازې تماس درلودل نه بلکې مورغوښتل چې له هغوی سره په هرخومره بیړه اوخوندي ډول وکولای شوخپل ګروپونه ځای پرځای کړو. دنورموضوعاتوپه اړه هم زموږدریځ دغه ډول و.

دسـیپټمبرله یوولسـمې څخـه شـپاړس ورځـې وروسـته دامریکـې دولـت دالقاعـدې سـره دجنـګ کولودپلـان بـاطلول نـه غوښـتل. دشـمالي ټلـوالې لـه قوماندانانوسره دسي. ای‌ئ. اې د خپلواکه تماس نیولوپه اړه به دفهیم مخالفت ته واشـنګټن دکـوچنی جګړې پـه توګـه چـې غـواړي خپلـې محـدوده سیاسـي ګټـې وساتي. وګوري.

دپاکستانیانواو د واشنګټن غړمبهارخولاله پخواپیل و. دوی ویل چـې پـه سـویل کې دپښتنو قومونه هـم مخکـې لـه دې چـې دشـمالي ټلـوالې سره پـه پـوره ډول بوخت شوبایددجګړې ډګرته راوړل شي.

پښـتانه پـه عنعنـوي ډول دافغانسـتان واکمـن تېرشـودي پاکسـتانیانوهم پـه لوړاوښـکاره ډول د تاجکیـانو او نـورو لږکګیـو د واکمنېـدو لـه املـه دبـدبختی خبـر ورکـاوه. مانـه غوښـتل چـې روان اور تـه نـور هـم تېـل ورګـډکړم اوماتـه دغـه مهـم حالت ښه او واضح ښکارېده.

طالبانواو د هغوی عرب ملاتړودجنګي ځواك زیاته برخه په شمال کـې پـه دوه عمده کرښووېشل شوې وه.

یومخکینی دېوال یې دلوېدیځ څخه ختیځ ته دکابل څخه جلال اباد. دپاکسـتان سرحدته نږدې غزېدلی و. بل یې له شمال څخه سویل تـه یـانې دتاجکسـتان څخـه ښکته دکابل په سرله کرښوسره وصل کېده. په نقشـه کـې داسـې ښـکارېده لکـه غټ (L) حرف چـې رسـم شـوی وي اودهېوادشـمالي برخـه یـې دپنجشـېر سـیمې څخه چې د دوی لپاره خنډ و. بېلوله.

دشـمالي ټلـوالې اتـه زره جنګیـالي وو. او د طالبـانو پـر وړانـدې یـې مخـالفې ساکنې کرښـې جـوړې کـړې وې. د دواړو ځواکونـو زور پـه مسـاوي ډول زورور و او یوبل کرښـې یې نشوې ماتولی. اوله یوکال څخه زیات وخت لپاره حالت په سـاکن ډول پاتې و.

د هېوادپـه سـویل کـې طالبـان پـه دې توانېـدلي وو. چـې ټـول پښـتانه قـومي مخـالفین لـه مـاتې سـره مـخ اوپـه مـوثره توګـه یـې بـې وسـلې کـړي (لـه درنـو وسلوڅخه. لیکوال) په سویل کې له ټوټه شوي قبیلـوي پښـتنوڅخه دطالبـانوپر وړاندې دیوه منظم نظامي مقاومت جوړول به د امریکې له ټولو هڅوسره سره په میاشتومیاشتو وخت ونیسي.

دطالبانولومړی کرښـې د امریکـې د هـوایي ځواکونولپـاره بـې لـه شکه غنـي چاپېریـال و. زه پـه دې ډاډه وم چـې د بمونـو د غورځولـو یـو متمرکـز کمپـاین بـه دطالبانواو د عرب ځواکونود روحیې وژونکي وي. طالبانوزیاتـه کامیـابي دسختې جګړې لـه لارې نـه بلکـې د رشـوت ورکولـو او پـه نتېجـه کـې د محاصرې لـه لارې لاسته راوړې وې اوزیاتوجنګي پېښـوېې ډېرې لنډې اوکمي مرګ ژوبلې درلودې.

طالبان دهغه ډول سزا اوبمبارۍ سره تراوسه نه وو مخ شوي چې دامریکې دهوايي ځواکونولخوا ورسره دوی په راتلونکي جګړه کې مخامخ کیدل.

د درنې مرګ ژوبلې او د ورځې او ورځوپه دوام بمبارۍ به طالبان په پای کې له ماتې سره مخ کړي.

عـرب جنګيـالي امکـان لـري تريـوه حـده زيـات پـاتې شـي او خنـډ جـوړ کـړي خوشمالي ټلواله به دهغوی مقاومت مات کړي.

که چېرې موراسماعيل خان چې په هرات کې و او دوستم او عطاچې په سويلي مزارکې وو. مجهز اوسمبال کړو. دوی به په هغه سيموکې طالبان ماتولی شي. د پنجشېرپ ه سميه کې دطالبانوماتې به په ډاډ سره طالبان په ټول شمال کې راوغوځوي.

د امريکـې دهـوايي ځواکونـو پـه مرسـته بـه او دقوماندانانوپـه واسـطه دهغوسېرکونوبندول چې سويل ته تللي وو. په شمال کې دطالبانوزياته برخه تسليمېدو ته اړ او يابه ووژل شي. دکابل اوشمال لوی ښارونه به دشمالي ټلوالې لاسـته ولـوېږي. لـه دې املـه بـه پـه سـويل کـې پښـتانه قـومي مشـران دطالبانوپرواندې دبريد لپاره زړور او د هغوی په وړاندې به خوځښت پيل کړي.

ښايي چې په سويل کې جګړه يوځه وخت وغزېږي ځکه چې پښتانه ټوټې ټوټې (کوم منظم پوځي ځواك يې نه درلود. ژباړن) اودچټکې کاميابۍ ترلاسه کولولپاره په کمزوري سلاح سره سمبال و. خودامريکې د هوايي ځواك په مرسته به بېلانس او تعادل د طالبانوپه ضد واوړي. دکاميابۍ لپاره مهمه لارپه شمال کې وه او دغه کاميابي د فهيم تر امر لاندې دشمالي ټلوالې په ځواکونوپورې تړلې وه.

ماغوښتل چې د دغه مهم حقيقت څخه دتمرکز د بدلولومخنيوی وکړم. مافکر کاوه چې حقيقت واضح و اوپه واشنګټن کې دجګړې پلان کوونکي به زماپه ډول فکرکـوي. زه نـه پوهېـدم چـې پـه واشـنګټن کـې دامريکـې دپـوځ جګپوروچارواکوپه شمال کې دفکرتمرکزکولولپاره مې مخې ته ځومره لويه مبارزه پرته ده.

دجنرال فهيم سره زموږ ليدنې نږدې دوه ساعته دوام وکړاودليدنې زياته برخه هغه موضوعات وو چې مااوريك دانجينرعارف سره تېرماښام څېړلي وو.

ولې موږدرې ته راغلي يو؟ دهمکارۍ لپاره زموږ څه پلان دی؟ د امريکې متحده ايالات به په راتلونکوځواونيوکې څه وکړي؟عارف ته ورته وينامې ده ته هم وکړه او هغه موضوعات مې تشريح کړل چې اړين وو.

فهيم له تشريحاتوڅخه خوښ و. ريک غوښتنه وکړه چې جنرال فهيم دامکان په صورت کې دېرش سرتېري زموږ په واك کې راکړي څو زموږ دګروپ پواسطه د

ژغورنې او پلټلو قطعې په توګه وروزل او وکارول شي.

دامریکې د ځانګړوقطعاتوتر رارسېدلوپورې به زمونږ روسي جوړ چورلکه به یوازېنی چورلکه وي چې دطالبانودکرښوهاخوا ممکنه لوېدلې امریکایي پیلوټې وژغوري اوله سیمې څخه راوباسي.

فهیم د دېرشوسرتېرو په ورکولوهوکړه وکړه اودکسانودروزلو لپاره د هغوی دهرڅومره ژر غونډېدلوپه صورت کې لومړني تدابیر ونیول شول.

ریک دشمالي ټلوالې له لومړی کرښوڅخه دجي پي اېس کوارډیناتوپه اخیستلوسره بیاهم ټینګاروکړ. ځکه موږ د بمبارۍ د پیل کېدو له نېټې څخه ناخبره و. نوپه دې اساس دجي پي اېس کوارډیناتواخیستلوته لومړنۍ اړتیاوه.

فهیم زموږګروپ دکابل لومړۍ کرښوته دسفرلپاره دتیاري نیولوهوکړه وکړه او ویې ویل چې دکابل دلومړۍ کرښې اموجنرال بسم الله خان ته به دنده ورکړي څو د ګروپ سره پخپله کار وکړي. د شمالي ټلوالې له نورو قوماندانانوسره چې له درې څخه بهر و د سي ای اې د اړیکو موضوع راپورته کړه او ومې ویل چې د دوستم او اسماعیل خان سره خو لا له وړاندې په اړیکو کې یو او د څو راتلونکو ورځوپه بهیر کې مې د عبدالرسول سیاف سره پخپله د لیدنې لپاره پلان جوړ کړی دی.

فهیم په دغه نظرباندې نیوکې وکړې. خوپه خپل بحث کې مودب واو ویې ویل چې سي ای اې لپاره له دغوکسانوسره نېغې اړیکو لرلو ته کومه اړتیا نشته. ځکه چې شمالي ټلواله په دغوقوماندانانو باندې بشپړ واک لري. نوله دوی سره یوازېنۍ اړیکې به دامر کړۍ کمزورې او ګډوډې کړي اوپه هغوځایونوکې به ستونزې جوړې کړي چې اوسمهال په کې نشته.

ما له قوماندانانوسره دیوازېنیواړیکولپاره خپل دلایل وړاندې کړل او ومې ویل چې واشنګټن به دغه اړیکوته دوام ورکړي. د فهیم د هوکړې او نه هوکړې په پام کې نه نیولو سره به دوام ورکړي.

ماله ده سره ژمنه وکړه چې زه به له نوموړو قوماندانانوسره له اړیکواوله هغوی سره دمرستې په اړه هغه خبروم.

هغه ته پیغام ورسېد. که څه هم دئ په دې اړیکوخوښ نه و. خوله قوماندانانوسره دنېغواړیکوحقیقت یې ومانه.

دلیدلوپرمهال یوه جالبه برخه دفهیم پروړاندې دډاکټرعبدالله اودعارف غبرګون و. د نظامي موضوعاتوپه وخت کې فهیم غږېده او په ښکاره فهیم مشر و. خو دسیاسي بحث پرمهال به عبدالله اوعارف خپل نظریات تبادله کول. د فهیم د خبرو د ژباړې په پای کې به عبدالله په انګلیسي ژبه یا د فهیم تبصرې پراخولې او یا به یې د فهیم په تبصروکې سمون راوست.

په یوه برخه کې ډاکټرعبدالله یوځه وویل. دغه موضوع په خاطر چې فهیم ورڅخه په بشپړ ډول نه و خبراومونږ هم په هغه ټکي باندې پوهېدلو لپاره له هغه سره مرسته وکړه. کله چې عبدالله هغه تبصرې چې په انګلیسي ژبه یې کړې وې په دري کې دفهیم لپاره وژباړلې. په خوله کې یې وژولې (داسې چې هغه پرې پوره پوه نشي. ژباړن) زما باور خو دا و چې که څه هم عبدالله اوعارف فهیم ته د نظامي موضوعاتو په اړخ کې درناوی درلودخوپه سیاسي ډګرکې د فهیم له مشرۍ سره هیڅ یو هم خوښ نه و.

په همغه لیدنه او وروسته په نوروغونډو کې ما د فهیم پر وړاندې د عارف اوعبدالله په ګډسلوك ګمان وکړچې دوی غواړي فهیم په نظامي برخه کې دبري اخیستلولپاره وکاروي اوبیایې له طالبانوڅخه وروسته په سیاسي مبارزه کې څنډې او له صحنې وباسي.

ماهغه بکس چې یومیلیون ډالرپکې ودوی ته ورکړاوفهیم ته مې وویل چې دغه بودیجه بایددراتلونکي جګړې لپاره دځپل نظامي ځواك دتیارولولپاره وکاروي. ماورته وویل چې عارف ته مې یوه شپه وړاندې 500000 ډالر ورکړل اوهیله لرم چې هغه بودیجه به دعارف دسازمان (څارګرسازمان. ژ) دځواکمن کولو لپاره وکارول شي.

ماتېینګار وکړچې د ځانګړې اړتیا پروخت کې نورې پیسې هم شته. پیسې مې دکوچني مېزپرسرچې زمورمخې ته ایښودل شوی وکېښودې. خوهېڅ یوه دبکس داخیستلولپاره حرکت ونه وکړ. دلیدنې په پای کې کله چې دلاسونوورکولولپاره تـول ولاړشـو. بیاهم هېچابکس اوچـت نکړ. حتـی ترهغـه پـورې چـې موږکوټـه پرېښوده. بیاهم چا اوچت نه کړ. دیوې شېبې لپاره مې فکروکړچې ښایي دوی پیسې ونه غواړي. عارف ممتازته دخبروپه وخت کې دبکس داوچتولولپاره اشاره وکړه. ممتازبکس په یولاس اوچتولوخود ډېر وزن لرلوله امله نږدې وچې ویې غورځوي. ماته یې وکتل اوموسکی شو. ماوویل چې هو یومیلیون ډالر د هغه اندازې څخه چې ته باور لرې. ډېر وزن لري!

زه ډېرستومانه وم اوپه دروازه کې مو الله په اماني سره وکړه. زه د دفتر برخې ته لاړم . څو د لیدنې په اړه تلګراف ولیکم. کله چې زه راغلم کریس د هغه پرمختګونوپه اړه چې ده اوعارف دګډڅارګردفترلپاره لاسته راوړي وخبرکړم. کوټه تیاره شوې وه. نقشې یې هم په دېوالونوپورې نښلولې وې اودټلوالې مخابروي الات هم ځای په ځای شوي و. عارف څلور ځوانوافسرانوته دنده ورکړې وه چې دممتازترامرلانـدې نـوبتي دنـدې ترسـره کـړي اولېرترلـره بایـد دوه کسـان لـه دغوافسرانوڅخه په کوټه کې ویده شي. څوپه کوټه کې ۷/۲۴ (څلورویشت ساعته او په اوونۍ کې اووه ورځې) کسان شتون ولري.

ددغه گروپ لپاره بل گمارل شوی افغان حفیظ نومېده. هغه یوتجربه لرونکی جنگیالی واودندې ته په رښتیاسره وفاداراوهڅاندافسرو.
په هغه ماسپښین حفیظ وچې هرڅه یې سرته ورسول. کریس اوحفیظ سمدستي کارپیل کړاودحفیظ په مرسته یې په هغه ورځ درې یاڅلورڅارگررپوټونه برابرکړل اوکریس په راتلونکیو څوساعتونوکې هغه واشنگټن ته لېږدول. ماله افغانانوڅخه تردوویادرېیوورځوپورې دکارپیل کېدلوهیله نه لرله. نوددې لپاره یواغیزناك پیل و. او ماموریت د عارف د هڅوونکې مرستې نښه وه.
کمپیوټر ته کېناستلو او د فهیم سره د لیدنې پایلې مې د تلگراف په واسطه ورولېږلې. ریك ته مې وویل چې زه به یې ولیکم اودی به یې وروسته د لېږلو وړاندې د بدلون اوبڼې ورکولوپه خاطروگوري. ناروغ احساس مې کاوه سر مې گرځېده. زه پوهېدم چې ډېرکم وخت به وپاېږم. کله چې ماپه رپوټباندې کارکاوه. دگروپ نوروغړود ورځې په پېښوباندې بحث کاوه.
هوایي کارکوونکي دچورلکې درنگولوله امله خوښ وو. اودمازیگر مهال یې دنده سرته رسولې وه. بك دکلك کاغذ څخه دچورلکې دراجستړنمبرپه خاطردنمبروشکلونوجوړول څو د چورلکې په لکۍ نمبرولیکي. مافکروکړچې دغه کاربې اغېزې دی. ځکه دغه نمبر ډېر اضافه جعلي ښکاري خودومره ناروغ وم چې تبصره مې هم نشوای کړلای. ما د رپوټ لیکل پای ته ورسول خوله پایلو یې هومره خوښ نه وم او په هغه شپه کې دومره ورپسې ونه گرځېدلم.
ریك راغی چې تلگراف بشپړکړي. پوهېدم چې د اسهال بله څپه راروانه ده سیپرو(یوډول دارو) بل ډوز(خوراك) مې له ډاکټرڅخه راواخیست او د خپلې کوټې په لورې وخوځېدم.
ټوله ورځ به ویده او بیاویښ شوم. خوبیا وروسته په همهغه شپه بیا دفتر ته دقرارگاه سره داړیکې د څارلو لپاره راغلم. دلسنیمو ساعتونودوخت دتوپیرله امله واشنگټن په هغه شېبوکې کارپیل کاوه اوموږکارپای ته رساوه. نیمه شپه خوب ته لاړم. ستان اوکریس مې دڅارگرورپوټونودپای ته رسولولپاره په دفترکې په داسې حال کې پرېښودل چې پایې په ډېرکوښښ سره سامان الات فعال ساتل اوپریکړې بوټلان مې په همغه شپه بیا هم وکارول.

## پنځلسم څپرکی

که څه هم زموږژوند په پنجشېرکې په عمومي ډول دومره ارام نه و. خوهغه

لوی میلمستون چې په استنه کې دچورلکې دکېناستولو ډګر ته مخامخ و. ډېر ښکلی و حتی د لوېدیځ والو پام یې هم ځان ته اړولی و. دغه مېلمستون د یوڅولوېدیځوالوژورنالستانو لخوا چې درې ته راتلل. کارول کېده..

مسعود د ښه شهرت لرلوپه زور پوهېده او د دې لپاره شمالي ټلوالې ګڼ شمېر ژورنالستانو د۱۹۸۰ کال له نیمایي څخه راپه دېخوا کوربه کړي وو.

دغه مېلمستون دڅوهغوودانیوڅخه وچې شمالي ټلوالې به ژورنالستان او درې ته بهرني چارواکي د ملاقات پروخت پکې مېلمه کول. دامنیت له نظره موږ بایدپه خوندي ځای کې وای نوله دې امله موږ د درې په پورتنی شمالي خواکې پراته و.

د بارك کوچنی کلی د لوېدیځ غرونواودسیندترمنځ کوچنی ټرانګې ته غېږورکوله. د درې خوله د کلي په سویل کې سره تنګېدله. نوپه دې اساس که هرچاغوښتل چې درې ته دشمال لخوا ننوزي اړ وو چې دپاټك له تلاشی څخه وروسته راننوځي.

دبارك په سیمه کې دپنجشېرسیندنږدې درې سوه متروپه واټن پراخېږي. یخ دی. مناسب ژوروالی لري اوتېز بهېږي. چې د کلي ختیځې برخې لپاره یو طبیعي ساتندوی دی. سربېره پردې د درې ختیځ لورې او د کلي مخامخ غرونه لغړ او ډبرین دي چې په اسانه خوځښت په کې کشف کېږي. شمال ته چې د سیندختیځ لوری و د کلي ها خوا د ټلوالې هغه غولی و چې د طالبانونیول شوي ملایان به یې د زندانیانو په توګه په کې ساتل. په ښکاره توګه دغه جګپوړي ملایان و چې شمالي ټلوالې لپاره یې ارزښت درلود. ګڼ امنیتي تدابېرنیول شوي و اودکوټې پرسرېې -ZSU۲۳ ډوله دالوتکې ضدتوپ موجودوچې کولای یې شول د درې لمن هم له دغه ځایه تر اور لاندې ونیسي.

زموږغولی دغونډۍ په سر و چې شپږ سوه فوټه جګوالی یې درلود او ورپسې د غونډیو دوهم او دریم کتار هم و. اودکلي په شمالي وروستیوبرخوکې وچې شاوخوا یې ډېر کورونه چې څو ډوله جوړښتونه یې درلودل،شتون درلود.جان محمدوویل چې شورویانودخپل یرغل پر مهال اته ځله کوښښ وکړچې دره ونیسي اومسعود او د هغه ټلواله ماته کړي. بارك کلی د دغه یوناځاپي ننوتلونښان و. که څه هم چې شورویانوشپږځله دغه کلی ونیوه. خوهېڅ وار د دغه کلي څخه شمال لورې ته پرمختګ و نه کړ. هرځل یې له دغه ځایه ددرنې مرګ ژوبلې سره ماتې خوړه.

د درې اود کلي شا او خوا اوس هم دروسي زغره والو ټانکونو د پاټې شونو او زنګ وهلیو په ټوټو لړلې ده. د جنګ د بېرحمی یو بربنډ او بې شرمه ثبوت و. جان محمدوویل چې په دره کې ټولې ودانی یوځل ړنګې شوې دي اویوځل

روسانودرې میاشتې دغه کلی اود درې خوا اوشا غونډې د ورځې څلور او پینځه ساعته په پرلپسې ډول بمبار او په توپ وویشتله! جان محمد داړ راکړ چې په نږدې خوا اوشا کې کوم ناچاودي توکي نشته. هغه شمېرماشومانوچې زموږ د کور خوا او شا کې یې لوبې کولې. دغه خبرې تصدیق کولې. هغه وویل چې دتېرو درېیوکلونوراپه دېخواکومه پېښه (دماین پېښې. ژ) دغونډې په ښکته برخه کې نه ده شوې. خودغونډې پورتنۍ برخې ته موږبې له کومې لاړښوونې څخه نه تللو.

دافغان کلتورله مخې زموږکوربه ټینګاروکړچې ټول خواړه به دوی تیاروي. دغه یونیمګړې پخلنځی وچې خام اوپه لاس جوړشوی کانګریټ په کې کارول شوی اودلرګي لرګیو بخارۍ اوتنورېې لرلو. په پورتنۍ برخه کې یې ګړدی سوری وچې په لمبوسره پوښلی شو. خواړه داورلمبواودودپه منځ کې پخېدل. لوګی دسوریوڅخه تېرېده اودکوټې په چت پورې ددېبل پوښ په ډول سرېښېده. کله کله به دود. دومره ګڼ وچې داشپزاودهغه دمرستیالانویوازې پښې ترې لیدل کېدلې. چت به زیات وخت په سترو لګنو(ستل) کې دلوښودمینځلوله امله لوندو. دلوګي دزیات والي له امله به زیات وخت خواړه دمځکې په مخ تیارېدل. له پخلنځي څخه د څو ځله لیدنو وروسته موپرېکړه وکړه چې په پخلنځي کې دحالاتوله خبرېدلوڅخه نه خبرېدل بهتردي. هغه خواړه چې موږته یې تیارول د کوربه په ټول توان سره تیارېدل. موږدستمبرپه وروستیوکې هلته ورسېدلو. نوپه دې اساس په دره کې تازه پیاز. سره باټینګړ. کوچني شنه مرچ. ګازرې اوملي پیداکېدلې.

وریجې دخوړلومهمه برخه وه. موږبایدپه احتیاط سره خوړلي وای. ځکه زیات وخت له اشپزڅخه یوه یا دوه شګې دپاکولوپرمهال په کې پاتې کېدلې. له کلي څخه هرسهارتازه ډوډۍ راوړل کېده. ډوډۍ به هواره دتیږې په تنورپخېدله. ترماښام پورې به دغې ډوډۍ خوندبایله. زماانتخاب هرسهارله دغې وچې اوګرمې خوندورې ډوډۍ سره دمومېلې کوچو او مربا خوړل و. هګۍ یې هرسهارجبري په غوړیوکې پخولې. دغه ډول غوړي په ټوله اسیاکې مروج دي. دابه دګیلن په اندازه په اوسپنیزوقطعیوکې راتلل چې نږدې په ټولوهغوخوروکې چې موږته تیارېدل کارول کېدل.غوښه به دغرمې یاشپې لخواتیارېدله. خوهروخت په پټ اومختلف ډول پخېدله. هېڅ وخت موسره کړایې یادکباب په ډول غوښه پخه ونه لېدله. هروخت به دغوښې ټوټې چې بندونه. کوچني هډوکي اوشحم یې درلوده راوړل کېده. دغه غوښه دکورنۍ ساتل شوي خوار او کمزورو چرګانو چې د کور په شا او خوا کې په ازاده هاخوا دېخوا منډې وهلې لاسته راتله. داسې ښکارېده چې دغه چرګانو زموږ د تشنابونو لاندې ویالوڅخه

خوراك كاوه. مور به چې كله يوه شوو چې همدغه چرګان يې حلال او تيار کړي دي،نو له خوړولو څخه به مو ډډه کوله.
دغرمې اودشپې دډوډۍ لپاره به ښوروا هم تيارېدله. زيات وخت به زمينه وه. په لوښي کې به يوڅودوله سبزي ښكارېده. زماپه ګمان چې دپخلنځي کسانودسبزي زياته برخه دځانونولپاره ځكه ساتله چې دغوښې ښې ټوټې چې مورهېڅ ونه ليدلې له هغوسره يې وخوري. خوددې ادعالپاره موږكوم ثبوت نه لرلو!زماځانګړې غذا دغرمې اوبېګاه لخوالندشوی رومي باتينګړ. پياز. ښورواوخوګاشوګې وريژې وې.
جان محمدله تاجكستان څخه داورې اوترخومرچوڅخه جوړه شوې چكني راوړه چې دخوړوخونديې ډېرښه كاوه. له ډوډۍ وروسته خوراك يوه منه وه اوكه زه به بيا هم وږی وم نودممپلي مربا به مې د محلي وچې ډوډۍ سره خوړله. همدغه پرهېزاوزمادخپټې اوكولمودوامدارتكليف له امله مې په ځلوېښتو ورځو شل پاونډه وزن له لاسه وركړ. دیادونې وړده چې هغه څوك چې غواړي ډنګر بدن ولري هغوی ته ددغه ډول پرهېزمشوره وركوم!
ځان مينځل هم يوه بله زړورتياوه!دحمام كولوسيمه لس په لسو فوټوپه اندازه وه. چې ټول ښوينده كانګرېټ و. دمځكې څخه يودانه نلكه. چې جګوالی يې ۱۸ انچه و. دلومړنيوڅو ورځوپه اوږدوكې به دپخلنځي ځوان افغان كار كوونكو په موقتي جوړه شوې بخارۍ باندې اوبه ګرمې اوپه لګن كې به يې دګروپ هرغړي ته په جلاډول راوړلې. اوبه هروخت خړې وې. اودلوښي په تل كې به يې خړه راټوله وه. يوه پلاستيكي پياله به موپه اوبوكې دننه كړه څوځان پرې لوندكړو. بيابه موصابون وهلو. اوپاتې اوبه موپرځان تېرولې. دڅوروځوله تېرېدو وروسته مو په محلي ماركېټ كې يوه برقي حلقه (منقل) واخيسته. دغه منقل په لسودقيقوكې كولی شول چې يولګن اوبه معتدلې ګرمې كړي. كله به چې دغه بخارې كاورل كېدله. په دهلېزكې ګروپونه به يوناڅاپه تت شول. زه به هروخت دبرېښنا له ټكان څخه په وېره كې وم. خوپه حيرانيتاسره ترې بچ شوو. دڅواوونيوپه تېرېدوسره هوانوره هم سړه شوه اوكانګرېټ حمام ته تلل نور هم ستونزمن شول اوموربايدپه نوبت كې ناست وای. څوحمام موكړی وای. جان محمدپه كلي كې زموږدجامودمينځلوترتيبات نيولي وو. زموږداوسېدلوپه محدودځای كې دمحدودواوبو له لرلوسره د جامو مينځل ناشونی و.
جامې به په تنكي ګهيځ كې راوړل شوې او د ورځې په وروستی برخه كې بيا وړل كېدلې. جامې به لمدې وې. خويوڅه به يې سره ټولې اونښتځلې وې. جامې يې حتماً په سيندكې مينځلې. ځكه زموږسپين بنيانونه او نېكرونه دوخت په تېرېدوسره خړكېدل.

په لومړيو دوه ورځو کې موخواړه په هغه لويه کوټه کې چې ددفترلپاره موخوښه کړې وه وخوړل. له دې امله به دفتر ډېرناارامه اوککړو. دخوړو په وخت کې اړ وچې کاربند اوکوچني مېز. کمپيوټرونه او نورسامان له مخې لېږي کړو. زموږکوربه به په بيړه سره دسترخوان اوارکړاوکاسې به يې پرسرکېښودې. بيابه ترې تاوکېناستواوپه قاشوغوسره به موخواړه په ډېرمهارت سره را اچول څوککړتيا ونه کړو.

ددويمې ورځې په پای کې مې له جان محمدڅخه وغوښتل هغه لويه کوټه چې ماپکې شپه تېروله دخوراك اودليدنوکتنولپاره بېله کړي. په راتلونکي سهارممتازکوټه وزګاره کړه. زماسامان يې نږدې کوټې ته يووړ. هغه دخارګره دفترکوټې ته لاړ او اوس مهال هلته ويده کېده. له مالوچوڅخه نوی جوړ شوی لمڅی چې په هېواد کې هر چېرې موجود وي. د قالينې په توګه کارېده.

کړکيوته يې درخت له ټوټوڅخه پردې جوړې کړې وې اوالماری يې هم پاکې کړې وې.

يولوی مېزچې په يوځل يې دولس کسان ځايولی شول د يوڅو چوکيوسره د دسترخوان او دغونډې دمېزپه توګه کارول کېده. د کوټې بله برخه چې يوڅوپايې چوکی چې له سامان ډکې په کې وې له څومېزونوسره زموږاودعارف دليدنواوکتنو ځای و.

خواړه هم په پرتليزډول ارام اوکارموهم دورځې درې ځله له مداخلې خوندې ترسره کاوه.

موږپوهېدوچې دخښناك لپاره دپاکواوبوپيداکول ګران و. نوپه دې توګه موله ځان سره داوبوپاکوونکي توکي لرل او د ځانګړې اړتيا لپاره موساتل.جان محمدهم هغه دېرش کرتنه اوبه چې تېرځل د دتروريزم پروړاندې دمبارزې مرکز (CTC). له غړوپاتې وې. چې دملاقات لپاره راغلي و،راوړل شوې وې. دهغه اوبواندازه چې موږله ځانه سره راوړې وې، دوه برابره کړه.

ډاکټرووېل چې که چېرې دبوتلوسرونه سرغوچ وي. اوبورنګ نورمال وي نوکولای شودخښناك لپاره ترې ګټه واخلو. که څه هم چې دوخت په تېرېدوسره موږدحالاتوسره برابرېدلو. يوشی چې ډېرېې ځورولو. هغه دتشناب اسانتيا وه! کله چې درې ته راورسېدو. لس کسان واودڅواونيوپه تېرېدوسره دوه نورافسران هم رازيات شول. په دې ماناچې دولس نارينه اوبالغوکسانود يوه کوچني تشناب څخه ګټه اخيستله. تشناب خپله اته په لسو فوټوڅخه زيات پراخوالی نه درلود اودکوټې په ښي خواکې يوه زنګ وهلې داوبوبرقي بخاري ايښودل شوې وه. دلاسومينځلوځا ی چې يو دانه دسرواوبونل اويوه ماته ائينه يې لرله. و.

د اسانتياو د کارولو لپاره بايد په تشناب درېدلی. پرتوګ ښکته او په

منګولوکې دې کلك نيولی وای. څو د دوامداره ککړ چېنو لوښو پورې دې له ليګدلوڅخه خوندي وای. بيابه ديښوپه ګوتوکېناستې اوشاته به دې زورکاوه. ځان به دې په دېوال پورې نښلاوه. له کېناستو وروسته به دې د لنګيو ترمنځ کتل او هدف منځ به دې په نښه کاوه. چې د چټلی د شيندلو مخنيوای شوی وی.

دغه ډېر بې ډوله او له ستونزو ډك او نا ارامه ځای و. په ځانګړي ډول په هغه وخت کې چې اسهال به دې کولمې سره تاوولې. اصلي ستونزه د تشناب سوری و. د غولي په مخ نيږدې څلور اينچه قطر درلود خو دوه فوټه لاندې د سوري قطر سره تنګېده. که چېرې دوه يا دريو کسانو له دغه سهولت څخه ګټه اخيستلای. ښايي چې د بدرفت کوچنی پايپ ښايي چې مشکل نه وای پېښ کړای. خو تشناب د لسو کسانو بيا د دولسو کسانو. ټول نارينه او بالغو کسانو چې د ګروپ په منځ کې د کولمو تکليف هم پسې په زياتېدلو و. زور نه درلود. د اسانتيا کار و. هغه څه وو چې سری ترې وېرېده. په ځانګړي ډول د سهار په مهال. د پايپ بندېدل عام و او د ګروپ يو يا دوه غړي خو د خرسانو غوندې جوړښت درلود. د وخت په تېرېدلو سره پوه شوم چې سهارنی تګ مې بايد له ټولو وړاندې وي. مور د ډاکټر د کلورينو مخلوط د کړکې په ژی باندې د مکروبو او د بوی د کنټرولو لپاره کېښودل. ما د لاسونو مينځلو پر سهولت باندې د مکروبو ضد صابون ايښی و او د هرځل ملاقات وروسته مې د جراح په ډول لاسونه پرې موښل. که چېرې د کلا څخه بهر د مورچل په ډول د نرې اورده کلا جوړولی شوای. ما به کړې وای خو د کلي ماشومانو د کلا څخه د بهر ليدلو پر مهال نه راپرېښود.

دتشناب سهولت دګروپ په منځ کې دټوکولامل ګرځېده. ځکه له دې چې ددغه حالاتوڅخه وژاړې. خندابهتره وه. په ځانګړي ډول دپېښوپه وخت کې کله به چې دپېښې مسول وپېژندل شو نوګروپ به ټولوپرې ټوکې کولې. د کولمو پر خوځښت مو عادت وګرځېد. د اکمالاتو د راغوښتلو يوه تلګراف ته د ګروپ کوم يوه د قرارګاه څخه د کوچنيو چې چليپا پرې رسم وي. غوښتنه وکړله . څو وکولی شو په بهتر ډول نښه برابره کړو. (اينې تر پايه راونه رسېدلې.) د اکټوبر په لومړيو کې په تشناب باندې د وړو رېږوونکو مچانو لښکر دغه بدمرغي نوره هم پسې ناوړه کړله. ستان په کلي کې پخوانی ډوله د مچانو د رانيولو لپاره سرېښناکه ريتاړه پيدا کړله او نوموړو ريتاړو د مچانو نفوس يو څه کنټرول کړ.

زمور د سفر په بهير کې يو بل مشکل و چې مور يې ځورولو. پاپي دمعدې دګازله زياتوالي څخه سرټکاوه. دغه سری به سهارله خوب د ويښېدلو سره سم د تيزونو اچول پيل کړل هډوشپې ويده کېدلوپورې. موربه ټولوپرې ټوکې کولې. حتی هغه ته به په قهرشوو. خوهغه به يوازې مټونه وښورول او وبه يې ويل چې

((زه څه وکړم مشکل لرم)) یو دقیقه وروسته به یې بیا دماغ بې سده کونکې گاز خلاص کړ. په دغه درد برسېره پاپي ترټولو تکړه ساحوي ارتباطي افسروا ودعمرتردغه وخت پورې یې دتکړه افسرشهرت ساتلی و. د(سي. ائ. اې) ارتباتي سیستم له هغه ټلیفون اوانځور او مالومات لېږدوونکی کوچنی ترانزمېټر څخه چې تاسویې په فلمونوکې گوری. ډېرلوی او کارول یې ډېر ستونزمن دي.

پاپي دسفر دبکس په اندازه رسیور(لېږدونکی) ماشین درلودچې دمحرمواوخوندي مالوماتواو غږ لپاره یې د کړکې په ژی باندې اینبی او د دوو لپ ټاپ کمپیوټرونوپواسطه یې کنټرولاوه. موږ به دخپلوکمپیوټرونوپواسطه برېښنالیکونه لیکل اوبیابه موږ په فلاپي (یوډول کمپیوټري کسټ چې دمالوماتودلېږدولولپاره کارول کېږي. ژ) ډیسک کې اچول. پاپي به په وارسره دټولونه کېستې ټولولې اوبیایې له یوې بشپړې پروسې وروسته قرارگاه ته لېږدولې. دغه مالوماتوله لېږدولو وروسته به یې سیستم ته بدلون ورکاوه. څو مالومات له واشنگټن څخه لاسته رواړي. زموږ دگروپ اړوند ټول پیغامونه چې له هرې منبع څخه به و. قرارگا به زموږ د اړیکو تر نیولو پورې ځنډول.

نږدې دسلوپه شمېر برېښنالیکونه به موله واشنگټن څخه اودېرش یاڅلوېښت کاري اوڅارگر رپوټونه په یوه ورځ کې لېږلو اوحاصلولو له امله دپاپي لپاره ډېر ستونزمن کار و. په دې سربېره ده د جنرېټرونومسولیت هم پرغاړه اخیستی و. دجنرېټرونو دپاکوالي. په ورځ کې دیویا دوه ځلې دتېلواوفلترونوبدلون په شمول. همدا راز د کمپیوټرونو جوړول. په دوامداره توگه توکي د دوړو څخه پاکولو له امله دپاپي لپاره هره ورځ شل ساعته کار و.ماله ځانه سره له پخواپرېکړه کړې وه چې دده دمعدې دگازمشکل خودده دزیاتې تجربې اوډالی په بدل کې ډېرکم قیمت وچې موږیې اداکوو.

## شپاړسم څپرکی

په دره کې زموږ ددریمې ورځې د غرمې څخه لږ وړاندې. بک د هوایي ډگر له سېمې راغی او خبر یې راکړ چې د چورلکې لکی ته یې د راجسټر نمبر ورلیکلی دی. هغه خوښ و او له ما یې وغوښتل چې غرمې وروسته د چورلکې سره د انځور د اخیستلو په موخه ټول گروپ هوایي ډگر ته ویسو. د ریک په باور دا ښه نظر و. موږ د غرمې لږ وروسته هوایي ډگرته زموږ د افغان پیلوټ نصیر سره یو ځای د انځور د اخیستلو په موخه ورغلو.

هو. ښه نظر و او په راتلونکي کې به انځور ارزښتمن ثابت شي. خو دا ټول یو څه افراط ښکارېده. د راجسټر نمبر مې تر سترگو شو. په شنه شالید باندې په

غټو تور رنګه حروفو باندې (د سپټمبر د یوولسمې نېټې وروسته لومړنۍ ګروپ. ژ) ۹-۱۱-۰۱ لیکل شوي و. مخ مې راواړه. ګروپ ته مې وروکتل. د ټولو خوښ شوی و او موسکې و.

موږ د چورلکې د لکۍ لاندې په دوه لنډیو کتارونو کې راغونډ او په داسې وخت کې چې مو نصیر څلور یا پینځه انځورونه واخیستل. موسکا کوله.

دا دی موږ دلته یو. د سي ای اې افسران و او په افغانستان کې د ۱۱/۹ څخه یوازې اوولس ورځې وروسته لومړني امریکېیان و. زموږ په مخونو موسکا دا حقیقت چې موږ ټول په سیمه کې د شتون له امله خوښ و،ثابتوله.

د هغې ورځې په ماسپښین زموږ څارګره ډله هم ښه پرمخ روانه وه. په دې اړوند د کرېس او سټان د هڅو او د حافظ او ممتاز غوره همکاري د منښې وړ دي. وروستی یادو شویو کسانو (حافظ او ممتاز. ژ) د شمالي ټلوالې د ځواکونو په واسطه د ډېرو راغونډ شویو مالوماتو له جملې څخه د ښو او مهمو مالوماتو په را جلا کولو کې د یادونې وړ توان درلود. د لومړیو کرښو په اوږدو د هغو نقطو څخه چې د شمالي ټلوالې لخوا ساتل کېدې. د طالبانو د مخابرو خبرې راټولیدلې. بیا یې په تفصیل سره لیکلې او بیا حجرې(استخبیاراتي ډلې ته. ژ) ته لیږل کېدلې. نوموړو ټکو د طالبانو د ځواکونود جګړې د ډګر خوځښت څارنه او مشاهده هم رالیږله.

موږ هره ورځ د انساني منابعو څخه چې د طالبانو د موقیعتونو څخه تېرېدل. هم رپوټونه تر لاسه کول. دغه منابع خویا د طالبانو سرتېري و چې د شمالي ټلوالې لخوا خپل شوي و او یا خو هغه ملکې خلک و چې د شمالي ټلوالې د کرښو د ننه اوسېدل او د طالبانو د کرښوها خوا یې ملګري او کورنۍ غړي درلودل او د مالوماتو د راغونډولو لپاره یې د دښمن د کرښو څخه د تېرېدلو خطر پر ځان مانه.

کریس د حافظ او د شمالي ټلوالې د ځوان عمره افسرانو سره د کار د بهتر کېفیت او بشپړوالي په خاطر له نږدې کار کاوه. د یوې میاشتې په موده کې د سپټمبرد ۲۷ مې څخه د اکتوبر ۲۶ مې پورې زموږ ګروپ د څلور سوو څخه زیات څارګر رپوټونه برابر کړل او زیات یې د ګډې استخباراتي ډلې له برکته ترلاسه شول.

د نوموړو استخباراتي رپوټونو له برکته د امریکې پوځ د القاعده او د طالبانو موقیعتونه په ښه درستوالي سره ویشتلای او د بمباری په سیمه کې یې زیات مالي زیان را کمولی شو. دا ټول یوه ښه لاسته راوړنه وه په ځانګړي ډول د هغو شرایطو لاندې چې موږ کار کاوه او د هغه دماغي فشار اود زیات خطر سره سره چې موږ ته هره ورځ متوجه وو.کریس. سټان او د هغوی افغان همکاران باید په

هغه څه باندې چې لاس ته یې راوړي و. زیات ویاړ کاوه.

د مازدیگر پر مهال مو د انجینر عارف سره لنډه لیدنه وکړه اوهغه د کابل د لومړۍ کرښې څخه د جی. پی. اس د سروې د پیلولو لپاره د راتلونکي ورځ د ترتیباتو تصدیق وکړ. هغه وویل چې جنرال فهیم د ګروپ په ډېر کوچنیوالي باندې ټینګار وکړ . څو د امنیتي پېښو مخنیوی وشي. د شمالي ټلوالې لومړۍ کرښې د طالبانو کرښو ته دومره نږدې وې چې د دواړو خواو څخه خوځښت په سترګو لیدل کېده او دا یو جدي ستونزه وه.

وروسته خبر شو چې د ایران د انقلابې قول اردو د ګارد IRGC دوه څارونکي د شمالي ټلوالې سره په لومړۍ کرښه باندې په دنده ګومارل شوي و او فهیم له دې امله اندېښمن و چې باید ایرانیان د امریکنیانو له شتون څخه خبر نه شي. لېږ تر لږه د ماموریت په دغه پړاو کې خو باید خبر نه شي!

د جی، پی، اس د سروې لپاره سټان ښکاره انتخاب و. هغه د جی. پی. اس ماهر و او په تاشکند کې د انتظار پرمهال یې ټول ګروپ د جی. پی. اس د کارولو لپاره روزلی و. مېوري هم د سټان سره د کار کولو لپاره وټاکل شو هغه د سیل (یو دول ځانګړی ځواک. ژباړن) د ځواک سره په کلونو ساحوي تجربه درلوده. ریک د ګروپ رهبري په غاړه واخیسته. هغه هم په افریکا او بوزنیا کې د جی. پی. اس د کارولو ښه تجربه لرله. عارف وویل چې په دغه مهمه هڅه کې به جنرال بسم الله خان د ریک له ګروپ سره شخصا کار وکړي. ممتاز به د ګروپ سره یو ځای وي . څو ژباړه ترسره کړي.کریس د استاد سیاف سره مستقم مخابروي تماس نیولی واو هغه زموږ سره لیدنې ته لېواله و. عارف د دغه خبرپه اورېدلو خوښ نه و خو ویې ویل چې هغه به حافظ او یو موټر چلوونکی زموږ د بدرګې لپاره په دنده وګوماري.  سیاف په یوه کلي کې چې ګل بهار(د پسرلي ګل) نومېده او د پنجشېر د درې څخه لږ  وتلی او د شمالي په اوارو سیمو کې موقیعت لري. اوسېده.

دا هغه سړک و چې د جی. پی. اس ګروپ به هم پرې سفر کاوه څو هغوی د پنجشېر له درې څخه بهرد شمالي اوارو سیمو ته په رسېدلو سره ښی غاړې جبل سراج ته ور ګرځېدل. دا هغه کلیواله سیمه وه چېرې چې د جنرال بسم الله خان قرارګا وه وه. راتلونکې ورځ د جی. پی. اس درې کسیزه ګروپ د سپېدې چاود سره سم له کلا څخه روان شول. زما د شتون پرته ګروپ دغه ماموریت د تګ اجازه ورکول راته اسان نه و. خو زموږ ګروپ هم کوچنی و او د ګروپ هر غړي جلا ځواکمنتیا لرله.  په ګروپ کې زه او کریس د خپلو افغاني کوربه ګانو سره د سیاسي موضوعاتو د بحث لپاره بهترین کسان و او زه او کریس د سیاف سره د لیدنې لپاره له دوی څخه یو ساعت وروسته له کلا ووتلو.

د درې د ښکتنۍ برخې ته د سفر لپاره د تیارۍ نیولو پر مهال پوه شوم چې مونږ د سفر پر مهال د مسعود د قبر څخه هم تېرېږو. ما له حافظ وغوښتل چې د مسعود له قبر سره ودرېږو . څو مونږ قوماندان ته خپل احترامات وړاندې کړو.

زما دغه غوښتنې حافظ یو څه حیران کړ. هغه ما ته د څو شېبو لپاره په غور سره راوکتل . څو زما جدیت مالوم کړي. بیا موسکې شو او سر یې د هوکړې په ډول وښوراوه. په داسې حال کې چې موټروان د چمتووالي اشاره وکړه. حافظ وویل چې هغه د قوماندان یو کسټ لري چې دی ورته زیات غوږ نیسي.

مونږ د جمپونو او له دوړو ډک سړک ته ورودانګل او د مسعود غږ په موټر کې انګازې پیل کړې. هغه په روڼ او درانه غږ په دري ژبه غږیده. داسې یو لړزونکې اهنګ سره چې اورېدونکې یې له ځان سره ساته. حافظ شخ ناست و(دومره شخ چې دجمپونو مقاومت به یې کولای شو) زه پوهېدم چې هغه په پخواني وخت او د مسعود سره یې د ځان انځور کاوه.

زمونږ خت پت شوي جیپ له دې وړاندې ښې ورخې لیدلې وې. او اوس مهال په سختي کې و. کله چې مونږ د لومړي ځل لپاره افغانستان ته راغلو مونږ فکر کاوه چې د چورلکې د ډګرڅخه لنډ سفر له سختیو ډک و خو په هغه سهار د درې ښکتنۍ برخې ته پینځه دېرش میله اوږد او ظالم سفر په پرتله هیڅ هم نه و.

سړک دقیقا په ټولو برخو د یوه نري لارې څخه زیات پراخوالی نه لري. د پخواني پاخه سړک حتی پاتې شونې هم نشته. اصلي سړک د زغره والو ګاډو په واسطه مات. د بمونو. توپونو او درنو مځکني ماینونو په واسطه الوتی. د مځکې د ښوئېدلو له امله ړنګ او د شل کلنې بدبختۍ له امله ژوندی ورک شوی دی. ستر غارونه زیات ځایونو کې به کندې په منظم ډول په سړک کې شتون درلود. سړک دومره وچ و چې پر مخ یې پرتې دوړې نیږدې یواینچه ډبلې وې او د موټر خوا او شا به چورلېدې او تاوېدلې او څنګ ته د منظرې لیدل به یې بند او که زمونږ په تعقیب کوم راروان وي. په ډاډ سره یې هغه ړوند کاوه.

سړک د پنجشېر د سیند په لوېدیځه غاړه تېرېده او د غونډیو هغه بیخ کې چې د درې لویدیځ دېوال یې جوړاوه. تېر شوی و. په ځینو ځایونو کې ارتفاع د سیند برابره خو بیا په نورو ځایونو کې تر شپږ سوه فوټو پورې رسیږي. د سړک کتنه او څارنه نه کېږي پرته له څو زړو سپین ږیرواو د هغوی ځوان لمسیو څخه چې دسړک ترغاړې په سیوریو کې به د یوې مشخصې کندې سره جوخت ولاړ و.

کله به چې موټر نږدې شو نو دوی به یوه یا دوه بېلچې خاورې سوري ته وروا چولې بیا به یې بیلچه په لاس کې ونیوله. سر به یې په دې هیله چې موټروان به موټر دومره کرار کړي چې پکې شته مسافرین به ددوی د کار په

مقابل کې ورواچوي. یو څه ټيټ کړ.

دسفر پر مهال مو سرونه د چت او یا د کړکیو سره لګېدل او ګونډې به مو له ډاش بورډ او یا د وړاندیني سیټونو له شا سره لګېدلې. ځینې کندې خو به دومره لویې وې چې د لاستي هر څومره ټینګ نیولو سره سره به ټیټکی شخه او یا له دې ناوړه تر خو د ملا تیر شخ کېده.

له دې زیاته وارخطایي خو په هغه وخت کې چې مقابل لورې موټر سره به د سړک په نرۍ او د سیند څخه په هسکه غاړه مخامخ شوو. وه. داسې ښکارېدله چې نا لیکل شوی شفر چې کوم موټر باید د غونډۍ لورې دېوال ته ودرېږي او مخامخ موټر ته د تېرېدلو ځای ورکړي. شتون درلود. زه په هغه وخت کې چې زمونږ موټر د غره ډډې ته درېدلای نه څپه کېدلم. خو زیات وخت به زمونږ موټروان د سړک بهرنۍ غاړې ته په داسې حال کې چې ټایرونه به یې په سلګونه فوټه هسک پاڼ څخه په یوه اینچه واټن کې و دریده.

ګرېنډ کانین (ژوره ترانګه چې د متحده ایالاتو په اریزونه ایالت کې موقیعت لري. ژ) ته په لومړي ځل په چکر باندې تلل ددغه خطرناکه سړک باندې د سفر سره پرتله کېدلی شي. موږ دغه دوه ساعته سفر چې ما ښه باور درلود چې د طالب دښمن په ډزو کې نه بلکې په ترافیکې حادثه کې به یا ټپي او یا خو وژل کېږي. پای ته ورسوه.

نږدې شل میله د درې په ښکتنی برخه کې د دواړو لوریو غونډۍ سره غزیږي او د سیند اوارې سیمې په یوه لوی V شکل باندې پراخېږي.

د سیند د کږلیچې په غېږ کې یو په زړه پورې کلی چې زمونږ په وړاندې سیمه یې په شنو ونو پټوله. و. د درې په لنډو د غونډیو یوه لړۍ د ښي لورې څخه ګڅ لورې ته تلله او د کلي حدود یې ټاکل. خو زمونږ سړک د غونډیو د مخکنۍ څنډې ته چې لومړۍ ښي او بیا ګڅ لورې ته تاوېده. وه.

د قوماندان کسټ څو میله وړاندې پای ته رسېدلی و او حافظ تر دې مهاله چوپ ناست و. هغه راوګرځېد او ویې ویل: وړاندې د غونډۍ په سر د قوماندان قبر موقیعت لري. د وروستي سیټ څخه موږ ورټیټ شوو. څو د شیشې څخه د غونډیو لړۍ ته ځیر ځیر ور وګورو. د وروستنۍ غونډۍ سر باندې تازه رغنیز کار روان او د غونډۍ سر زیاته اواره سیمه یې را لاندې کړې وه.

د اوارې سیمې په یوې خوا باندې یو شمېر موټر ولاړ و او د شنه اسمان لاندې شنه بیرغونه رپېدل چې د شهید د قبر نښه وه. حافظ وویل چې د شهید په قبر باندې د کوچني څلي د جوړېدلو لپاره پلان روان و او په نوموړې پروژه باندې کار ایله بیله اوس پیل شوی و.

اوس مهال دا یو ساده قبر و او خوا او شا سیمه یې د روان کار له امله چټله

او ککړه وه. کله چې د غونډۍ سر ته ورسېدو او دوړې باد پاکې کړې. د کلي په سر او د درې په پورتنۍ برخه کې منظره ښخي زره راښکونکې وه.دا په دره کې د شنو ځایونو له ډلې څخه یو و چې د غونډیو له لمنې څخه تر شا او خوا غونډیو سرونو پورې په ونو او وښو باندې شین و. د پنجشېر درې زیاته برخه ډبرینه. زیږه او شاړه ښکلا لري. خو دلته منظره نرمه. ارام بخښونکې او شنه وه. د مسعود د وروستني ارام گاه لپاره بهترین ځای و. حافظ زه او کریس د ختو جوړ شوي ساختمان ته چې په سر یې کلک ترپل اچولی او د لرگیو په متو یې درولی و. ور بدرگه کړلو.یوه مستطیل شکل کوټې ته چې د لمر څخه په ترپال باندې پوښل شوې پلې لار ورغلې وه. د کوټې په منځ کې یو اوږد مستطیل ډوله د خاورو وره غونډۍ وه چې واضح د مسعود قبر و. د قبر سیمې ته زموږ سره یو ځای لږ ترلږه شل افغانان چې زموږ د موټر د درېدلو په مهال په سیمه کې و راغلل. ټول غلي ولاړ او موږ درېیو ته یې راکتل. دا چې ټولو ځیر ځیر راکتل یو نا اشنا او عجیبه غونډې شېبه وه خو ما ورسره مقاومت وکړ او پر ځای مې په هغه یادونو او شېبو باندې فکر متمرکز کړ چې له مسعود سره مې تېرې کړې وې. ما د خاورو ډمبوري (قبر) ته ورکتل او باور مې نه شو کولی چې یو څوک دومره زورور او ذیرک دې ددغه خاورو لاندې د همېشه لپاره پروت وي. ما د صلیب نښه جوړه کړله (د عیسویانو دعا. ژ) او د څو دقیقو لپاره مې چوپتیا غوره کړله. کله چې موږ د قبر څخه را تاو او د لمر وړانگو لاندې ودرېدو. ومې لیدل چې حافظ په ژړا دی او په خپلو غمبورو مې هم اوښکې احساس کړې.

پروفیسور سیاف هم د نېټې غلطوونکی دی (داسې یو څوک چې دوه شیان یا دوه پېښې همزمان وبولي. ولې په حقیقت کې همزمان نه وي. ژ) هغه د شوریانوپه ضد د جهاد پر مهال د مجاهدینو د اوو سترو سیاسي لیډرانو له ډلې څخه و. هغه په کایرو کې د الاصغر له پوهنتون څخه فارغ او له دې امله چې د سعودې د وهابي سخت دریځه عقیدې سره یې نږدېوالی درلود. هغه د سعودي د شخصي منابعو څخه مالي ملاتړ ترلاسه کاوه.

د تعلیم دغه ترکیب. مذهبي عقیدې او پیسو په لرلو سره هغه وتوانیده چې یو ځواکمن پوځ اوپیروان ترلاسه کړي.د فیلیپین مسلمانانو هغه ترهگره گروپ چې په کال ۲۰۰۲ کې یې درې امریکېیان یرغمل ونیول.د همدغه پروفیسور ددرنښت لپاره چې ما ورسره په نږدې شېبو کې د لومړي ځل لپاره وپېژندل. دده په نوم یانې ابو سیاف ونوماوه. د خونړۍ خپل منځي جگړې پر مهال د ۱۹۹۲- ۹۴ پورې چې د افغانستان زیاته برخه یې ورانه کړله. سیاف خپل اغېزه او حیثیت له لاسه ورکړل او ورپسې کلونو پرمهال هغه د صحنې څخه جلا او څنډې ته ووت. په ۱۹۹۴ کال کې د طالبانو د پاځون له امله سیاف د مسعود له شمالي ټلوالې سره

بیا یوځای شو. سره له دې چې د سیاسي معادلې هومره تکړه لوبغاړی نه و. خو هغه بیا هم دوه زره جنګیالي وساتل او د هغه ځواکونو د شمالي ټلوالې لومړی کرښو موقیعتونه چې د کابل د ختیځ څخه د جلال اباد په لورې و. ساتل.
زه د سیاف سره دلیدنې لپاره لېواله وم ځکه چې هغه په کال ۱۹۹۰- ۹۲ د سعودي سره د اړیکو له لارې په هغه وخت کې نسبتاً ناپېژندل شوي مجاهد اسامه بن لادن سره ملګرتیا کړې وه.بن لادن لا له پخوا لوېدیځ ته له قهره لېونی و او په هغه وخت کې یې هغه سازمان چې وروسته بیا مور د القاعده په نوم پېژانده جوړاوه. هغه یوازې یو سعودي شتمن سړی و چې غوښتل یې د مجاهدینو له عملیاتو سره مالي مرسته وکړي. بن لادن هغه سړی و چې پیسې یې ورکولې او جګړه یې له لیرې څنډو خوښېدله.
موږ پوهېدلو چې سیاف د متحده ایالاتو ملګری نه دی. د خلیج د جګړې پر مهال هغه د متحده ایالاتو سره په جوت او ښکاره مخالفت ډېر کلک ولاړ و خو موږ هیله مند و چې د سپټمبر د یوولسمې وروسته به هغه زموږ سره همکاری ته غاړه کېږدي.
د شمالي اوارو سیمو څخه لږ مخکې د پنجشېر دره په یوه تنګه خوله چې سل فوټه پراخوالی لري بدلېږي. په دغه ځای کې د درې ډډې تقریبا بېخي نېغې اود اوبو جریان د چټکتیا له امله د واورې په ډول سپین کېږي.
سړک یو موږ جوړوي. ناڅاپه له درې بهر کېږي او د شمالي اوارې سیمې د میلونو(کېلومټرو) په واټن پراخېږي. سړک بیا سره جلا کېږی. ګڅ ښاخی یې د جبل السراج او چاریکارو په لورې او ښی لوری یې په همغه سهار زموږ منزل. د ګل بهار کلي ته ورته. د سیاف وروکې کلا دومره ښکلې نه وه خو له موږ سره سترې مشی ګرم و. تېره شپه کریس د مخابرې او بیا د سټلایټ ټلیفون له لارې د سیاف او د هغه کسانو سره د لیدنې د دایرولو لپاره اړیکه نیولې وه. موږ اصلي ودانی او بیا د لیدنو کتنو کوټې ته په بیړه سره ور بدرګه او هلته په چوکیو کېناستلو. د لنډ خو مناسب ځنډ وروسته سیاف راغی.
سیاف د پنځوس کلنی په خوا او شا کې و. د سپینې او اوږدې ږیرې له امله هغه د ایران مرحوم حیات الله خامنیي سره ډېر مشابهت کوي. په انګلیسي ژبه پوره مهارت لري او داسې ښکاري چې ملاقات کوونکو سره په نوموړې ژبه خبرې کول ډېر خوښوي.
سره له دې چې سیاف د ترهګری. بن لادن او د القاعده په وړاندې په جګړه کې صحیح شور ماشور(تبصرې) وکړ. خو کله چې زموږ سره د همکاری د خرنګوالي پر مشخصاتو باندې ټینګار وشو هغه په څرګندونو کې تت او بې وعدې ښکاره شو. هغه له موږ سره هوکړه وکړه . خو د بن لادن د عرب جګپوړي

ایمن الظواهري په نیولو کې مرسته وکړي خو کوم مشخص څه تر لاسه نشول.

هغه غوښتل چې موږ ته زیات لکچر(وینا) چې ولې باید متحده ایالات روم ته شړل شوي پخوانی افغان پاچا. ظاهرشا هېواد ته د راتګ څخه ملاتړ ونکړي. راکړي. ما سیاف ته وویل چې د امریکې د متحده ایالاتو په دولت کې د ګوتو په شمېر چارواکې باور لري چې پخوانی پاچا د طالبانو وروستني افغانستان کې اورد مهاله اغېزه لرلی شي خوپاچا ښایي د طالبانود ماتي سمدستي وروسته په ثبات رامنځ ته کولو کې یو څه مثبته اغېزه ولري.

د لیدنې د پای په شېبو کې ما ورته وویل چې غواړم چې سیاف سره یو څه مرسته وکړم. څو د راتلونکې جګړې لپاره خپل ځواکونه چمتو او زموږ منګولو ته د القاعده د لیډرانو په لمسولو کې مرسته وکړي. ما له خپل وړوکې بکس څخه د سل زره بنډل راواخیست او د مېز په ها خوا. سیاف ته مې وروسپارلې او هغه هم د طبیعي خوی په اساس بنډل وراخېست.

د هغه پیسو د ورکړې په برعکس چې ما شمالي ټلوالې ته ورکړې وې. د دغه پیسو بنډل مې په اصلي سپین پلاستیک کې پرېښود. څو سیاف یې په خپله ووینې!

سیاف د پیسو بنډل وراخېست او یو څو شېبې یې په حیرانتیا سره وروکتل او په هغه څه چې یې په لاس کې نیولي و. باور نشو کولی.

بیا یې سترګې سره پراخې شولې او د خپل چاق سیاسي مشاور په لورې وروګرځېده. هغه د پیسو بنډل داسې لکه ګرم کچالو یې چې په لاس کې وي. د نوموړي سړي غېږې ته وروغورځاوه.

سیاف ما ته راوکتل. سترګې یې سره تنګې شولې او ویې ویل: دا لومړی ځل دی چې تراوسه له چا څخه مستقیماً پیسې اخلم. هغه سر وښوراوه. داسې لکه څوک چې غولېدلی وي. ما ته یې په توجه سره راکتل او په شونډو یې موسکا خواره وه.

موږ پاڅېدو او د متحده ایالاتو سره د مرستې له امله مې له هغه څخه مننه وکړه او لاسونه مو سره ورکړل. کریس د هغه له سیاسي مشاور سره د یوې دقیقې لپاره پاتې شو. څو په راتلونکي کې د اړیکو نیولو ترتیبات ورسره وڅېړي او له هغې وروسته مو کلا ته د راګرځېدلو دوه ساعته سفر پیل کړ. له دردونکې سفر سره سره مې په لاره له ځان سره تکراراً وخندل!

# اوولسم څپرکی
## ددښمن داندازې ځرګندول
## سپتمبر۲۹ اکتوبر -۰۱ ۲۰۰۱

کله چې زه اوکریس دپروفیسور سیاف سره په لیدنه بوخت وو،ریك،میوري، ستیان اوممتازپه جیپ موټرکې دسړك دخرابوالي له امله موټر ښکته او پورته کول. دوی غوښتل چې دجنرال بسم الله خان سره لیدنه وکړي. دجبل السراج خواته له ګرځېدو څوکیلومتره سړك وروسته پوخ و. خو دبمونوله امله ځای ځای وران شوی و.

ریك پردغه سړك دارام سفر په کولوسره حیران شو. هغه دسړك د ډېر خرابوالي له امله فکر کاوه چې پدغه هېوادکې نور هوار سړکونه هېڅ پاتې نه دي. د سړکونو ترڅنګ په پرتلیز ډول پیاوړي کورونه و. هغه کورونه چې په دره کې تراوسه موړنه ولیدلي. که څه هم چې د جګړې نښانې په کې وې او ټولوته د بیا جوړونې اړتیا وه خو بیا هم د دوامدارې پیاوړتیا نښانې په کې وې.

دوی په ناڅاپي ډول پنجرې ولیدې چې پرسرېې اغزن سیمونه راتاو شوي وو اوپه منځ کې یې یوه ښه ساتل شوې ودانۍ وه. دزاړه T-72 ډوله روسي ټانك دتوپ برخې اولوی زاړه موټردودانۍ دانګړپه منځ کې ولاړاوپه ډلوډلوسرتېري سفرته تیاری نیولی و. دموټرپه تېرېدوسره دهیچاپام هم دموټروپه لورې ونه ګرځېده اوخلك له هغه غبرګون سره په مخالفت کې ووچې په دره کې زموږ پر وړاندې ترسره کېده.

ریك مخامخ یوه غونډۍ ولیده چې پر سر یې څومختلفې ودانۍ جوړې شوې وې.

سرتېري دغونډۍ پرلمن له تېرېدو وروسته. دانګړدروازې ته ورسېدل. دووتنوسرتېرو چې پاك زرغون رنګه خاکي یونیفورم اونظامي خولۍ یې پرسرونو وې. موټرته د درېدلواشاره وکړه. یوسرتېرى چې کلاشینکوف یې درلوده حافظ سره دخبروکولولپاره دموټرخواته راغی. سرتېري درېیو بهرنیو ته ور وکتل او د سر په ښورولو یې د هو ځواب ورکړ.

ریك دده چپ لوري ته د ترپال لاندې له شپږو بوجیو په جوړه شوې پوسته کې څلور تنه سرتېر ولیدل چې 12,7 ملي متره توپ ورسره و. له یوې لنډې

محاورې اوبهرنیوته لـه بیاکتنې وروسـته یـې موټرتـه دانګړپـه لـورې دتګ اجازه ورکړه.موټروان سملاسي موټرخام سړك ته چې دغونډۍ په بېخ کې و وګرځاوه. دغه ځای دیوې ګوریلاډلې کمپ نه بلکې یوربښتینی پوځي ځا ی وچې په نظم اودسپلین سره اداره کېده. خان دیوې غونډۍ پرسردسرتېرودیوې شپېرکسیزې ډلې په منځ کې دربېدلی و او موږ ته په انتظار و.

درې امریکنیان چې له اوږده سفر وروسـته پـه سختـۍ سـره لـه موټرڅخه کـوز اوخان یې له موسکاسره ولید اودهرکلي لاس یې وروغزاوه. هغه دهر یوه لاس په جدي ډول په زورسره وښوراوه او ممتاز د جنرال د پېژنـدګلوی ژباړې تـه دوام ورکړ.زه بسم الله خان یم اوزماځای ته مودراتګ هرکلی وایم. خان نږدې پینځه فوټه جګوالی درلودچې غونډمند. ورین مخ اولنډه پاکه ږیره یې درلوده.

پـه ګـروپ کـې نورافسـران چـې معرفـي نشـول پـه پـوځي یونیفـورم کـې وو. خوبسم الله خان لوېدیځ ډوله خاکي پتلون. بنیان. یوتور واسکټ اونصواري رنګه دغرونودتګ بوټان یې په پښو وو. دریك په ګمان دخان عمر دڅلوېښتوکالوپه شا او خواکې و. که څه هم چې هغه یوڅه غښتلی ښکارېده اودا دده دښه صحت نښه وه.

جنرال بسم الله خان دوی یوې ودانۍ ته رهنماکړل چې څومختلف دهلېزونه یې درلودل اودودانۍ پاسني پوړکې په یوه کوټه کې یې پر چوکیو دکېناستلو بلنه ورکړه.

کوټې لویه کړکۍ درلوده چې بهرترې دشمالي هـوارې سیمې په زړه پورې منظره ښکارېده او د کابل خوا دیوه نصواري رنګه تتې وریځې په ډول ښکارېده.

دکوټې په کونج کې یو پاك سوتره چپرکټ واوڅودانۍ لمپې د مېز پر سر ایښودل شوې وې.دغه کوټه ښې له شکه دخان د دفتر او خوب ځای و. په کوټه کې له کېناستلو وروسته درې یاڅلورو تنو ځوانو سرتېرو په بېړه میوه او د چای ډك پتنوسونه راوړل.

د پیالو د لګېدلو او د کسانو د شور ماشور پرمهال خان د ګروپ لپاره بیا هم هرکلی ووایه.

هغه ویل چې جنرال فهیم هغه ته ددوی دجی. پی. اس سروې په باب پوره مالومات ورکړیدي اوله ګروپ سره د هغه شخصاً د کار کولو له امله ډاډ ورکړ.

هغه دخپلې تجربې لـه مخې پوهېده چې دراتلـونکي بمبـارد کمپاین لپـاره د لومړیوکرښو دقیقه نقشه اخیستل یوازین کار دی.

ریك هغـه تـه پـه تکرارسره وویـل چـې دامریکـې پـوځ بـه دشمالي ټلـوالې پـه شمول دجنـرال بسـم الله خـان ځواکونوتـه دجګړې پـه وخـت کـې د زیان اوښـتو د کچې راټیټولو ته ډېر پام وکړي. جنرال په موسکاسره وویل چې که رښتیاووایم. زه

علاقه لرم چې تاسې دښمن ترسختې بمبارۍ لاندې ونيسۍ. ښايي چې يوځوبمونه به زماپه موقعيتونوولوېږي اوداپه جګړه کې پېښېږي. که چېرې تاسې دښمن دسختې بمبارۍ لاندې ونيسۍ. موربه دغه ډول مرګ ژوبله له شکايت ځخه پرته قبوله کړو. (1)

هغې خبرې دځوشېبولپاره بندې کړې بيايې وويل چې هو خو بايدحتماً له احتياط ځخه کار واخيستل شي. داکتوبرمياشتې په نيمايي کې. د بمونو ځو بدمرغه سهوې وشوې چې له امله يې دشمالي ټلوالې ځوسرتېري اوځوملکي وګړي ووژل شول. خان په ارام سره دغه مرګ ژوبله قبوله کړه.

خان چې ودرېدو زه پوی شوم چې د چای ځښلومراسم پای ته ورسېدل. خان وويل: ښاغلو راځۍ چې پيل يې کړو. خان اوګروپ له کوټې ځخه بهرشول. د ډېروکار کوونکيو د منډو او ترړو بل پړاو پيل شو. دودی دګروپ لپاره دروازې خلاصولې اوپه ګڼودهلېزونوکې يې ځانونه په دېوال نښلول ځوګروپ ته داژاد تېرېدلواجازه ورکړي.

خان د دورو ډک خوښه ساتل شوی ټيوټا لنډکروزر موټرپه مخکيني سيټ کې کېناست اونور ګروپ او ممتاز د موټر په وروستي سيټ کې ورسره ډمبار شول او د ورځې لپاره يې د اړتيا وړ توکي د موټر په شا کې واچول.

خان يوه لاسي کوچنۍ مخابره درلوده چې په دوامدارډول يې شورکاوه. دجيپ موټردځړواونصواري رنګه دوروپه منځ کې راووت اوحرکت يې وکړ. يوپيک اپ موټر يې له کتارسره يوځای شو. ريک دموټرپه وروستنۍ برخه کې ځلورسرتېري وليدل چې دموټرځړرنګه ميله يې نيولې اودګردونوپه منځ کې ولاړ وو.

خان د مخابرې په کارولولګياواوپه ځرګندډول مخکيني موقيعتونه يې د کتار له ورتګ ځخه خبرول. په مخابره کې دلنډې محاورې وروسته. خان ګروپ په لنډ ډول د جګړې ډګرپه تکتيکي حالاتو پوی کړ.

زمونږ لومړی کرښه په کوم ډول چې تاسې هيله لرئ په هغه ډول نده. زيات شمېرلوېدېځوالوخبرياﻻنودغه ځای ليدلی اوهروخت يې په دواړوخواووکې دمورچلو يوه دوامداره ليکه ليدلې ده.مورلوړې نقطې تر ولکې لاندې لرواوپه مهمونقطوکې کلك دفاعي موقيعتونه لرو. لکه ځنګه چې تاسې به يې وګورۍ ددغې غونډۍ لمن هم زمونږترولکې لاندې ده. دېټېدلولپاره سخت ځايونه لروچې ډېل دېوالونه اوباندينۍ برخې يې دويشتلولپاره ځايونه لري.

---

(1) ښايي ځکه اوس هم د امريکې د بمباريو پر مهال د ملکي خلکو د مرګ ژوبلې له امله د شمالي ټلوالې هيڅ لوړ پوړي چارواکې دفاع نه کوي او حتی يو ځل يې هم يادونه نه ده کړې. ژباړن

له ګل بهارڅخه لوېدیځې خواته اودبګرام دهوايي اډې زیاته برخه دغونډۍ له بېخ څخه دکرښې په ځينوځايونوکې له شپږوڅخه تراتوميلو پورې پراخېږي. دبګرام لوېديځې خواته یوه وتلې تونه وه چې دکابل په خوا غزېدلې وه.
دهسکونقطوپه درلودلوسره دخان ځواکونه وتوانېدل چې دښمن دهغوپه سیمه کې تر ډېرې اندازې پورې وڅاري اودښمن ته یې دخان څخه له وړاندې خبرلواوتياري نيولوپرته دزيات اودرانده یرغل لپاره دتياري اجازه نه ورکوله.
خان وویل چې ددوی ځارګرې ډلې دوی ددښمن له حرکاتوڅخه په پوره ډول خبرساتي. زموږتوپخانه اوزمادلاندينيوليکوټانکونوله امله ددښمن پروړاندې د یرغل په پایله کې هغوی ته درونـدزیان رسېږي اوهمدارنګه له لاندینۍ لیکې د اړتیاپرمهال په چټکۍ سره ملاترکولای شم. که چېرې دښمن دلاندينيوليکوپه ماتوولو وتوانېږي. ددښمن لپاره دغونډۍ دمخ پورته برید کول دسختې پېچومي اوګړنګونوله امله ډېره ګرانه تمامېږي. دغونډۍ په سرکې یوازې یوڅوتنه کولی شي ددښمن د یرغل په مقابل کې هغوی ته درانده مرګ ژوبله واړوي.
دطالبانودتوپ هدف اونښې ناسمې اوغلطې دي اوددوی هوایي یرغل برید بـې اغېـزې دي. موږپـه دغوموقيعتونـوکې ديوځـل لپـاره ډېرکسـان نـه ګمـارو. خوزموږدځواکونوزياته برخه دساتندويه ځواك په ډول دکرښوپه شاکې پراته وي. دغه موجودکسان زموږ ډېرلږ ځواك دی.
ځکه چې زه دډېروکسانوپه لومړيوکرښوکې دساتلولپاره لوجيستيکي جوړښت نلرم. ساتندويه ځواك مودممکنه لويې برید ددفاع په خاطرياکه خدای کول دیوه یرغـل لپـاره پـه پنجشـېرکې سـاتلی دی. دلتـه زمـادځواك دتوپخـانې اوټانکونوپـه درلودلوسـره زه پـه اسـانه توګـه ديـوې ورځـې لپـاره بریـد پـه شـاتنبولی شـم اوساتندوي ځواك ترهغې له پنجشېرڅخه رارسېدلی شي.
خان مخابرې ته دځواب لپاره خبرې ودرولې اوبيايې وويل: ددښمن په طرف کې به تاسې ووينـئ چـې هغـوی پـه هـواره کـې دکليوپـه نيولوسـره کرښـه جـوړه کړېـده. دوی تـول محلـي خلـك لـه کورونوباسـي اودهغـوی کورونـه يـې پـه سـنګرونوبدل کـړي دي. کورونـه لـه تيږودجوړشـوو ډبلودېوالونواوکوچنيوکړکيوپـه درلودلوسـره ددفـاع لپـاره ډېرغـوره دي اودهغـوی ورانـول ډېرمشـکل دي. دتـوپ ګولی مستقیماً په چتونوباندې ډېرښه کارکوي.
هغـه خبـرې ودرولـې اوموسـکايې وکـړه. ويـې ويـل چـې دهغوويشـتل حتـی زماکسانولپاره هم ستونزمن دي. له نږدې واټن څخه مځکيني جنګ ته اړتياشته. ددېوالونودورانولولپـاره بايدلـه تـانګونواو درانـه بـې پسـلګده وسـلې څخـه کـار واخيستل شي. تاسـې بـه ووينـئ چـې کلـي ډېرسـره نـږدې دي. نوپـه دې اسـاس دجګړې لپـاره جنګـي خـونې لـري. خـودوی يـوازې زموږدبريـد پـه وخـت کـې پـه

هغوځايونوکې جنګيالي اچوي.

دغه کلي دکابل په لوړې هواره سطحه اوددغه ځا ی اوکابل په نيمايي کې غونډۍ ددويمې ښې دفاعي کرښې په توګه کارېدلای شي. دطالبانواوعرب جنګياليوزياتــه برخــه ســاتندويه ځــواك. دهغوغونډيوترشــادی چــې زمــادتوپ دلګېدلوڅخه خوندي دي.

په ښکاره زه ددښمن دموقيعتونودماتوولوتوان نلرم خوزه اوزماکسان ترخپلـه وسه پورې کوښښ کوي.

ستاڼ ترې وپوښتل. چې جنرال صيب دعرب جنګياليوپه اړه څه پوهېږې؟

هوښه پوښتنه دې وکړه. عرب قطعات دطالبانوله ځواکونوڅخه په جلاډول ساتل کېږي. په عمومي ډول هغوی دلومړيوکرښومهم ځايونه په واك کې لري. ددوی موقعيتونه په اسانه ليدل کېدای شي. هغه تعميرونه چې هغوی اشغال کړي دي دکانکريټ اودخاورو دبوجيوپه واسطه يې تقويه کړي دي. دوی ددغه ډول پرمختګونولپاره پيسې لري. دوی ښه مجهزاوپه ښه توګه روزل شويدي. دوی دشيطانانوپه څېرجنګ کوي. په ځانګړي ډول هغه مسلمان جنګيالي چې دچيچنيا او ازبکستان اوسېدونکي وي.

دغه شيطانان افغانانوته نامشابه اصلاً دډزوپرمهال نښه نيسي. دغسې نه (هغه خپل دوه لاسونه له سرڅخه پورته کړل. يولاس يې له بل څخه دوسلې دنيولوپه ډول مخکې کړاوبيايې خپلې سترګې پټې کړې اودلاسونوپه واسطه يې ورانډې او وروسته دافغاني ځواکونودويشتلوهغه معياري پېښې يې وکړې چې د ۱۹۷۸ کال راپـه دېخـوايې دجګړې داوږدوکلونوپـه دوران کـې ترسره کـوي) اودوی (بهرني جنګيالي. ژ) تسليمېدل نه خوښوي. دوی په زړه ورتياسره جګړه کوي. دوی څه به درته ووايم. بيايې خبرې ودرولې او ويې ويل: هو دوی هغه سرېښ دي چې زموږدبريد په وخت کې دطالبانوځواکونه سره يوځای ساتي.

دموټردشورله امله ريك ورکوږ شو څو خبرې په پوره ډول واوري. جنرال وويل. د طالبانو موقعيتونه به په لنډ وخت کې د امريکې د هوايي ځواکونو هدف وګرځي او درونـد زيان به ور واوړي. خو موږ تاسو ته دلومړيو کرښو د نقشې په ګوته کولوکې انديښمن يو. له دې کار وروسته به طالبان او عرب جنګيالي سره ټوټه کړو. موږ بايد له تاسوسره کار وکړو څو د ننښې لپاره د لومړيو موقعيتونو يو لړليک جوړ کړو.

ښاغلی جنرال: ستاسره به دهمکاری لپاره به دامريکې ټول هوايي ځواك بدرګه وي.

جنراله په روڼ تندي ددغه نظرلپاره موسکاوکړه. انشاء الله که داکارترسره شي اوکه چېرې ددوی لومړنی کرښې په پوره ډول زيانمنې شي. نو زما ځواکونه به

وکولای شي چې ویجاړتوب یې بشپړ کړي.

ایس یو وي(هغه موټر چې په افغانستان کې ورته فورنر ویل کیږي.ژباړن) موټربریك ونیواوجنرال دموټردروازه خلاصه کړه اودموټرله ولاړېدوڅخه مخکې کوزشو. دګروپ دکوزېدوپرمهال جنرال له یوه غښتلي سرتېري سره چې افغاني کلتوري جامې یې اغوستې وې اوددرېیوسرتېروپه منځ کې ولاړ و. پاروونکې محاوره وکړه. هغه سړی له موسکاسره دګروپ په لورې ور وکتل او دسرپه ښورولو یې سلام وکړ. جنرال دغه سړی په اوږو وټپاوه اودګروپ په لورې یې راوګرځاوه او ویې ویل چې دغه جګړن حاجي اغادی. دی ددغه ځای امردی.

دده کسان په هغه سرکي دي اوزموږانتظارباسي. سخته پېچومه ده. خونن ورځ بایدډېرکارونه ترسره شي. نوددې لپاره باید تلوار وکړو. له دې خبرو سره جنرال راتاواو د یوې تورل شوې کرېږ لارې په لورې روان شو. چې د غونډۍ ترتېرې څوکې پورې یې نیږې اته سوه فوټه جګوالی درلود.

جګړن له جنرال سره دپاتې ګروپ تریوځای کېدوپورې انتظارشو. ریك ولیدچې دجګړن په شونډوموسکاخوره وه او د سر په ښورولوسره یې دګروپ هرغړي ته درناوی کاوه.

جګړن له ټولوڅخه وروسته په لار روان شو. د جنرال د پښو ګامونه تېز شول او ریك ته ښکاره شوه چې هغه دلارې له هرې کږې څوکې سره لاګرندی کېده.

امریکایان له ډېرزیار وروسته په جنرال پسې نږدې کېدل. لارې ډېره پېچومه درلوده اوپه زیاتوځایونوکې یې جغل پراته وو. له دې امله سوسته وه. له پینځه سوه فوټه ختلو وروسته ریك پوره په خولوکې ډوب واوپه مشکله یې ساه اخیسته.

موږ د تېرو څو میاشتو په دوران کې د منډې وهلو له امله منندوی و (د ورزش لپاره. ژباړن).

که څه هم ریك پوهېده چې دغه تګ دروغتیالپاره ښه دی اوپه دې هم پوهېده چې دغه ځای ۶۵۰۰ فوټه لوړوالی لري خوله دې نورهم لوړې ته خېژي.ریك اورېدل چې ستان هم دده په شاکې دی اودده غونډې په مشکله ساه اخلي. هغه پوهېده چې که چېرې لاره پلنه وای نوستان به له دوی سره په څنګ کې روان وا ی. ریك دستان هغه خبرې چې د شونډو لاندې یې کولې اورېدې. هغه (لعنتي غرونه)ته ورته د رټلوخبرې د ساه د اخیستلو پرمهال اورېدلې.

ریك دورځې لپاره دسامان دروندبکس بلې اوږې ته بدل کړ او پورته یې وکتل. میوري د جنرال پونډې کتلې او ریك لېده چې هغه دغه کار په مشکله سره کوي.

دوی ټول پوهېدل چې خان امریکنیانوته ځان ښوونه کوله او د درېیو کسانو

څخه هېڅ يوه هم نه غوښتل چې خان ته اجازه ورکړي چې د هغه څخه ډېر وروسته پاتې کېدو له امله ځان وښايي او يا خداى مه کړه چې هغه ته دساه دمشکل دپيداکېدوله امله دوى نه غوښتل چې له خان څخه وروسته پاتې شي.

کله چې خان دغونډى تېرې څوکې ته ورسېد. هغه دنورگروپ د رسېدلو لپاره څو شېبې انتظار ودرېد. هغه دوى ته په غونډى باندې دختلوپه وخت کې په احتياط سره کتل اودوى هم ده ته ور ورسېدل اوترې چاپېره شول. هر يو تن په مشکله سره ساه خيسته اومخونه يې لانده و. خوکوښښ يې کاوه چې ځانونه عادي وښايي.

ممتاز د ستونزې له امله ترټولوخراب مالومېده. خوله گروپ سره ديوکېدلوپه وخت يې جنرال ته په موسکاور وکتل. جنرال ښخي په عادي ډول ساه اخيسته. لکه څنگه چې تاسې گورى دغه سيمه زمادلومړى کرښې گڅ لورى دى اودغه غونډى دشومالي (نوم) هوارې دښتې ته درسېدووروستى غونډى ده. تاسې کولاى شى چې دجگړې ډگراودغونډى کرښه چې زموږښي لورې ته غزېږي ووينى اوپه ورته حال کې ددښمن اوزمادڅواکونوموقعيتونه هم ليدلى شى.هغه دغونډى ليرې خواته وکتل اوبيا راوگرځېد ويې ويل: سره له دې چې دښمن موږپه پوره ډول نشى پېژندلاى خوکه وپوهېږي چې غيرمعمولي خوځېدونه شته. شونې ده چې دتوپ هدف مو وگرځوي. که څه هم ددوى دتوپ ښښې دقيقې نه دي خوبياهم کله کله د هغوى بخت بېدار وي.له دې خبروسره دى دغونډى دليرې پرتوموقعيتونوپه لورې وخوځېد. جگړن حاجي اغا د جنرال خواته ورغى. ريك په پام سره موقعيتونه وکتل. دغونډى مخکينى برخې ته دختودرې ودانى جوړې شوې وې اوددغوودانيو په منځ کې دگيدړودغارونوغونډې غارونه يوې بلې خواته شته و. نږدې لس سرتېرې ولاړ وو. چې گروپ ته يې په موسکا کتل اوپرهمدې مهال يې پخپل منځ کې په کراره خبرې هم کولې.

د مجاهدينوپه ډول جامې يې په تن وې خووسله اونورسامان يې پاك اوسوتره ښکارېدل. دغه ځواکونه په ښېه ماړه اوغښتلي مالومېدل. يو زيډ اس يو-۲۳ ډوله دالوتکوضدتوپ چې غبرگ ميلونه يې درلودل دغونډى دسرپه لورې لگېدلى و.

ريك وويل چې دتوپ دميلونومخکينى برخه يې لنډه کړې ده. څودغونډى دځنگ په لورې ښه وويشتل شي اوپرهمدې مهال کې له ويشتونکي سره ډېره مرسته کوي.

دورانيوترمنځ يوکوچنى 14,5 ميلي متري ماشينگڼ هم لگېدلى و. دودانيوترمخ دغونډى په اواره برخه کې يو82m ملي متري هاوان هم لگېدلى و. مينځني ودانى ته په رسېدوسره موخپل بکسونه په ودانى کې کېښودل

اودخان اوجگړن اغاپه تعقیب دسمڅې تیاره داخل ته ورننوتو. ددغې سمڅې دېوالونوبه نږدې درې فوټه پلنوالی درلوداودچت دکلکوالي لپاره یې ډبلې متې ورکړې وې. خان زمور د گروپ غړي ددغومتوپه څنگل کې دهغودرېیوخلاصوکړکیوپه لورې وروستل چې دغې سمڅې ته یې یوازې رڼاورکوله. خان دکړکۍ په مرکزي برخه کې اوممتازورپسې ودرېد. چې ژباړه وکړي. خان مورته له کړکۍ څخه بهردلاس اشاره وکړه او ویې وې: تاسې وینئ چې له دغه ځایه موږدلاندینۍ اوارې ځمکې په لورې دویشتلولپاره ښه ساحه لرو. هغه گڼ کورونه وگورئ اوپه لاس یې اشاره وکړه. په هغه خام سړك باندې دطالبانویوموټردحرکت په حال کې دی. زمور کسانو سرف جیپ ته ورته موټرولید. چې پرسړك په تېزۍ سره روان واوترشاه یې دگردونوغونډۍ جوړولې اودودانیودیوې گڼې برخې په لورې روان و.د طالبانوله کرښې د شمالي ټلوالې دغه کرښه د اته سوه مترو په واټن کې پرته وه. میوري له جنرال څخه وپوښتل. ایا تاسې کله په داسې وخت کې په دوی باندې ډزې کوی. څکه ډېره اسانه ښه ښکاري؟

جنرال سرف موټرته وروکتل. ویې ویل: که چېرې دځوموټروکتارنه وي اویایې په نږدې وختونوکې پرموږډزې نه وي کړي نوموږزیات وخت په دغسې موټروډزې نه کوو. موږخپل مهمات ساتو. راځئ چې بهرلاړشواوکارپیل کړو.

ستان اومیوري خپل بکسونه خلاص کړل چې جی،پی، اس نقشه او قطبنامه برابر کړي. جنرال هم دوی په پام سره کتل. ستان اومیوري داړتیا وړ توکي تېر ماښام د شمالي ټلوالې د کرښو د نقشو په گډون یو ځای برابرکړي وو. ستان جنرال ته وویل: کولای شوچې ستا هغه نقشې چې ددغې سمې لپاره یې کاروې وگورو. څوستاسې نښانونه زمور له نښانونوسره پرتله کړ؟

جنرال له جگړن اغاسره وغږېده اوهغه یوه نقشه چې په نرم ټوکرکې پوښل شوې اودښیښې په سرکې په یوه کوچني بکس کې راځوړنده کړې وه راواخیسته. ستان اوجگړن په ځمکه باندې خپل نقشې څنگ په څنگ سره کېښودې اوجگړن دهغوی موقعیت ورته په گوته کړل. ستان له هغې نقشې څخه ددغه موقعیت کوردیناټ واخیستل اوهمدغه کوردیناټ یې پخپله نقشه کې تطبیق کړل.

جگړن دشوروپانودپوځ نقشه درلوده چې په تفصیل سره مالومات په کې و اوستان سملاسې پرې پوی شوچې دغه دوه نقشې په مختلفوبڼومیزان شویدي. دیوه میزان دحساب اړول بل میزان ته ساده حساب و. خوپه خاوروباندې دگونډه وهلوپه حال کې به دغه کارستونزمن وي. په همدې مهال میوري د جی. پی. اس پواسطه څومختلف کوردیناټ واخیستل. هغه او ستان په گډه ددغه

دواړونقشوپر یاد شویوکورډیناټوسره موافق شول اوپه پام سره یې په نقشوکې په نښه کړل. ورځ هم اوږده وه. دغې سروې دماښام له شپږوبجوڅخه لږډېردوام وکړاوگروپ دشمالي ټلوالې له ټولوکرښوڅخه کورډیناټ واخیستل. دغه ورځ له هڅواوکوښښونوڅخه ډکه ننگونکي ورځ وه اوگروپ دکورډیناټوداخیستلولپاره په یو وارپه یوموقعیت کې د څو شېبولپاره درېدل اوبیابه په جنرال پسې شاته دراتلونکي موقعیت په لورې روانېدل. غرمه هم دچرگوغوړه غوښه وه. یاگروپ فکر کاوه چې دغه ډنگره اوبدرنگه غوښه دچرگې وه. وریجې. میوه. خوږگرم چای او د بوتل اوبه هم ورسره وې.

د اوږدې او گرمې ورځې په اوږدوکې جنرال خپله لېوالتیاهېڅ له لاسه ورنکړه اوتر اخره پورې شاته پاتې نشو. هغه په روڼ تندې سره موسکاکوله. په داسې حال کې چې گروپ په سوکه سره په موټروکې دپنجشېرپه لورې ددوه ساعته له جمپونود ډك سفرلپاره تیاری نیوو. جنرال له هریوه تن سره مخه ښه کوله اوویل یې چې له کاره ډکه ورځ وه. که چېرې دغې ته ورته څونورې ورځې کارهم وکړو. موږبه افغانان ستاسې په واک کې درکړو!؟ هغه دسړك په غاړه ولاړواوممتازهم ورته په موسکا سروښوراوه.

ریك دگروپ په لورې موسکاوکړه او پوهېده چې دوی (دگروپ غړي)دجنرال په خوښولوسره کامیاب شول. دی په دې هم پوهېده چې ددغه بریالیتوب دلاسته راوړلوپه بدل کې به دوی ټول راتلونکي څوورځې دبدن دغړوپه خوږېدو تېرې کړي.

## اتلسم څپرکی

راتلونکې څو ورځې مو د مختلفو ادارو پرکارونو ډکې وې. له نوي چاپېریال سره مو د بلدېدو لپاره جگې او ټیټې تېرولې. زه تردې مهاله هم دلاندینیوکلموپه ستونزو اخته وم چې په لومړیو ورځو کې راته پیدا شوې وې. زمابدن له دې ستونزې او له ارتفاع سره د بلدېدو له امله د اوبو له کمښت سره مخ شو. ماستونزه اوکمزوري احساسوله خو د وخت په تېرېدو سره ښه کېدم. خو د پاېي د معدې د گیس ستونزه لاپسې زیاتېدله. دگروپ له غړیوڅخه یوازې زه وم چې روغتیایي ستونزه مې درلوده. زما دناروغۍ دپړاو دغه حالت سره له دې چې پرهېزمې هم کاوه بیا هم فوق العاده و.

دهغې هیلې اوهمکارۍ په خاطرچې شمالي ټلوالې زموږ د گروپ راتگ ته گرم هرکلی ووایه. په دره کې دگروپ له شتون څخه دځایي خلکودخبرېدو له امله دشمالي ټلوالې دمشرانواندېښنې هم راوپارېدې.

دېنځمې ورځې په سهار جان محمددنویوجاموله غټې دلۍ سره راغی او ویې ویل چې دګروپ دغړوپه خاطریې داجامې رانیولي دي. هغه په خوښۍ سره وویل چې انجینرعارف فکرکوي چې د لوېدیځ ډوله جاموله اغوستلوڅخه دمحلي جامواغوستل ښه دي. هغې دګروپ هرغړي ته بېل بېل وکتل اوبیایې یو. یوپرتوګ اویو. یو لوی کمیس دګروپ هرغړي ته په لاس کې ورکړل. جان محمددغاړې هغه دسمالونه چې پنجشېریان یې کاروي اوخوښوي هم دګروپ لپاره راوړي وو. چې د مالوچو له نري ټوکر څخه جوړ شوي وو اوګڼې توري لیکې یې درلودې. هریوه دسمال درې فوټه مربع پلنوالی درلوداوپه حقیقت کې چې موږله هرافغان سره مخامخ شوي یو. دغه ډول دسمال یې په غاړه کې و. که څه هم په عادي ډول یې د کاوبای (Cow Boy) په ډول له غاړې راتاواوه. خو دوی دغه دسمال د څو بېلا بېلو موخو لپاره کاراوه. موږدوی ولیدل چې له غاړې به یې لرې کړل اوله همېشه شته ګردخخه به یې خولې اوپوزې پرې پټول اوبیایې دښځوغوندې شال غوندې د باران اوساړه پر وړاندې کاراوه. د هوا د خرابوالي پرمهال موږ داسې کسان هم ولیدل چې خپلې پوزې به یې همېشه پرې پاکولې او بیا به یې بېرته له غاړې راتاو کړ.

جان محمدوویل چې دغه تورې اوسپینې لیکې دشمالي ټلوالې دغړیتوب دلودلونمونــه ده. چــې داحمدشـــاه مســـعودهم ډېـــره خـــوښ وه. جـــان محمدزموږدګروپ دهرغړي لپاره له وړیوڅخه جوړې شوې هغه خولۍ ورکړې چې نږدې هرافغان یې کاروي. دغه خولۍ له درنو وړیوڅخه جوړې شوې وې چې په سرکې پلنــې اودیوبنــدل غونــدې تاوشــوې ځنــډې یــې لرلــې. دغــه ځنــډې پــه غوږونوراکښته کېدلای شي (پاکول. ژ). پاکستان ته زمادپخوانیوسفرونوپرمهال دغه ډول خولیوته چترالي خولۍ ویل کېدې. ځکه چې دپاکستان په شمال غرب کې دچترال درې خلکودغه ډول خولۍ په سرکول کلتوري دود دی.

پرتـوګ اوکمیس ته په اردوژبـه کې شـلوارکمیس ویـل کېږي. پرتـوګ هـم ډېرپرسېدلی او ازاد دی. دپرتوګ دملااندازه د دوو لویوکسانوبرابره وه. خوله نېکه مرغه چې بګه لري او پرتوګ بدن پورې کلك نیسي. کمیس یې اوږده لستوڼي لري اوعادي لوېدځ ډوله غاړې (کالر) اودوی لمنې لري چې یوه وروسته اوبله یې مخته تر زنګنو پورې رسېږي او د پرتوګ دپاسه پرتې وې. دغه جوړښت یې اغوستونکي ته اجازه ورکوي چې په بهرکې د تشناب حاجت داسې ترسره کړي چې په همدې مهال کې پټ هم وي او دا هغه څه دي چې هره ورځ لیدل کېږي.

دکمیس پرځرنګوالي برسېره فکرنه کوم چې دګروپ کوم غړي دې ددغه ډول عمل کوښښ کړی وي. موږپه لنډوخت کې په دغه ډول جامووپوښل شوو. خولۍ موږه موډېرابرې پرسرونوکړې اوله غاړې څخه موددسمالونودراتاوولولپاره

تمرینونه ترسره کړل. ماپه ایښنه کې خپل ځانته له کتو وروسته فکر وکړچې هرافغان به موله لیدلو وروسته سملاسي وپوهېږي چې بهرنیانوافغاني جامې اغوستي دي. مادگروپ نوروغړیوته وکتل. حتی میوري چې لنډه گیره یې هم درلوده په اسانۍ سره بهرنۍ مالومېده.

کله چې جان محمدولاړ موږ د نویو جامو په اړه سره وغږېدو. له واټن څخه ټول نارینه افغانان زموږ په ډول ښکارېدل اوموږته ورته جامې. خولۍ. دسمالونه او د پښوکولو بوټونه اوڅپلۍ یې درلودې. خوافغانانو کولی شول چې زموږ د جامو د بدل اغوستلو توپیر په اسانه وپېژني او له یوې ډلې څخه مو بهر په گوته کړي.

پدغه قبیلوي ټولنه کې چې ژوندپه کوچنیوکلیواوبېلو درو وېشل شوی دی. ټول یوتربله سره پېژنې اوبهرني ددوی په منځ کې دیوې خوږ گوتې غوندې چې په پټۍ تړل شوی وي ښکاري.

یوڅوکاله وړاندې په پاکستان کې ماله یوافغان قومي مشرڅخه وغوښتل چې دخپلې سیمې څخه بل کلي ته دده خپل څوکسان ولېږي څومیرعمل کاسي په سیمه کې ولټوي (میرعمل کاسي په امریکې کې د سي ای اې دوه مامورین وژلي وو) هغه وویل چې دغه کارناممکن دی. ته فکرکوې چې افغانان ټول یوتربله په ظاهري بڼه ورتوالی سره لري. خو یو افغان په چټکۍ سره پخپل کلي کې نا اشنا کس پېژندلای شي. زما کسان به په سیمه کې له لیدل کېدو وروسته سملاسي ودرول او وپوښتل شي. که چېرې ددوی خبرې یاپلمه په هرډول هغوی ته شکمنه ښکاره شي. دوی به ووژل شي.

دغه هم رښتیاثبوت شوه. موږدمحلي جامودښه اوپه طریقه اغوستلواوله ستروړیروپه درلودلوسربېره بیاهم په سیمه کې دگرځېدوپرمهال له لیرې بهرنیان ښکارېدو. یوځل کله چې زه اوکریس د شمالي اوارې سیمې څخه راوگرځېدو. په لاره کې دسړك دخرابوالي له امله د څو بزگرانو د ختو له جوړو شوو جونگړو په خوا کې ودرېدو. یو شمېر ماشومانو د سړك غاړې ته څېرمه په ورشوکې لوبې کولې. دسړك دجوړېدلودکارجریان ته یې کتل. دوه کوچني ماشومان زموږجیپ موټرته رانږدې شول اوله خلاصوکړکیوڅخه یې موږته په حیرانتیاسره په ځیرځیرکتل. په مااوکریس پورې یې دمحلي جامواغوستلوله امله تېزه خندا اوژر ژر خبرې کولې. یواوبل ته به ورتلل اوموږته به یې په لاسونواشارې کولې. بیاددوی کوچنۍ خور ورسره یوځای شوه. دڅلوروکلونوپه عمرکې وه. ډېره خوږه وه. خوډېره ناپاکه. مخ اولاسونه یې په خاوروخړپړ وو. هغه ودرېده اوماته یې په ځیرځیر کتل. سترگې یې پراخې اوپه ژړایې پیل وکړ. لاسونه یې له مخ راتاوکړل اوله ویرې ډکې سلگۍ یې کولې. وگرځېدله. خپل ځان یې دورور په غېږ کې

ورواچاوه اومخ يې دهغه په غېږ کې پټ کړ. زه اوکريس دغې صحنې ته په خنداشوواوحافظ له هلکانوسره وغږېده. هغه مورته مخ راواړاوه ويې ويل: هغه فکرکوي چې تاسې بلاګان ياست. تراوسه يې بهرنيان نه وو ليدلي. وروسته ځوان هلکان دموټربلې خواته راغلل. يوه کراچي يې ترمخې کړې وه اوبل درنده بوجۍ په شاکړې وه. دغه يو ودرېداوکريس ته يې وروکتل. بيايې ترې په درې ژبه وپوښتل اياته عرب يې؟ کريس په دري کې ځواب ورکړچې هغه عرب نه دی بلکې هغه داروپا اوسېدونکی دی. دغه ځوان ورته په خنداشو ويې ويل: بختوريې ځکه چې مورعرب په هرځای کې پيداکړو، بې له مرګه يې نه پرېږدو. ګوته يې په کراره له ورمېږه راتېره کړه. ځوپخپلوخبرو ټينګاروکړي.

موږدخپلوظاهري بڼودبدلولوله امله په دره کې دسفرپرمهال ځوځله له داړول غبرګونونوسره مخامخ شوو. ځووروځې ورسته موخپل ايل ايل ډوله (لوېديځ ډول جامې. ژ) دانګراودکلي په نږدې ساحه کې اغوستلې وې. حتی دلومړيوکرښوپه ساحه کې زمورډګروپ ځوتنومحلي جامې اونوروټولو لوېديځ ډوله جامې اغوستې.

زموږکوربه دلومړۍ ورځې. بياددويم ځل لپاره زموږ د جامو د اغوستلو موضوع رامنځته نه کړه. خوپنجشېرته دامريکې دځانګړوځواکونوپه نظامي لباس کې راتګ يوه لويه موضوع وه. دومره لويه چې نږدې له شمالي ټلوالې سره زموږاړيکې پای ته ورسوي.

بله موضوع چې مونږ يې ځورولو. دلېږد او رالېږد لپاره د وسايطونشتوالی و. هغه (سي. ای. اې) ګروپونه چې له دې وړاندې يې له احمدشاه مسعودسره په پنجشېرکې ليدلي و. شمالي ټلوالې ته يې دهايلکس پيک اپ اوديوه ټيوټالندکروزر موټرداخيستلوبوديجه ورکړې وه. هوکړه داسې شوې وه چې دانجينرعارف کسان کولای شي لدغه موټرخخه ګټه واخلي خوکه د(سي، ای، اې) ملاقات کوونکي ګروپونه درې ته راشي نوبايدهغوی ته دګټې اخيستلولپاره په واک کې ورکړل شي.

دغه دوه موټر په حقيقت کې شته وو. خو د شمالي ټلوالې د ورځني کارونې له امله ډېر ځورېدلي وو. سره له دې چې هغه موټر بايد زموږ لپاره هر وخت منتظر ولاړ وي. خو موږ بيا هم ډېر کله د اړتيا پر مهال موټرو ته انتظار پاتې کېدو.

موږله جان محمدسره دګروپ لپاره ديو بل موټر د اخيستلو په اړه وغږېدو. هغه وويل چې په دره کې ډېرکله روسي جيپونه پيداکېږي اوهغه به په خوښۍ سره په مارکېټ کې شته وي. ددغو موټرونو په اخيستلوکې به دې همکاري وکړي.

موږ فکر کاوه چې د استعمال کلمه ښايي د ښه استعمال په مانا وي. خو وروسته مو انتخاب نشو کولی.

میوري مو ددغوډول دوه یادرېیو موټرو درانیولو لپاره وګوماره. څو د اړتیا پر مهال ګروپ ور څخه په پرتلیز ډول د شته ترانسپورتي وسیلې په ډول ږاډه کار واخلي.

جان محمدیوه ورځ وروسته دڅوکارول شویو روسي جیپونوځای ته بوتلو. میوري څوساعته وروسته په ګردونوپېټ. په ګریسولړلی. خولېواله راوګرځېده. هغه درې ښه موټر پیدا کړي وو. که څه هم چې یو نه یو ډول ترمیم ته یې اړتیا درلوده. خو داسې ښکارېده چې د ګروپ له غوښتنې سره سم موټر به وي.

د هغودرې واړو موټرو اخیستو لپاره مو په ۲۱۰۰۰ امریکنې دالره هوکړه وکړه. خو په یو شرط چې بایددترمیم وړهغه ځایونه چې میوري په کې پیداکړي وو. تر راتلونکي سهاره پورې جوړ کړي.

ما ورته پیسې ورکړې. خو میورې ته مې وویل چې د موټرو د را نیولو یو رسیدچې د موټرو نمبرې په کې لیکل شوي وي ترې را واخلي. زه په دې پوهېدم چې یوه ورځ به د موټرو د اخیستلو لپاره وپوښتل شم. نو ددې لپاره مې غوښتل چې ددغې معاملې لپاره منلي اسناد ولرم.

میوري. جان محمداوڅوځوان افغانان د موټرونو د خرڅلاو ځا ی ته لاړل. څوساعته وروسته دګردونوله خړواو نسواري رنګه څپواوهارنونوسره راورسېدل. میوري په خندا و اوجامې یې بیاهم په ګریسوداغ داغ شوې وې. ویې ویل چې دمعاملې دجوړولواو هوکړې لپاره موډېره لویه غونډه وکړه. کله مې چې نوي ویلونه کتل. دوی غوښتل چې زاړه اوله کاره وتلي ټایرونه په کې راکړي اودیوه موټردماشین کاسه یې هم نه وه ګریس کړې. دوی فکرکاوه چې زه به دموټرلاندې دمعاینې لپاره په څېږو ورلاندې نشم. خودوی ته مې دا اثبات کړه (یانې موټرمې له لاندې خوا ولید). جان محمدوویل چې ښاغلی میوري په رښتیاه توندخوی اوټینګ معامله کوونکی دی اوقیمت یې تر۱۹۲۰۰ پورې راټیټ کړ. هغه وویل چې دی اومیوري دجګړې له پای ته رسېدو وروسته بایدپه کابل کې دانتیك سامان مغازه خلاصه کړي اودوی دواړه به شتمن شي.

دمیوري پرباتوره هڅوسړېږه لکه څنګه چې موږفکرکاوه. جیپونو یوازې په لاربانـدې دتلوتـوان درلـود. دروسـي تخنیـك هنرډېرکمـزورى واوپـه مـوټرکې دشیشودکښـته کولووسـیلې. د ایرکنډېشـن سیسـټم اودجمـپ دکمولولپـاره سـپرېنګونه پـه کـې وه. دوه ګېرونـه یـې درلـودل اوداړتیاپرمهـال بـه دې چـې موټرکومـك تـه اچـاوه نودګیرونودخرابـوالي اوګـډوډۍ لامـل بـه ګرځېـده. دسړکونودخرابوالي. لـه سیمې سره زموږنابلدتیااوپـه هره شېبه کې د موټر د

خرابېدو له امله زموږکوربه ټينګارکاوه چې موږپخپله موټرواني ونکړو. نوموړهم په رسمي وخت کې له دوی څخه د دوه‌موټروانانوغوښتنه وکړه چې همېشه راسره وي. څوسفر کې داړتياپرمهال دډريوردنشتوالي له امله ونه ځنډېږو. د چلوونکو د نړدې ساتلولامل داوچې زموږپيلوټان په ورځ کې څوځله دچورلکې دکېناستوځای ته دچورلکې دڅارنې اودټوليزې معاينې لپاره تلل اوډېرنورکوچني سفرونه هم پېښېدل.

دجيپونوداخيستلوپه ورځ موله انجينرعارف سره دبلې اړينې ورنې راوړنې معامله ترسره کړه. هغه دچورلکې لپاره د ډاوورټېلو ترلاسه کول وو. زموږدراتګ په وخت کې موچورلکې څوځله دهواله لارې دممکنه بشري مرستې (خواړه اونور.ژ) دغورځولولپاره ځايونه خوښ کړل اوپه همدې مهال مو دC-130 ترانسپورټي الوتکې دکېناستلولپاره ځای هم وليد. هرځل دچورلکې لپاره دپوره تېلودپيداکولوموضوع يوجنجال و. حتی دنږدې واټن سفرلپاره هم له دغه جنجال سره مخ وو. زموږپه رسېدوسره موږته ډاډ راکړل شوچې تېل به وي. په حقيقت کې دچورلکې دکېناستوپه ځای کې دتېلوڅوټانکره ولاړول. موږپوهېدوچې تېل له تاجکستان څخه په موټروکې راوړل کېدل اودتېلوراوړلوموټرپه پرتليزډول کوچني هم وو. بله ستونزه دموټرو زوړوالی اودټانکر رنګ اوپه منځ کې يې دخاورو شتون وچې تېل يې ککړول اوفلترکولوته يې اړتيادرلوده. دتېلوټانکربه دچورلکې کېناستلوځای ته تر رسېدو وروسته دوه يادرې ورځې ولاړو. څوخاوره اوزنګ يې کېني. بيابه دکارونې وړ ګرځېدل.

زمااوانجينرعارف ترمنځ دعملياتوپه اړه بحثونوکېدل خودتېلوپه اړه موبحث ته وخت ورکاوه. په همدې ورځ انجينرعارف وړانديزوکړچې ده ته پيسې ورکړم څوله دوشنبې څخه تېلويوټانکرواخلي اوله تاجکستان څخه به يې درې ته راوړي. دغه موټربه په پرتليزډول نوی اودتېلوټانکربه يې لوی اوپاك وي. ما بايد د چورلکو د تېلولپاره چې په يادشوي ټانکرکې راوړل کېدل پيسې ورکړې وای. هغه وويل چې دترانسپورټ يولوی موټرهم بايدواخيستل شي چې دسرف اوپيك اپ موټرو څخه په کې توکي په اسانه اوپه يوځل په کې يووړل شي.

ماد دغودواړوموټرو اخيستو ته غاړه کېښوده. عارف ته مې ۱۷۰۰۰ ډالردموټرو درانيولولپاره اوپنځه زره ډالرمې د ۱۷ ټنو تېلوداخيستولپاره ورکړې. عارف وويل چې هغه به په دوشنبه کې خپلوکسانوته مخابره وکړي چې ددغې معاملې دترسره کولوامر ورکړي اوموټربه په دوو ورځوکې راولېږدوي.

پيلوټان هم خوښ وو. موږ ټول دتېلوموټرونو راتګ ته سترګې په لار وو. په حقيقت کې دتېلوموټر درې ته راونه رسېدل اويامو ونه ليدل. دموټرودراتګ يادونه زما. ممتازاوعارف ترمنځ يوه ټوکه وګرځېده. له عارف سره به مې په هره ليدنه

کې دټېلودټانکردراتگ دوخت پوښتنه ترې کوله.

زمادهروخت پوښتنې وروسته به موټریادانجمن په کنډوکې دلارې دبندېدوله امله بندواویابه دکنډوپه هاخواکې دتوپان له وېرې ولاړواوکله کله خوبه له کنډو راتېرشوی هم واوپه یوه یادوو ورځوکې درته رارسېده.

دپیسو لـه ورکولوڅخـه څواووني‌وروسـته عـارف وويـل چـې مـوټردرې تـه رارسېدلی دی. په حیرانتیاسره بیاهم موټردچورلکې دکوزېدوپه ځای کې ښکاره نشـو. عـارف وويـل چـې لـه ټانکرڅخـه يوڅـه تېـل دانجمـن کنډولـه تېرېـدومخکې اخیستل شویدي. بیاجنرال فهیم یوڅه برخه دخپلونظامي اړتیاوو دپوره کولوپاره په دره کې له شته ټانکرڅخه اخیستي اودېته ورته هغه بل... هغه بل... اوهغه بل... !!! وروستی حقیقت داشو چې دامریکې حکومت چې ۲۲۰۰۰ امریکنی ډالر یې دلادرکه موټراو اوولس ټنوتېلوداخیستولپاره ورکړي وو. له لاسه ورکړل. داپه دې ماناچې دچورلکې لپاره به پاتې تېل داړتیاپه وخت کې همېشه کم اوخیرن وو.

کله چې په کال ۲۰۰۲ جنوري کې کابل ته راوګرځېدم اوله انجینرعارف سره مې دهغه په نوي دفترکې ولیدل. یوځل مې بیاهم ترې وپوښتل چې ایاموټردرې ته کله هـم راورسـېد؟ ده یـوازې وخنـدل اوټوکـه یـې پـه ماراوتپلـه اوزه هـم پـه خندابریالی شوم.

## نـولـسم څـپـرکـی

لـه کابـل سـره لـه لـومړی کرښـې څخـه دجـی. پـی. اس د کوردیناټو اخیسـتلو ماموریت له بشپړولووروسته موربایددېته ورته ماموریت دتخار په لـومړی کرښـه کې هم سرته رسولی وای. دغـه ماموریـت ډېرمشـکل و. ددغـه ماموریـت ترسـره کوونکي بایدله انجمن کنډو څخه دهواله لارې تېر او بیا لوېدیځو لومړیوکرښـوپه لـوروړل شـوی وای دغـه سـفر حتـی د هـوا پـه ښـو حالاتو کـې هـم خطرنـاك او ستونزمن و.

د تخار لومړی کرښه درې بېلا بېلـې خـواوې لـري چـې لـه تاجك سـرحد څخـه د سـویل لـورې غزېـدلې. دغـه یـوه خطرناکـه سـیمه وه. دشـمالي ټلـوالې لـه کرښـوهاخوایوه اواره سـیمه وه چـې کـوچنی اوټیټـې غونـډی یـې درلـودې اودهندوکش دغرونوله شمالي څنډې سره نښلېدې.

که طالبانودغه کرښه ماته کړې وای نوپنجشېردرې تـه د تاجکسـتان لـه لـورې راتلونکو اکمالاتوته ګواښ پیداکېده. د مقابل لور ي د ځواك تمرکز د تاجکستان له پولې څخه سویل لورې ته هغه سیمه وه چې شمالي ټلوالې په کې د غونډ یو

تېرې اولورې څوکې نیولې اوله لسوڅخه ترزیات کیلومتروپه اندازه سویل ته غزېدلې وې. ددغې سیمې اراضي سویل لورې ته ډېره خنډیزه کېدله اوغونډۍ هم په خنډیزواوزېږوغرونوبدلېدلې. پرهغه سیمه جنګي عملیات تقریباً ناشوني وو. بې له دوونقطوڅخه چې د سوېل اولوېدیځ لورېو ته له هغوخوړونوڅخه چې دخوړونوخولې په کې له غرونوڅخه وتلې وې. دغه دوه تنګیوغرونو ته طبیعي دننوتلولارې درلودې اودغو ځایونوبه طالبانوته دپنجشېردرې ختیځ لورې ته د ورننېدې کېدواوبریالي کېدواجازه ورکړې وای.

د شمالي ټلوالې ځواکونه په داسې ډول ځای پرځای شوي وو چې د تنګیودواړه خولې یې بندولې اودتخاردلومړۍ کرښې دویمه او درېیمه برخه یې جوړوله.

دغه سرویګانې بایدمیورې اوستان ترسره کړې وای. دوی دواړه له درې څخه داکتوبرپه لومړۍ نېټه دسهار دسپېده داغ پرمهال دهواله لارې هلته یووړل شول.

نصیر چې د شمالي ټلوالې پیلوټ و. هم له دوی سره په دې سفر کې یوځای و. هغه دتخارلومړۍ کرښې ته له سلوڅخه زیات سفرونه کړي وو اوودده تګ زموړله دوو تنوپیلوټانوسره په دغو کړلېچونو کې د لارښود په توګه ډېر اړین و.

د ګروپ کوربه په دغه ماموریت کې جنرال بریوله خان (ښایي بریالی خان یې «بریوله خان» لیکلی وي. ژباړن) وچې د تخار په لومړۍ کرښه کې د شمالي ټلوالې د ځواکونو قوماندان و.

خان عجیبه څېره درلوده. عمربه یې ددېرشوکالوپه شا او خواکې وي. غښتلی اودپام وړبدن یې درلود. هغې خپله قومانده اوپرېکړې په پوره ډاډ ترسره کولې. هغه دحقیقي رتبوپه اخیستلوسره دشمالي ټلوالې دځواکونودتوپچي قوماندانی مقام ترلاسه کړی و. هغه دځانګړي جرئت په لرلوسره مشهور واوپه څرګنده یې له دوی سره مینه درلوده. هغه په انګلیسي ژبه نه پوهېده خوپه روسي ژبه یې پوره مهارت درلود. هغه په روسیه کې زده کړې کړې وې اوله ستان سره یې په روسي ژبه بې له ژباړن څخه کارونه ترسر ه کول.

بریالی خان هم د هغه همنومي بسم الله خان ته ورته ځان غښتلی او ډېر لېواله ثبوت کړ.

ستان اومیورې هم باور پیداکړ چې دغه سروې به هم دکابل دلومړۍ کرښې په څېر په بېړه اوځواکمن ډول ترسره شي. دخواجه بهاوالدین په هوایي ډګرکې یې هوایي پرسونل پرېښو اودوی دخان لخوا د جبري چای اوکلچو خوړلو مراسموته بدرګه کړی شول.

دغه مراسم دخان په یوه ښکلي باغ کې چې دخان دکورترڅنګ واوله

لومړيوکرښوڅخه يې زيات کيلو متره واټن درلود نيول شوي وو. له باغ څخه دلومړيوکرښوپرخوامنظره ډېره ښکلې وه. خان خپل اوددښمن موقعيتونه ور وښودل. هغه دخپل ځواک په ټاکنه کې ربښتينی و. دوی دومره ځواك نه درلودچې ددښمن کرښې ماتې کړي اوددښمن ځواك هم دومره نه وچې ددوی دفاعي کرښې له منځه يوسي.

سره له دې چې خان لوړه سيمه نيولې وه بياهم دغونډيو يوه کرښه وه چې طالبانو ورڅخه ترټولونږدې اومخکني موقعيتونوته دخان دځواکونوله بريدڅخه په امن کې دفاعي او اکمالاتي ګټه ترې اخيستله.

خان دامريکې دهوايي ځواکونودبمبارۍ په ګټه پوهېده اودده لپاره ترټولوګټوره داوه چې دغه لومړۍ سروې پوره کړي. ددغوکرښو او د کابل په شمال کې د لومړيو کرښو ترمنځ يو د پام وړ توپير دا و چې دلته د ډزو تبادله په دوام داره توګه په سيمه کې هرلورې ته له خوځښت سره سمه کېدله.

کله چې خان. ستان اوميوري خپل جيپ ته بېول هغه دوی ته خبرداری ورکړچې نن به بې له شکه زمووړپر وړاندې څوځله ډزې وشي. که چېرې يوازې دسپکې وسلې ډزې وي. بياسخته نه ده. څکه چې دلومړۍ کرښې په اوږدوکې څوعرب قطعات دي اوباقي افغانان. خوهسې هم دښې ښې ويشتلولپاره دهدف له نيولوسره ستونزې لري. دغونډۍ په مخ پورته دښې ويشتلوتجربه له ډېروکموسره شته. هغه خبرې وځنډولې اوموسکې شو. ويې ويل: خوکه چېرې هاوان يې وکاراوه. بيانوزموږلپاره سخته تماميږي. دوی دهاوانونودويشتلوډېرتمرين لري اودا يوازېنی شی دی چې دوی زده کړی دی. نوموږبايدبېدار واوسېږو.

ددې خبرې په کولوسره هغه موټروته لارښوونه وکړه اوپخپله دموټرپه مخکنې سيټ کې کېناست. هغه خپل ځوان موټروان په مټ باندې وټپاوه اوپه دري ژبه يې څه ورته وويل. چې موټروان يې کلچ پرېښوداودموټرپه ريزيې پښه ټينګه کړه. ټول يې په سيټونوورو ښښلول. دوروستيوټايرونوپه تاوولوسره يې شګې په هواکړې اودګردونوپه جوړولوسره موټر روان شو. کله چې موټردخان له تفريحي باندې څخه يوه کاږه موړته ورنږدې شو. ستان هغه پلاستيکي لاستی چې ددروازې په سرلګېدلی وي. ټينګ ونيو. څو موټر يې د ښويېدلو پر مهال چې د غونډۍ په مخ ښکته لورې روان و خوږ نکړي. هغه ميوري ته وروکتل. هغه هم مسك و اولاسونه يې دموټروان د سيټ پرسر ټينګ نيولي وو. سترګې يې دخوښی له امله ځلېدې. دموټروان چپ لورې ته موټردسرك له غاړې وښويېده اوموټروان نوره هم په ريزپښه ټينګه کړه اوميوري هم په خنداشو. ستان ديوې بلې اوږدې اوسختې ورځې هيله درلوده اولاستی يې ټينګ کړ.

په هغه ورځ دوه ځلې په دوی باندې ډزې وشوې. سره له دې چې جنرال له احتیاط اودخطردشتون سخت خبرداری ورکړی و. هغه نږدې دګروپ دلاربښوونې پرمهال دخطرپروان نه لرله. هغه به دغره پرورانډې نېغ اولك روان واومیوري اوستان به یې هغه نقطوته رهنماکول چې ددښمن موقعیتونه به یې ښه لیدلای شول.

ځواکونو یې ټولو ښه احساس درلود. دوی ټولوخان ته له ویرې او حیرانیتا ډك احترام کاوه. هغه له هرسړي سره ټوکې اوخندا. په متونوټپول. کله کله به یې د هغوی اغوستي کالي ور باندې برابرول او یا به یې ورته د کالیو د اغوستلوپه اړه نصیحت کاوه. داسې ښکارېده چې هرسرتېری یې په ځانګړي ډول پېژاند. ښایي چې خپلوسرتېروته یې ځان ښوده اوښایي چې دوامریکنیانوته یې ځان ښوونه کوله. خوپه هرصورت خان دښمن ته په ځان ښودنه کې هېڅ ډاراحساس نه کړ.

په یوځای کې دسروې دلومړۍ ورځې له پیلېدویوساعت وروسته خان هغوی دشپږوبوجیوپه واسطه خوندي شوې پوستې ته بوتلل. چې ۱۴. ۵ ملي متري ماشین ګڼه په کې لګېدلې وه. پینځه یاشپږ سرتېري په کې وو. خان دپوستې سرته پورته شو. بیایې مخ راوګرځاوه. له میوري اوستان څخه یې وغوښتل چې ورنږدې شي. هغه دښمن ته نږدې په شپږ سوه متره واټن کې ښکاره ولاړ و. میوري سملاسي په خپړو ور وخوت او له جنرال سره ترڅنګ ودرېد. د ښه قضاوت په خاطر ستان هم د میوري په تعقیب د پوستې بام ته ور وخوت. خان وویل: ګورئ هغه د تېرې پرخې ترڅنګ د عربانو ډله ده. خان د موقعیتونو په لورې اشاره وکړه او میوري ته یې د ښه لیدو لپاره دوربین ورکړ.

جنرال وویل: عربان ډېر تکړه جنګیالي دي. د پاکستانیانو غوندې نه دي. پاکستانیان له طالبانوڅخه هم خراب جنګیالي دي. خو عرب او چیچنیان ډېر ښه مجهز دي. ښه زده کړه یې کړې اوسخته جګړه کوي او بل ددوی په موقعیتونوکې سمڅې ډېرې پیاوړې دي.

په همدې شېبه کې ددوی د سرونوپه هواکې دچاودنې غړواورېدل شواوستان دچابکې مرمۍ غږچې له لیري واټن څخه ویشتل کېږي وپېژاند. سملاسي همدېته ورته ځونورې چاودنې هم واورېدل شوې. دوی په نښه شوي وو. دوی خان ته مخ ورواړاوه. په همدې شېبه کې نورې مرمۍ هم ددوی په سرونوپه هواکې وچاودېدې. خان په ارام سره وویل: هوپه موږباندې ډزې کېږي. په اشاره کولوسره یې له دوی څخه وغوښتل چې دبوجیوله سرونوراښکته شي. ستان لا له وړاندې ټوپ وکړ څو توپکو لاندې په کنده کې ځان پټ کړي. میوري هم د ستان په څار ټوپ کړ دواړه مځکې ته ورسېدل او تر نږدې کندې پورې ور رغړېدل. دوی فکرکاوه چې خان به ورپسې وي. دوی د بام په لورې وکتل. خان لا

اوس هم نېغ ولاړ او د ډزو استقامت په لورې يې ځير ځيرکتل. د خان په ښي خواکې نږدې د درې يا څلور فوټه په واټن له خاورو ډکه داسې چاودنه وشوه چې دماشين گڼې بوجۍ يې لړزولې. خان ښکته ټوپ کړاوددوو هك پك اوحيرانه امريکنيانوخواته نږدې ورغى. خان په موسکاسره وويل: هغوى ويشتل نسبتاً زده کړي دي. ښايي چې د14,5 ملي متري توپ نښه يې برابره کړې وه. سټان پوهېده چې روسۍ 14,5 ملي متري توپ له امريکني 50 م ډوله توپك سره ورته والى لري چې وژونکې وسله ده.

خان وويل: راځئ دجى. پى. اس کوردېناټ واخلو اودغه ځاى موپه نقشه کې په نښه کړئ. زه به دځوتوپ گوليودويشتلوامرورکړم. څو دغه عربان سپي ورباندې غلي کړم.

موږ ددوى دغه موقعيت دمخالف په توگه د خپلو توپونو لپاره راجسټر او په نښه کړيدى. دده خبرې ريښتياوې. په مخابره کې دده له لنډو خبرو او خپلو کسانو ته ددښمن د موقعيتونو له کورډېناټو ويلو وروسته مو د توپونو د مرميو اواز واورېدچې زموږ په سرونو تېرې شوې اود مرميوپه چاودلوسره مځکه وښورېدله.

خان په داسې حال کې چې له پوستې څخه يې د مرميو د لگېدلو ځاى د هغه د اغېز مالومولو لپاره په ځير سره وکوت هغه وويل: ښايي هغه سپيوته يې له ډېرې زړورتيا څخه د ډډې کولودرس ورکړى وي. هو زما کسانو ډېر ډزونه پرې وکړل او تر يو څه وخت پورې به يې سرونه ټيټ وساتي. راځئ چې لاړشو. زيات کار پاتې دى.

دويم ځل د خان په ځواکونوباندې يوساعت وروسته هغه مهال ډزونه وشول چې دوى دټيټي غونډۍ پرڅوکه ددوو مخکينيوموقعيتونوپه لورې روان وو. خان دهمېشه غونډې دخپلوکسانوپه سرکې و. خوداځل هغه له وېرې ټيټ. ټيټ روان و. داځل دطالبانوموقعيتونه په پرتليزډول نږدې وو. سټان هم په بيړه دطالبانودموقعيتونوپه لورې مخ ور واړاوه.

د سټان د اټکل له مخې به د طالبانو نږدې موقعيتونو نږدې څلور سوه متره واټن درلود او د دواړو خواوو موقعيتونو د غونډيو د سرونو جگوالى سره برابر و.

يو ناځاپه ددوى ترشا د غونډۍ په هغه ډډه کې چې د دښمن په لورې وه چاودنه وشوه. چې دتوپکوډزونه هم ورسره وو. خان په منډه شو. سټان ته يې غږونه کول خو سټان سم نه پرې پوهېده. مگر انگېرله يې چې وايي ((دخپل ژوندساتنې په خاطر منډې کړې)) دېته ورته يوڅه يې وويل: سټان هم په منډه شوچې ميوري هم په ده پسې ښتى و. سټان وپوهېده چې د کلاشينکوف ډزې پرې کېږي. ځکه چې اواز يې د 14,5 ملي متري څخه يو څه تېره او جگوالى او

ټيټوالی يې درلود. د بارودو چاودنې د دوی ترشاه دوام درلود. دوی ټولو تر توپ لاندې په ټپلو ځانونه سره ورننه باسل. مرمۍ د دوی پر سر د خاورو په ټوپې چاودېدلې او د چابکه او اشنا مرميوغږونه يې هم اورېدل.

ستېان شاخواوکتل. ويني چې خان په خندادی. په ښکاره هغه له دې حالت څخه خونداخيست. ډزې لکه ځومره چې يوناڅاپه پيل شوې همدومره نڅاپي غلې هم شوې. دستېان په غوږونوکې انګازې وې اودخان غږيې هم ګډوډاورېده. هغه ويل چې طالبانوهم ډزې زده کړيدي. د عرب ځواکونو څخه د طالبانو نوموړی موقيعت نږدې و.

خان وويل: راځی دوستانوخپل کورډينات مواخلی. مورد ددې غونډی ترشاکولای شو ددښمن له سترګوڅخه پټ وخوځيږو. کله چې له دې ځای څخه ولاړشو. زه به هم دتوپونوديوځومرميودويشتلوامر ورکړم ځودښوډزو په مقابل کې انعام ورکړم.

دوو نورو لومړنيوکرښوته يې سفربې له کومې پېښې ترسره کړ. چورلکې هم له کرښې څخه په ليرې واټن کې کېناستې اوخان هم دوی دسروې ترسره کولوته بدرګه کړل.

سره له دې چې خان د ورځې د پيل په شان غښتلی او لېواله و. خو دا ځل ډېر محتاط هم و او په مخکينيو موقعيتونو کې د دښمن له ډزو څخه په پام سره ګرځېده.

ستېان ميوري ته وويل چې خان اوس پوی شوچې که چېرې دده ترکنترول لاندې سيمه کې دغو دوو امريکنيانوته څه پېښ شي. نودی به د جنرال فهيم لخوا له سختوپايلوسره مخامخ شي.

هر څه دليل چې وي. ماسپښين ارام او سروې په تېزی سره ترسره شوه. چورلکه د خان قرارګاه ته را وګرځېده او اېډاوګريډ چورلکې ته د تېلو اچولو اجازه واخيسته. دوی د چورلکې کومکي ټانکی هم له تېلوڅخه ډکه کړه.

له انجينرعارف سره زموږ د چورلکې اوولس ټنه تېل باقي پاتې وو او زه ډاډه وم چې د پېشکي په ډول به د دغو تېلو اخيستل د هغه لپاره د خپګان موضوع نه وي.

خان دخدای په امانی پرمهال له احساساتو ډک و اوستېان اوميوري ته يې دبيارانګ اوده سره يې دزيات وخت تېرولوبلنه ورکړ.

ستېان له جنرال سره دجګړې په کرښوکې دګرځېدوعلاقه نه درلوده. خوميوري دبياراګرځېدو ژمنه ورسره وکړه!

# څلورمه برخه
# اکتوبر ۲-۱۸. کال ۲۰۰۱
# دجګړې حقیقتونه
# شلم څپرکی

دتخار په لومړی کرښه کې دجی. پی. اس له سروې څوورځې وروسته مورإحساس کړه چې دبم غورځونې ستراتیژي څومره چې مورته په پنجشېرکې پرته وه اوتعریف کېدله هغومره په واشنګټن کې ښکاره او په چټکی سره نه تعریف کېدله.

د اکتوبرپه دویمه نېټه سي ټي سي(CTC) یا د تروریزم پر وړاندې د مبارزې مرکز خبر راکړ چې د متحده ایالاتو بمباري به د هېواد په سویلي برخه کې په همدغه ماښام پیل شي.

مونږ عارف خبر کړ او په شوق سره ورته انتظار و. خوبیایې خبرراکړچې دبمباری کمپاین به دڅوروڅولپاره وځنډول شي. عارف له دې پرېکړې سره خپه شو. ددې پرېکړې لپاره دلیل په سیمه کې دهوایي ژغورنې ګروپ نشتوالی واودیوه امریکنـي پیلوټ لپاره دهځې ناهیلي اونشتوالی دامریکې پوځ لپاره جدي موضوع وه.

زمونږ پوځ نه غوښتل چې د برید کولو له امله په ټیټ ارزښته هدفونو کې خپل پیلوټان له خطرسره مخامخ کړي.

په همدې وخت کې ډاکټر او پیلوټانوپه ګل بهارکې یو سیم[1] د وزرو لرونکي الوتکې د کېناستو لپاره چې دسیاف د اوسېدلو له ځای سره نږدې و. د ممکنه ډګر د ټاکلو لپاره سروې کوله. ددغه ځای سپارښتنه د انجینر عارف او د هغه د مامورینو لخوا شوې وه. دوی فکر کاوه چې پخوا هلته هوایي ډګرشته و. د هوا له لارې دغه ځای په اسانی سره تر سترګو کېده. ځکه چې د شاه او خوا سیمې په منځ کې یوه اورده او اواره ټوټه پرته وه.

ډاکټرله څومحلي کسانوسره دحافظ دژباړې په مرسته غږېدلی و. په رښتیاهم دغه سیمه په ۱۹۳۰ کال کې دبېرو(یو ډول مشربات) دیوه جرمنـي شرکت لخوادهوايي ډګرپه توګه کارول شوې وه. عارف ته مې ددغه ډګر د اوارولو اوبرابرلو لپاره لس زره ډالر ورکړل. او له هغه مې وغوښتل چې کارېې باید دیوې

---

[1] دا هغه ډول الوتکې دي چې تقریباً څورلکې ته ورته څرخونه لري او په پرتلیز ډول په کمه ساحه کې کېناستلی شي. ژباړن

اونۍ په اوړدوکې بشپړکړي.
زموږ پیلوټان ډاډه وو چې L-100 ډوله الوتکه به په اسانۍ سره پدغه ډګرکې کېنـي اوپـه دغـه کاربـه مورتـه دبیااکمـال وړتیـا راکړي.سـتونزه بـه داوي چـې د طالبانولومړۍ کرښې به په شاشوي نه وي. دغه هوايي ډګربه دتوپ اودراکټ ترهدف لاندې وي. خوموږغوښتل چې دغه وړوالی ولرو. حتی دلنډې مودې لپاره بیاهم دهواله لارې داکمالاتود راغورځولولپاره ترې ګټه اخیستل کېدای شوه.
ایـډز مـوږ د کـوچني ډګرلپـاره بلـه مرجـع دهغـه کتـاب لـه مخـې چـې دافغـان اوانګلیس دجګړوتاریخ په کې و. د لوستلو له امله پیداکړی شوه. په ۱۹۱۹ کال کې د افغان او انګلیس د دریمې جګړې پرمهال. دبرتانیې هوايي قول اردو د کابل په ختیځ (ښايي منظور شمال وي او کومه يي سهوه وي. ژ) کې د ګل بهار نومې یوه کوچني کلي کې یو هوايي ډګر جوړ کړی و. زمـوږ ساختماني هڅـو وروسته داثبوت په ډاګه کړ چې دغه هوايي ډګرپه رښتیا هم دبرتانیې پخوانی هوايي ډګر و.راتلونکي ورځ موخبرترلاسه کړچې دخبرواتروااوږدوالی په سویل کې جګړې ته دپښتنودراوړلوپه څرنګوالي څرخېده.
په اسلام ابادکې زموږ مشر هم هغه پاکستانی ډول (بابولاله چې په شمال کې زموږ تمرکز او هلته د طالبانو پر وړاندې به زموږ پوځي هڅې تاجك شمالي ټلوالې ته اجازه ورکړي. چې د افغانستان نیمايي. شمال پاك کړي او کابل ونیسي. پښتانه به بیاتوټې. ټوټې پاتې اوکمزوری نظامي ځواك به لېري اودغه کاربه تاجکـان زړور کـړي چـې دپښتنوسـیموته ورننـوځي اودطالبانولـه غورځېدودمخـه سیاسي ګټې اوپخوانی حیثیت لاسته راوړي. دغه ساز د واشنګټن په یو شمېر کړیو کې هم ډېر غږېده. په ځانګړي ډول د دولت په ریاست او ملي امنیت د شورا په یو شمېر دفترونو کې.
که چېرې شمالي ټلواله په خپل ځای کې پاتې شي. نوموړکولای شوچې په سویل کې دپښتنودقابلیت په لوړولوباندې تمرکزوکړو. په همدې مهال موږکولای شـول چـې طالبـان ددوی ثابتونظـامي هډوبانـدې داساسـي بمبـارۍ پواسـطه کمزوري کړو. بیا د څو اونیو په اوږدوکې وروسته له دې چې (سي. ای. اې) ته دطالبانوپروړانـدې دپښـتنودمقاومت دراغونډولوفرصـت پـه لـاس ورغلـی وای. نوموړکولای شول چې دهېواد په کچه د بمبارۍ منظم او انسجام شوی کمپاین مو پیل کړای وای.
دغـه کـار بـه پښـتنو تـه لـه طالبـانو څخـه وروسـته د ښـه نظـامي موقعیـت د ترلاسه کولو فرصت ورکړی وی. د حالاتو له تعبیر سره سره ډېرې ستونزې وې او د دې سـتونزو یـوه برخـه دا هـم وه چـې د طالبـانو ځـواك پـه قـانوني ډول کـوم جوړښت نه درلود . کوم ځانګړی مرکز یې نه لاره چې تر بمبار لاندې نیول شوی

وای.

د ثابتو نظامي تاسيساتو بمبار لکه د اکمالاتو ډيپوګان. د موټر جوړولو اسانتياوې او په وروستنۍ برخه کې د پوځ متمرکز کول به ډېر لږ يا هيڅ تاثيرڅکه ونلري چې د طالبانو ځواکونو زياته برخه په شمال کې راغونډ وو او د شمالي ټلوالې سره مخ وو.

داکټوبرپه دريمه مې يوليك وليکه چې په هغه کې د دريوساحو ارزښت ټاکل شوی واوخپل نظريات مې زموږدپوځي هڅواو په شمال کې د طالبانو په وړاندې د بمبارۍ د اړتيا په اړه پکې راونغښتل.

دساحې ټاکنې چينل Channel (دفتر) يوبې جوړې اود سي. ای. اې د مشر په شمول يو اوږد مهاله تاسيس شوې پروسه ده چې د هغې له مخې په ساحه کې شته سي ای اې افسران کولای شي چې د خپل لاس لاندې سيمه کې د ستونزې په اړه شخصي ارزيابي وکړي او رپوټ ولېږي.

دغه رپوټ د ځارګره رپوټ په توګه وپشل کېږي. نو ددې لپاره د واشنګټن د کړنلارې جوړونکې ډلې په منځ کې په پراخه ډول ګرځي راګرځي. دغه کله کله کارول کېږي. نو په دې اساس دغه ساحوي ارزيابې مهمه اغېزه لري.

هانك سي راته وويل چې زما څېړنې د مرکزي استخباراتو سي ای اې د مشر لخوا په صحيح ډول منل شوی خو شونې وو چې خبرې اترې به دوام وکړي ځکه چې د مختلف پوځي ځواک لاس ته راوړنې د هغوی په وړاندې د شته خطر سره پرتله کېدلې.

ماته ويل شوي وچې شمالي ټلوالې باندې فشار راوړم چې هغوی په خپلو موقيعتونو کې ترهغې چې دمتحده ايالاتو د پوځ لخوا د عمل ترسره کولو په اړه پرېکړه نه وي شوي. مقاومت وکړي خو سره له دې بياهم ددغه کارترسره کېدلوځانګړی وخت نامالوم دی.

موږ پنجشېر ته د ماموريت لپاره د امريکې ځانګړو ځواکونو ډلې ته هم سترګې په لار و چې موږ سره يو ځای شي.

موږ پوهېدو چې پنجشېرکې د ډلتې (ځانګړی ځواك. ژ) ځواك کارکوونکي دهغې جوړلو اوله درې څخه ددوی په واسطه دطالبانوله هاخوادالقاعده دمشرانوپرضددېرغل کولوپه سرهم خبرې اترې روانې وې. ښايي د امريکې دځواکونود اې ډله به رالېږل شوې وای. که څه هم چې ددوی راتګ دځانګړي ماموريت څرګندونه کوله. خودوی غوښتل چې کورنيوځواکونوته زده کړه ورکړي اوکه ښايي دلومړنيوکرښوپه اوږدوکې دلايزرټاکل وکړي.

دنورو قطعواومختلفودندوپه اړه هم خبرې اترې روانې وې خوپه ساده ډول دامريکې دپوځ ډلې په افغانستا ن کې په داخل کې دامريکې دپوځ په رول سره

هوکړې ته نه رسېدل. دکړې وعدې سره سم نورې ورځې په داسې حال کې په تېرېدوويل چې زمورافغان کوربه به په تکراري ډول دامريکې دپوځ راتګ اويادذوی لپاره دهغې څخه نـورمهم دبـم غورځـونې کمپـاین دپیـل کېـدودخت پوښـتنې کولې.

داونی په تېرېدوسره په شمال کې هواپه بدلېدووه. داکټوبرپه څلورمه نېټه په داسې حال کې راوېښ شـوم چـې سوړسـهارچې تېزبادونه ورسره مـل وو او په شـمالي غرونوباندې دبـاران وربشـتونواوپه لـوړې ارتفـاع دواورې وروښـت رپوټونه وکړل شوي و.

ژمی په تېزۍ سره راروان و. په ځانګړې ډول په لوړوغرونوکې په همغه سهارد درې په شمالي برخوکې دچورلکې لپاره دکوزېدومهال دټاکلوسفرته دپای ټکی کېښودل شو.

په پوره ډول به دژمي په راتګ سره دغرونوغاښي بند شي. په شـمال کـې بـه د سړکونو کار ودرول شي د ډېرو مشکلاتو ډك او د ملك پـه نيمايي شمالي برخه کې به هوايي عمليات د خرابې هوا له امله له خنډ سره مخ شي.

په عنعنوي ډول ژمی په شمال کې دجګړېزوعملیاتودکچې راکمېدنه اوددوه اړخيزوراکټي او توپچي جګړې دبدلېدنې په مانا وو. چې ځمکنـی ځـواك پـه مـوثره توګه نه شوای کولی. که چېر ې شمالي ټلوالې ددوی د کرښو څخه بهر شـوی نه وای. کابل يې نيولی نه وای. او د لوېديځ په خوايې د راتلونکو ځو اونيـو پـه جريـان کې فشار نه وای راوړی. ښايي چې دغه فرصت تر پسرلي پورې ځنډېدلی وای. د هانك لخوا د شپې نا وخته ټليفون د امريکې د پوځ د جګپوړو په منځ کې ګډوډي او حيرانتيا تصديق کړه.

هانك وويل چې په تامپه (دځای نوم دی) کې د ځانګړو عملياتو د مشرانو لخوا هغه ته ويل شوي وچې زه بايد ددغه ډلې مشرتوب هم وکړم او رسماً د ځانګړو عملياتو ځواك په پنجشېر کې له خپل ګروپ سره د يو ځای کېدولپاره دعوت کړم. زه په خپل ځواب کې ډېرنرم وم. دوی به وغواړم چې سره يوځای شي؟

موږ خـو هـر يـوې کړی. ډلټه ځواك. ځـانګړی ځـواك. سـېل ځـواك او خـړ ګيـډېږ ځواك ټولـو تـه سـوال او د هغـوی څخـه غوښـتنه وکـړه چـې زمـوږ سـره يـو ګـروپ ولېږي.ښاغلی ته وانك دغه حالات له واکه وتلي ښکاري. موږ بايد دغه ګډوډي له منځه يوسو.

دا خو هغه څه نه دي چې زه يې له پنجشېر څخه حل کړم. ما خو تبليغ کړی و. هانك زما په اندازه پنجشېر تـه د ځـانګړو عمليـاتو د ځواکونـو د لېږلـو ځنډېدلو او دبمونودغورځولوکمپاين چې د اکتوبر د اوومې نېټې په ماښام پيل کېدل. هوکړې ته دنه رسېدلو له امله سر درد شـوی و. هانـك دوه ښـه خبرونـه درلـودل.

هانك وويل چې دغه يوثابت تاريخ و. د امريکې د پوځ د سستيا له امله دجګپوړوکړنلاره جوړوونکيوماموريتونوپه منځ کې ناهيلي راپيداکېدله اوپه ښکاره جنرال ټامي فرانك په اوومه نېټه دبمبارۍ دپيل کېدوهوکړه کړې وه. که چېرې نېټه په رښتياهم ثابته وي. نودايو ښه خبرو.

بل مانه غوښتل چې شمالي ټلواله دبمبارۍ دځنډېدوله امله يوځل بياهم خواشيني کړم. دالفاټيم ځومشران. له قرارګاه څخه د سي ای اې دويم ګروپ تاشکندته داکتوبرپه څلورمه نېټه سهارمهال رسېدلی و. ترراتلونکي اوونۍ پورې به دغه ګروپ سره راغونډېده اوبياباييددجنرال دوستم له اوزبك توکم ځواکونوسره چې دمزارشريف په سويل کې جنګېدل يوځای شوی وای. په تاشکندکې دسي ای اې افسرانوله جنرال دوستم سره ځومياشتې وړاندې اړيکې نيولې وې اوداړيکې له بريدڅخه ډېروړاندې نيول شوي ودالفاډلې اړيکې له دوستم سره ورتګ لپاره لاجريان درلود.

دالفاډلې مشري آر جې لخواپرمخ بېول کېده. افسرله آر جې سره ماپه ۱۹۸۸-۱۹۹۰ پورې په اسلام بادکې کارکړی و. نوموړي له يوشمېرمجاهدقوماندانانوسره کارکړی و. دقومي حالاتوله ځرنګوالي او د دري ژبې سره يې ښه بلدتيادرلوده. له دې امله هغه په ساحه ارزښتناك افسرواودامريکې دپوځ دپځوانۍ (Ranger) له افسرۍ (يو ډول ځانګړی ځواك. ژباړن) اونظامي تجربې له مخې د جنرال دوستم او د هغه له قوماندانانوسره چې د وروس لخوا تربيه شوي وو د کار کولو ښه وړتوب درلود.

ريك اومادبمبارۍ دکمپاين تاثيرپه باره کې خبرې وکړې او د پنجشېر درې څخه بهر دکابل جبهې سره نږدې مودعملياتودقرارګاه دممکنه بدلون لپاره فکروکړ. که چېرې دبمبارۍ کمپاين سخت او دوامداره شي. ښايي چې د طالبانو کرښې په چټکۍ سره کمزوري شي. نو موږ غوښتل چې هلته نږدې او د شمالي ټلوالې کړنې مو له نږدې انسجام او څارلی وا ی. دشپې په نهو بجومو له عارف سره دبمبارۍ دکړنې اويانشتوالي په باره کې خبرې اترې وکړې. زه خوښ وم چې عارف ته مې وويل چې په پای کې داووم اکتوبرپه ماښام به کاروشي. يانې بمباري به پيل شي. هغه دځان دګټې په خاطرموسکاوکړه او ويې ويل چې دغه خبربه دفترته تررسېدوروسته جنرال فهيم ته ورسوي.

داښکاره وه چې ددويم اکتوبرله خبروروسته عارف داځل د(ته ودرېږه چې څه پېښېږي) عملي کارلپاره انتظارو. ماورته وويل چې دبمبارۍ دپيل څخه وروسته موږغواړوچې خپل دفترله درې څخه بهرسويل لورې ته ولېږدوو. هغه دا ومنله او ويې ويل چې دجبل السراج په خواوشاکې به وړ ځای ورته وګوري.

موږ يوڅه نورموضوعات چې په تېروليدنوکې پرې سرسري تېرشوي وو. هم

تربحث لاندې ونیول. دعارف افسرانودطالبانوپه کربنوکې له قوماندانانوسره پراخې اړیکې درلودې. دهغوقوماندانانووفاداري له طالبانوسره سرسري وه اودسیمه ییزوشرایطواوګټوله مخې چې دوی ترې لاسته راوړلای شوې فکرکېده چې داګټونکي خواوه.

دطالبانوموقعیتونوپرواندې دامریکې دبمبارۍ دپیل کېدوله امله دوی هم په نښه کې راتلل. ددوی وفاداري نوره هم کمزوري کېده او د پام وړاندازه پیسوورکړه به ټول دغه ډول قوماندانان دشمالي ټلوالې سره یوځای کړي. زه هم ددغې جالبې پانګې اچونې سره موافق شوم.

موږ د شلټر نوموسیسې کسانوپه اړه چې طالبانوپه کابل کې بندیان کړي وو. هم خبرې اترې وکړې په کال ۲۰۰۱ کې داکتوبرپه دریمه نېټه طالبانودشلټرنودبشري مرستې موسسې ټول مامورین دعیسویت دکتابونودخپرولواوعیسویت ته دمسلمانانودرابللوپه تورونیول. شپږ غیرافغانانوکسانوله ډلې څخه یې څلوراروپایان اودوه امریکني ښځې چې هیدي میرسر۲۵ کلنه اوډاینه کیوري ۳۰ کلنې په شمول نیولي وو.

دغه ډله دکابل په زندان کې اچول شوي اوتراوسه هلته موجود وو. دطالبانودمشرانولخواچې ویل یې. دغه بهرنیان به دمذهبي تبلیغاتودجرم په کولومحاکمه شي.

هغه جرم چې دطالبانودروڼ قانون لاندې یې دمرګ جزاوه. د 9/11 له پېښې مخکې ددغوبندیانولپاره نړیوالودخلاصون هڅې ناکامه شوي وې. د امریکې د بمبارۍ له پیل سره ددغوکسانودمصونیت اندېښنې نورې هم زیاتېدې. عارف وویل چې هغه دطالبانوداستخباراتواوامنیت په دننه کې دجګپوړوسره اړیکي لري اوفکریې کاوه چې هغه ددغوبندیانودخلاصون لپاره پټې مذاکرې دپیسوپه بدل کې پیل کولای شي. سره له دې چې موږزیاتومالوماتوته اړتیادرلوده. ماورته وویل چې هرڅومره په بیړه چې کولای شي. هومره زردې دغه کارپیل کړي. دغه موضوع دراتلونکوڅواونیوپه جریان کې په داسې حال کې چې موږغوښتل دبندیانودخلاصون لپاره پلان جوړکړو. دلیدنوکتنوفرعي ببولاله وګرځېده. ماعارف ته ددغودووهڅودپیل کېدولپاره 250,000 امریاکایې ډالروکړل.

# يـويـشتم خـپـرکـی

داووم اکټوبرپـه سـهارميوري. پيلوټانواوبـك د هغـو دېرشـو کسـانو سـره چـې دفهيم پواسطه زمورسره دپلټنواو ژغورنې د دندې دترسره کولولپاره گمارل شوي وو. وليدل.

مورنه پوهېدوچې دخه هيله وکړو. خوفهيم وويل چې دغه کسان ده دلښکرله بهترينوکسانوڅخه راخوبښ کړي. خوهغه څه چې بياميوري وليدل. هغه بدل وو.

د دغودېرشوکسـانوله جملـې څخـه ډېـر د نومـوړې دنـدې دترسـره کولولپوالـه ښکارېدل. خوڅلوروکسانودغې دندې ته له گمارنې سخت سر وټکاوه. نـو ميـوري هم سمدستي ولېږل.ډېريوکسانوله ځانسره کلاشينکوفونه راوړي وو خـوهېڅ يـوه د وسـلې لپـاره مهمـات نـه درلـودل. شپږوکسـانوهېڅ وسـله نـه درلـوده اودرېيوکسانوبوټان نه لرل. محلي جوړې شوې پلاستيکي څپلی يې په پښو وې.

لـومړني څوسـاعته ميـوري دکلاشـينکوفونواو د هغـوی لپـاره د مهمـاتو او د بوټونو د اخيستلولپاره د بوديجې په لگښت تېرکړل. سره له دې مو بياهم له فهيم څخه وغوښتل چې دغو شپږ ويشتوکسانولپاره يونيفـارم. بوټونـه (مصرف بـه يـې زمورپه اوروي. ليکوال) برابر کړل.

په لومړۍ ورځ مې داېس اې آر يا د پلټنواو ژغورنې  د ډلې زده کوونکو گـډوډ گـروپ تـر سـترگو شـو. بـك دچـورلکې پـه وروسـتۍ برخـه کـې د اېـس اې آر  د عملياتولپاره د دوه گرديو دروازو د ليرې کولو د هدايت کار ترسره کـاوه او ميـوري دغه گروپ په دوو. ديارلس کسيزوگروپونو ووېشه. د هرې ډلې د پرمخ بېولولپاره يې افسران هم وټاکل. ميوري گروپونوته د چورلکې د لومړنيو تجربود حاصلولو. د چاپېريـال جوړلـو او د لاسـونو پواسـطه د اشـارې کولـو او د وېشـتلو ډيسـپلين زده کړه ورکوله.

زده کـوونکي ډېرلېوالـه وو او د ميـوري دخوښـولولپاره يـې ډېرزيـار گالـه. تـر مازديگر پورې اساسي زده کړې وکړې اوميوري کورته د گټورې ورځې د درلودلو له امله خوښ راوگرځېد.

ميوري راتلونکي دوې ورځې همدې ته ورته د ژغورنې تمرينونـه تـر سره کړل. چورلکه به په هوا شوه او د ښـکته کېدلو پـه سيمه کـې بـه يـې پـه اورده او ټيټه کړۍ کې په گرنديتوب سره الوتنې کولې او بيابه په ارامه ښکته شوه او وروستۍ لمبې (دپاملرنې لپاره کمياوي رڼابلول. ژ) بـه پـه داسـې حـال چـې پـه چورلکـه بـه دوړې راتاوېدې. گروپ دچورلکې وروستنۍ برخې ته دناڅاپه ننوتولولپاره راباله.

دميوري ترڅار لاندې د ډلې مشر به له چورلکې څخه بهر ټوپ کړاوخپلـې ډلـې ته به يې د دوی دموقعيتونوپه لورې لارښوونه کوله.

له دې وړاندې دوو یادرېیوتنوافغانانوپه چورلکه کې سفرکړی واودغه تمرینونه به گروپ تر ډېره بریده په خندا او خوښۍ کې ترسره کول. د تمرینونو په جریان کې کومه بده پېښه رامنځته نشوه او د اکتوبر د هنم په ماسپښن میوري دغه گروپ د بېړنیو پلټنواو د ژغورنې د عملیاتو د بریالي ترسره کولوجوگه وباله خو په دې شرط چې دامریکې ترڅارلاندې یې ترسره کړي.

زموږ چورلکې او د امریکې د هوایي ځواك لخوا د ژغورنې او پلټنودعملیاتوپه گډه ترسره کولوکې لویه ستونزه په افغان اسمان کې دامریکې دپوځ او زموږ د چورلکې ترمنځ د اړیکو نشتوالی و.

موږبایدله اواکس دهوایي خبرداري اوکنټرول بېسیم له چورلکې سره چې د دغې هڅې دنده یې پرغاړه درلوده اوله سي ای اېس (نېږدې هوایي مرسته) سره چې د غورځېدلیوپیلوټانواوهوایي ساتنه به یې کوله اړیکې درلودلې وای.

د دغې اسانتیا د نشتوالي له امله ناشوني ښکارېده چې امریکایي پوځ به زموږچورلکې ته د دغه ژغورنې په ماموریت کې د برخه اخیستلواجازه راکړي.

موږڅکه بختور وو چې د ژغورنې ماموریت ته هېڅ اړتیاپیدانشوه. د اکتوبر میاشتې تر نیمایي پورې دامریکې پوځ د ژغورنې او پلټنولپاره خپلې وړتیاوې پیداکړې. یوه چورلکه او غړي یې په شمال کې په ازبکستان کې ځای پرځای کړل اویوه چورلکه یې په سویل کې د پاکستان دکوېټې په عمومي سیمه کې چې جیك اباد نومېده ځای پرځای کړه. نو موږ د اېس اي آر یوگروپ بېرته جنرال فهیم ته وروسپاره او بل دیارلس کسیز گروپ مو د هوایي ډگر په شاو خوا کې د نڅاپي پېښو لپاره وساته.

د اکتوبر په اوومه د هوایي بمبارله پیلېدو وروسته پایلو ته په انتظار سره تېره شوه. په همدې وخت کې کریس اوسټان گلبهارته له سیاف سره د بیا لیدنې لپار ه لاړل څو د هوایي ډگر دکارجریان وگوري. دوی په یوه نیمه بجه بېرته راوگرځېدل او دا خبر یې راوړ چې هوایي ډگر نږدې د تیارېدو په حال کې دی .

دوی هلته په ناڅاپي سفر ټول مامورین دسخت کاراودندې دترسره کولوپرمهال لیدلي وو. دغه مامورین دبدلون لپاره دامریکې یې وخت (پخپل وخت کارکول. ژ) تابع شوي وو. موږهریوپه ماسپښین کې دخپل سامان په برابرولویوڅه وخت تېرکړ. څو لومړی کرښې ته دسفرتیاری ونیسواودبمبارد کمپاین په جریان له نږدې څخه وڅارو. په هغه وخت کې موږفکرکاوه چې دبمبارتمرکزبه دکابل په شمال کې په لومړیوکرښواوله تخارسره په لومړیوکرښوباندې وي.

دڅوورځوپه اوږدوکې ددرانده بمبار اوټکولوله امله شمالي ټلوالې هم دطالبانودکرښودماتولوهڅې پیل کړې. په همغه ماسپښین جان محمد. ما ته راغی او ویې ویل چې هغه کولای شي زموږپه کورکې دسټلایټ اوډېش

تلویزیون نصب کړي. دبي بي سي او سي اېن اېن خپرونې به تعقیب کړای شو. مورهك پك شو. سټلایټ تلویزیون په پنجشېرکې؟

هو شونې و. دېش انټن همدلته محلي د المونیموله پاتې شونوتختوځخه جوړشوی وچې د لیرې ختیځ ځخه راوړل شوی اوکړې لښتې یې درلودې ځوکاسه کلکه ونیسي. برېښنایي توکي یې له تاجکستان ځخه راواردشوي وو. دغه برېښنایي توکي په اسانۍ سره نه ترلاسه کېدل او قیمتي هم و. خوجان محمددوه مکمل سېټونه پیداکړي وو.

د ځوساعتونوپه وخت کې کېدی شول چې سټلایټ ټلویزیون فعال شي. مورځکه ډېرلېواله ووچې دخبرونوټري وو. له قرارګاه سره اړیکې یوازې د دندې اړوندې اړیکې وې او د تروریزم پر وړاندې دجګړې په اړه د پېښو او په امریکې کې د 9/11 سپټمبر وروسته د پېښوځخه بې خبر وو.

له خپلې ژمنې سره سم جان محمدسره له ځلور یا پینځو افغانانو راغی چې د لګړوسرونه او بېخونه. چې د ټلویزیون سیم نه بلکې کباړ ښکارېدل . له ځوساعته کار وروسته ټلویزیون خپل شکل لاسته راوړ. پاپي له دوی سره دسیم دکیبلوپه برابرولوکې مرسته وکړه. ځو د جنراټور د برېښناپه نشتوالي کې هم کاروکړي.

بك چې له میوري سره د سار(SAR) له تمرین ځخه راوګرځېد. هغه هم دغه مرستې ته ور ودانګل. هغه خو په ژبه نه پوهېده له مستریانوسره دسرپه ښورولود(ریسیور) یاځپې اخیستونکي ماشین په برابرولوهوکړې ته ورسېد.

کله چې دشپې په نهوبجوهانك په کابل باندې دلومړي بمبارۍ ځخه ویلي وو. موږ ځوکسان بام ته وختلواودسویل ترانکې په لورودرېدو. ځو د کابل په لورې بې ځنده منظره ولرو. مورفکرکاوه چې دبمونوپړکې چې د کابل پرسر په وریځوکې به انعکاس کوي ووینو. ډېربه ونه وینوخودهرکلي ور و.

ریك هیله درلوده چې ټلویزیون به دبمبارځخه مخکې تیارشي او بیا وکولای شي چې د سي اېن اېن له لارې یې وګوري. دادقیقاً هغه ځه ووچې په 1991 کال کې موږ په ریاض باندې دسکډمیزایېلودبرید پرمهال وکړ. کله به چې د سکډمیزایېل غږ راغی نوسملاسي به مو سي اېن اېن ونیواودسکډ لوېدل به مو ولیدل.

دټلویزیون انځورونه او د چاودنو غږ زمااو بېټسي (دلیکوال مېرمن. ژ) لپاره د ډېرې نا ارامۍ سبب ګرځېده. مانښام نهه بجې راورسېدې اوتېرې شوې لس دقیقې وروسته بیاهم ځه نه و. یوتېز زېړرنګه پړك دکابل په لورې ترسترګوشو. ماهیله درلوده چې د چاودنې غړمبهار واورم خوموږ ډېر لېرې وو. سره له دې چې موږپه خپل منځ کې نارې وهلې اویواوبل موپه شاټپول.

سملاسي ځونورو پړکونو هم لیرې اسمان وځلاوه. ریك ته مې مخ ور واړاوه.

سګرېټ مې له جيبه راوويست اوريك ته مې ور وغزاوه. دغه صحنه د لمانځلووړوه.

دسپټمبر له يوولسمې نېټې وروسته له يوې مياشتې څخه په کمه موده کې موپه کابل کې د دوی پروړاندې بمباري پيل کړه. په هغو طالبانواوعربوباندې چې اسامه بن لادن اودهغه جګپوړوساتنه يې کوله. بمونه غورځول.مادويم سګرېټ راواخيست اود ښه ژوندپه هيله مو دودکړ.

له انګړڅخه غرمبهار راغی چې دلاسونوپه پړکولوسره يې ولمانځه. د ټلويزيون غرمبهار چې جان محمدراپيداکړی و. افغاني مستريان او زموږ افغان کارکونکو په انګړ کې خواره واره ووا و د خوښۍ خبرې يې کولې. موږ هم ورګډ شو اوکه رښتياووايم په دغسې ځای کې دسي اېن اېن ټلويزيون په ليدلوهك پك شوم.

د څو دقيقوپه اوږدوکې تازه خبر وچې ويل يې: په افغانستان کې د امريکې پوځ لخوادطالبانواوالقاعده پروړاندې دبمبارۍ کمپاين په نهو بجو پيل شو. خوبدبختانه دچاودنو ژوندي انځورونه نه وو.

ممتازراڅرګندشواودلمانځلولپاره موروغبرسره وکړ. هغه موسکی او خوښ و.

د طالبانو پر وړاندې مود بمبارۍ داغبز په هکله مو خبرې سره وکړې. هغه غوښتل چې انجينرعارف وويني څودغه ښه خبر وروړسوي. موږ د يو ساعت لپاره کېناستو. سګرېټ موڅکول اوسويل ته د لومړۍ کرښوپه لورې دسفرپه اړه سره غږېدو.

موږ په خپل پلان کې نيمګړي وو. داسې ښکاره شوه چې داکټوبرپه اوومه نېټه دبمبار دګر بې اغېزې ښکارېده. په راتلونکي سهارخبرشووچې د امريکې پوځ د هېوادپه کچه (31) هدفونه ويشتلي وچې له دغې جملې څخه په کابل کې يوازې درې بمونه غورځول شوي وو. د دغوهدفونوله جملې څخه زيات يې مهم ولې کم ارزښته وو. لکه د ټانکونو د بيا جوړولو ورکشاپونه. دلښکرو د لېږلو وروستي ډګرونه او د خوړو اوتوکيوګدامونه. خو د لومړۍ کرښې جنګي موقعيتونه يې هېڅ ويشتلي نه وو.

انجينرعارف د سهار په اووبجوپه غيرمعمولي ډول لده سره دليدنې لپاره لږ د وخته راغی.

که دعارف له خبرې څخه موانـدازه اخيستلې وای. دشمالي ټلوالې دلوړپوړوچاروااکوخپګان دلومړۍ شپې له بمبارۍ څخه له ورايه څرګندېده.

عارف وويل چې هغه دبمبارۍ دپيل له امله خوښ دی خوله کابل سره دلومړۍ کرښې قومانـدانانودعرب اوطالبانودموقعيتونوپروړانـدې دهېڅ بم دغورځېدلورپوټ رانه کړ. يوګدام اود پوځي موټرودترميم اسانتياوې يې له منځه

وړي دي.

په لومړیوکرښوکې دعارف کسان دمخابرې دمحاوروپه ثبت کولوکې اوږده تجربه لري. هغوی دطالبانوداېچ اېف مخابروله لارې خبرې اورېدلي وې اوپه ټيټه کچه یې دطالبانوپه منځ کې دسکون خبر ورکاوه اودبمبارۍ پایله محدوده ښکارېده.

دعارف په دعاسره مې ستان اوډاکټرجنرال بسم الله خان قرارگاه ته د څو ورځولپاره ولېږل. مورغوښتل چې لومړۍ درجه څارگر مالومات دبمبارۍ دپایلې اودبمبارلپاره دراتلونکیوهدفونوپه باره کې ترلاسه کړو.

ستان اوډاکټرددغه اوږده اوسخت سفرباندې دسهار یوولس بجې حرکت وکړ. کله چې ددوی موټرله خلاصې ساحې څخه چې دگدام خواته وه تېرشواودبارك كلي په لورلاړل ماوویل چې دگروپ یوې برخې د سویل په لورې حرکت وکړ.

که چېرې دبمبارۍ حرکت زیات نشي نودوی به یوازېني خلك وي چې هغه خواته دیوڅه وخت لپاره موجودوي.

هانك په همغه ماسپښین سي ټي سي ته دتروریزم پروړاندې دمبارزې ریاست ته ټلیفون وکړ. هغه وویل چې دولس مشرلپاره دسهارغونډه. چې لده سره ډې سي ای هم په کې گډون کړی ودبم غورځونې دکمپاین دپیل کېداپه اړه وه. او ویې ویل چې شمالي ټلواله دې ترڅلورویاپینځوورځولپاره په دغه ځای کې تم شي. ځوطالبان دبمبارۍ پواسطه کمزوري شي.

ماهانك ته وویل چې که چېرې دتېرې شپې هڅې زموروروستۍ هڅې وي نودطالبانودجنگیالیوپروړاندې دبمبارۍ دډېرې اغېزې هیله بایدونکړي. ماورته وخوانۍ ارزیابې بیاتکرارکړه اوومې ویل چې دشمالي ټلوالې ځواکونه دامریکې دمهمې اولویې مرستې په نشتوالي کې ښکاره دومره ځواکمن نه دي چې له خپلوموقعیتونوڅخه رابهرشي اودکابل په لورې حرکت وکړي.

هانك وویل چې دکابل دنیولولپاره پرېکړه دکرنلارې دجوړونکې ټولنې په منځ کې په خپله یوبحث دی. پاکستانیان. روسان اوایرانیان ټول په ښکاره ډول په کابل باندې دتاجك پلوه حکومت بریالي کېدلواو ورسره دوینې تویېدلوله امله اندېښمن و.

په واشنگټن کې زیات وخت په دې تېرېده چې ملگري ملتونه اجازه ورکړي ځودیوازادکابل واگې په لاس کې واخلي اوټول مخالف ځواکونه. تاجك اوپښتون له ښارڅخه بهرپاتې شي. مایوازې کولای شول چې خپل سر په حیرانتیاسره وښوروم. ما او هانك په دې هیله خدای په اماني سره وکړه چې راځه (نن شپه څه پېښېږي)

انجینرعارف دشپې په نهوبجوددویمې غونډې لپاره راغی خوداځل زه اوهغه

دبمبار په مضمون باندې ونه غړېدو. زه دعارف نظرته غوږشوم چې هغه څنګه کولای شي په هېوادکې دطالبانوترولکې لاندې سيموکې عمليات ترسره کړي.څوبن لادن اودهغه لوړپوړې چارواکي راونيسي. عارف وويل: دی په دې فکردی چې دمجاهدينوپخواني قوماندانان چې دمسعوداودشمالي ټلوالې سره له پخواراهيسې همکار و. پدغوځانګړودندوکې چې موږتربحث لاندې نيولې وې همکاري وکړي. خودطبيعي خوی په لړلويانې دپيسوپه بدل کې. ماله عارف څخه وغوښتل چې له هغوقوماندانانوسره چې دی پرې باورلري اړيکي ټينګې کړي اوله هغوسره وغږېږي چې هغوی داسامه اودهغه دجګپوړوپروراندې څه کولای شي.

عارف ژمنه وکړه چې په هغه ماښام دطالبانوله کرښوڅخه هاخواپيغام لېږدوونکي ولېږي. څوله هغوقوماندانانوسره چې دکابل په ختيځ کې اوسېږي اړيکې ټينګې کړي.

دعارف استخباراتوداسامه بن لادن لوړپوړی چارواکی ايمن الظواهري هلته په ګوته کړی و. موږ د شلېزنو د بنديانوپه اړه بياهم بحث وکړ. عارف وويل چې دی دکابل استخباراتو د امنيت د ودانۍ له لوړپوړي غړي څخه د هغه په خوښه د بنديانو د خلاصون په اړه دمعاملې کولودځواب هيله لري.ماعارف ته وويل چې دغه موضوع ته جدي پاملرنه وکړي. دبمبارۍ په پيل سره که طالبان هرڅومره ګډوډهم وي دامريکايي او اروپايي بنديانوسره به سخته کړنه وکړي. کله چې عارف لاړ زه بېرته خپل دفترته لاړم. څوورځې تېرې شوې پېښې قرارګاه ته ور ولېږم.

ريـك اوکـريس مـې وليـدل دواړه ناسـت اومخونـه يـې دپنجشـېرپه دسمالونوباندې نيم پټ کړي دي. کرېس درېيو شمعوته اور ورکړی و څو دغه مضر بوی چې له پاپي څخه راروان و له منځه يوسي (ليکوال دلته دپاپي دمعدې دخرابوالي له امله د بدبوی يادونه کوي. ژ) له بده مرغه ماهم بله چاره نلرله نواړشوم چې له دوی سره مېزشريك کړم. مخ مې په دسمال پټ کړ او کريس مې وپوښته چې څومره شمعې پاتې دي؟هغه وويل چې دوه بکسونه نورهم لرم. ښايي چې ځلوېښت دانې وي.

ماپاپي ته وروکتل او ويې ويل چې ښايي دغه تعدادمويوساعت يازيات وخت لپاره کافي وي. زه بايدنن شپه په بيړه رپوټ وليکم. پاپي هم په خنداشواو زه هم په خنداشوم.

## دوه ويشتم څپرکی

دتېرې ورځې دحالاتوپه جاج سره راتلونکي ورځ چې داکتوبر لسمه وه. ډېره

اړينه وه. ورخ لـه سپکوپېښوسره پیل شـوه. یـوه دبـم غورځـونې ستراتيژي اوبل افغانستان ته دځانګړوعملیاتودپرسونل ننه ایستل.

ورځ دیخ حرارت اودوریځوله ډك اسمان سره چې دباران ګواښ یـې کاوه پیل شوه. دسهارله اووبجوځخه لږمخکې مې یوه پیاله کهوه جوړه کړه اوانګړته ووتلم څودبېستې سره دپرمختللـي جیوستېشنري سټلایټ ټلیفـون دسیسټم لـه لارې خبرې وکړم.

ماله هغې سره دبل سیسټم له لارې چې پخوانی اریډیم ( یو ډول کیمیاوي عنصر چې ژېړرنګ لري او د فلزاتوپه جوړولوکې ترې ګټه اخیستل کېږي. ژ)اوټېټ مـدارلرونکی سـټلایټ و. څـوځلې غږېـدلی وم. دغـه ټلیفونونـه د سـر درد واو د سټلایټ سره وصل یې ډېر وخت نیوه. کله به دې چې ټلیفـون ته ځواب ورکاوه نوتماس به قطع شو. له دې سره سره مې لد غه سیسټم څخه دلومړي ځل لپاره ښه تماس ونیو. خود دغه سیسـټم دروښانوالي او قـوت لرلوتـه حیـران وم. تردې چې د دې غږمې واورېداو د هغې له فعالیتونو خبـر شـوم او د ماشومانوله حال احوال څخه خبرشوم اوتر دې چې زمـوږ درې سپي په څه حال کې و( ټول چت پوزي سپي و. لیکوال) خبرشوم اوخوندیې وکړ. ماهغې ته وویل چې که څه هـم وزن مې لـه لاسـه ورکاوه ښـه احسـاس مـې کـاوه. سیپرو (یوډول انتـي بیوتیـك دارو. ژ) ښه کارکاوه. مـادې تـه مشـوره ورکـړه چـې کلـه شـمالي ټلوالـه د دوی لـه دفـاعي کرښـوځخه راووزي. دکابـل پـه لـورې حرکـت وکـړي اوزه دامریکـې متحـده ایالاتونـه راوګـرځم نوموږبـه پینځـه یاشـپږورځې پـه نـوي اورلـین کـې تېـرې کـړو. موږدواړه هلته نه ووتللي. که څه هم چې ځوځله مودغه ښارته دسفرپه اړه خبرې کړې وې.

بېتسي هم له دغـه نظرسره موافقه شوه. دبهرنـي خدمت دوه کسان (مېړه اوښځه. ژ) له چاسره چې بېتسـي لـه اورده مهال راهیسـې ملګرې وه. لویزونـاکې تقاعد اخیستی واوپه باټن راګ کې یې کوردرلوداوپه نوي اورلین فرینچ کوارټرکې یې دوه چپرکټه اپارتمان درلـودچې دخپلورخصتیوپرمهال یـې ترې ګټه اخیسـتله. دوی مورته بلنه راکړې وه چې هروخت مـوږ دغه ځای تـه پـه سفر راشـو. کولای شوچې لـه دغـه ځایـه ګټه واخلـو. دغـه نظرمـوږ د مثبتـې هیلـې راتلـونکې راکـړه. دبېتسي سره مې دالله په اماني پر وخت ښه احساس کاوه.

په همغه سهارکله چې زه دفترته ورننوتم اودتورې کهوې غټه پیاله مې ډکوله. زه د ریـك پـه لیـدلو حیـران شـوم. هغـه ډېرپـه قهراوخپـه و. پـاپي هـم هلتـه و او داړیکوکنټرول یـې کـاوه. ریـك دهغـه ټلیفـون لـه امله چـې د سي ټـي ایس یـا د تروربـزم پـر وړانـدې دمبـارزې ریاسـت نـوي جګپـوري افسـر فرانـك-اې کـرې واو دسـهارپه درې نیموبجـو یـې لـه خوبـه راپاڅولی و. چـې بیاسملاسي پـاپي ځـواب

ورکړی و ډېرپه قهرشوی و.

دغه موضوع (چې ریك یې له امله په قهرو) دهدف دکوارډیناتوموضوع وه اوفرانك – اې دسینټ کام[1] لخوا تر فشار لاندې و څو د دغوکوارډیناتوتصدیق وکړي. چې په هغه ځانګړوکوارډنیاټو کې ملکي خلك موجودوو. زمورګروپ بایدسملاسي تصدیق ورکړی وای چې موضوع همدغه ډول ده.

پاپي فرانك ته ویلي وچې دغه هیله ځکه ناممکنه ده چې زمورګروپ په هدف باندې دسترګولرلوظرفیت نلري. دغه منطقه نږدې پنځوس میله سویل خواته زمورله موقعیت څخه واټن لري اودلته خونیمه شپه هم ده. په دې خبره فرانك له حدڅخه زیات په غصه شوی و. اوښکنځل یې کړي و. ماچې دغه کیسې ته غوږنیولی و. زه هم په قهرشوم. دتېروڅوروځوپه تېربدوسره موږدسي ټي سي سره یوه اندازه ستونزې لرلې. دوی زمور ورځینی رپوټ اواستخباراتي رپوټونه چې مور ورلېږل نه لوستل. موږبه نن ددوی پوښتنې ته ځواب ورکړاوراتلونکي ورځ به یې دهمدغومالوماتوبیاغوښتنه کوله.

مور دوی ته دکابل په شمال کې دجګړې په کرښه دطالبانواوعربانودهدف موقعیتونه هم ورکړي و. دغه کوارډینات مودانجینرعارف له استخباراتي افسرانوسره چې زموردګداستخباراتي دفتر یوه برخه وه په ګډه اخیستي وواومورډاډه ووچې دغه کوارډینات اوهدفونه دقیق و. خوهېڅ امکان نه وچې مورهلته دملکي وګړونشتوالی تصدیق کړی وای. زموردشمالي ټلوالې کوربه ګانوداډ راکړ چې دکابل په شمال کې له دغه هواروسطحوڅخه ملکي خلك دطالبانولخواپه زور له خپلوکورونوشړل شوي دي خوپه دې هېڅوك هم نه پوهېدل چې خپله په هدفونوکې څوك موجودوو. دقرارګاه لپاره داحقیقت اومناسب نه وچې له موږېې د دغه اندازې د زیاتواونورومالوماتوهیله او د مالوماتودتصدیق غوښتنه کړې وای.ددغه دلایلوسره سره دفرانك یادکوم بل یوه قهرېدل دپاپي یازموږهریوه سره دمنلوورنه وه. ماریك اوپاپي ته ډاډ ورکړچې زه به دغه موضوع وروسته له دې چې په قرارګاه کې د ورځې کارپیل شي له هانك سره مطرح کړم.

مورګلبهارته هوایي سفرپلان کړڅوهوایي ډګر وګوروا وستیان او ډاکټر هم له ځانه سره راواخلو. خوایډ رپوټ راکړ چې نصیرزمورافغان پیلوټ له خپلوځواکونوسره په باګرام هوایي ډګر کې غږېدلی واو د الوتنې لپاره هوا ډېره خرابه وه. له کړکی مې بهر وکتل اوپه ډاډ سره باران ورېده. انجینرعارف په داسې حال کې چې باران ورېده راغی او خبر دا وچې دافغان شلېرنودیوه بندي

[1] سینټ کام : د جګړې پر مهال هغه دفتر دی چې د جګړې د پر مخ بېولو قومانده او اداره ترې ورکول کیږي. ژباړن

له پلارسره اړيکه ټينګه شوې وه اوهغه ومنله څو زموږ سره د ژغورنې په پلان نيولو کې مرسته وکړي. دغه سړی دخپل زوی سره دملاقات لپاره هره اونۍ دغه زندان ته ورتلو. عارف داده وچې دغه کس به دزندان دامنيت اودبنديانودځای په اړه مالومات راکړي. دغه سړی په هغه ماښام دلته راتلواوعارف هم موافق شوڅودغه کس زموږسره دليدنې اودمالوماتو لپاره وغږوي.

په دوديزډول دغه دافغاني وخت ثبوت و. افغاني وخت دقيق نه وي يوازې يو اټکل وي. دغه سړی دوه اويا ساعته وروسته راغی په هغه ماسپښين ما هانك ته دټليفون کولوکوښښ وکړخوهغه په غونډو کې بوخت واو دوی ويل چې ترناوخته به بوخت وي. زه قرارګاه ته د فرانك د بې ادبه خبرواوزموږد ليکونودنه لوستلوپه سرتر اوسه هم په قهروم.

ماغوښتل چې زه له هانك سره پدغه موضوع باندې وغږېږم نوزه څکه په انتظارپه اندېښنه کې کېناستم اودمهموموضوعاتوپه اړه مې رپوټونه ليکل.

ټيليفون وګنګېداودا زماپخوانی ملګری مايك و. هغه په ۱۹۹۶ کال کې په اسلام ابادکې زمامرستيال و. هغه دځانګړوعملياتودفرقې ساډ مرستيال و اوپه پنجشېرکې زما د وخت پرمهال يويا دوه ځله سره غږېدلي وو. زه حيران شوم چې هغه خبرې په دې پيل کړې چې قرارګاه خپه وه. په دې چې تراوسه مې افغانستان ته د ځانګړو عملياتو قطعاتو د ننوتنې لپاره ترتيبات نه ونيولي. هغې زه وپوښتلم چې ددغې ستونزې لپاره به زه څه وکړم؟

له مابېځې ورکه شوه. ماورته وويل چې زه ددغه موضوع سره هيڅ کارنه کوم. زه دلته په افغانستان کې دشپږو(سي ای اې) افسرانوسره ناست يم اودبهر دنياسره محدودې اړيکې لرم او دمرکزي قرارګاه سره اونوررونظامي قطعاتوسره په دې موضوع کې غيرمستقيم تماس لرو.

دغه دامريکې دپوځ ستونزه ده. دسپټمبر په ۱۹ له متحده ايالاتوڅخه زموږله سفرڅخه وړاندې موږله خپلوپوځي نمايندګانوڅخه تکراراً داشتراك غوښتنه وکړه. خودځانګړوعملياتوپخپل منځ کې دماموريت کولوپه اړه دومره شخړې وې چې پايله يې هيڅ وه. قرارګاه څه فکرکاوه چې موږد دوی د ستونزې په اړه څه کولای شول؟ څومره چې زه غږېدم هومره په قهرېدلم. مايك له ماوغوښتل چې له ډګروال جان ملهولاند چې دټاسك فورس ډګرقوماندان و. سره خبرې وکړو.

نوموړي غوښتل چې دعملياتوقرارګاه دکرشي خان ابادپه هوايي ډګرکې چې دازبکستان دتاشکندڅخه شمال لورې ته تقريباً سل ميله واټن لري جوړه شي.

مايك وويل چې زه بايددډګروال ملهولندسره په دې چې څنګه دځانګړوځواکونود اې ګروپ پنجشېرته راوړي څودژامې ماتوونکي ګروپ سره يوځای شي وغږېږم.

مایك ته ماوویل چې كه چېرې په قرارگاه کې چازموږرپوټونه لوستلي وي. دوی به وپوهېږي چې لاله پخوادډگروال ملهولنډسره دوام دارتماس لرو. ډگروال واضح وویل چې افغانستان ته دځانګړوځواکونو دلېږدولو واك او اختيار د سینټ کام اوسوکام یا د ځانگړوعملیاتوله امریت سره دی.

دهغه دتکراري وړاندیزونوسره سره بیاهم دغه ډول امر پیاده کول شونی نه ښکارېده. د دې څخه لابده یې داوه چې هغه په دې نه پوهېده چې څرگنده کړي چې داې گروپونودنده به څه وي؟ نوپه ښکاره توگه خو موږ دلته په ساحه کې دغه ډول موضوعات نشول حل کولای. ما مایك ته وویل چې که رښتیاووایم دغه ټول چټیات دي. داهغه موضوع ده چې هلته په قرارگاه کې دکړنلارې دټولنې په منځ کې باید حل شي. هغه وویل چې دغه ډول کړنې به دي په ستونزو کې رانښکېل کړي.

ماورته وویل چې كه چېرې خلك هلته زماڅخه خپه وي او یا زما د گروپ د کارکولو له ډول سره خپه وي ۱:کولای شي چې کونټي مې ښکل کړي (ښکنځل. ژباړن)۲: کولای شي چې له دغه ځایه مې وباسي کورته مې بوځي.

ښايي چې دوی دلته له وظیفې خوندواخلي. ماورته وویل چې دا هغه ستونزه ده چې بایدهلته برابره شي اوبیا د دغه چټیاتولپاره ماته ټیلیفون ونکړي. ټیلیفون مې بندکړاوراوگرځېدم څوريك پيداكړم. ومې لیدل چې ریك كريس. پاپي. ایډ. گریگ او بك ټول چوپ ناست او په حيرانتيا ماته گوري. ماخپلې اوږې وخنډلې او یوازې مې وویل چې ښه داخوهم یوه خوندوره محاوره وه. اياتاسې فکرکوی مایك به د دغه موضوع په اړه زماپه احساساتوپوهېدلی وي؟پينځه دقيقې وروسته ټیلیفون بیاوشرنگېده اوداخل راوډ و. راوډ د ځانگړو فعالیتونود فرقې مشرو. هغه غوښتل چې له ماسره وغږېږي. هغه وویل چې څه حال دی؟ مایك وویل چې ته خپه اوپه غصه وې؟

زه تر هغې ارام شوی وم اوپوهېدم چې دايوچانس دی څوخپلو موخو ته ورسېږم. ماورته وویل چې هوزه خپه وم . ما دقرارگاه د پام په نشتوالي باندې چې زموږځوابونوته پام نه کاوه بیاکتنه وکړه. زه پوهېدم چې دتروریزم پر ضدمرکز نوی په جوړېدودی خوداسې ښکاري چې هيڅوك زموږ رپوټونه نه لولي او پايله يې په نيمه شپه کې د دوی لخوا لمسوونکي ټیلیفونونه وي او هغه پوښتنې کوي چې هغوته موږڅلرويشت ساعته وړاندې ځواب ورکړی وي او یا د دغسې مالوماتو د تصديق غوښتنه کوي چې هغوته موږکوم امکانات هېڅ نلرو. لکه په شمالي سيمو کې چې دکابل څخه دوويشت ميله واټن لري څوك خوځښت لري؟ او بيامايك ماته ټیلیفون کوي او وايي چې قرارگاه له ماڅخه غـــوارې چـــې خپلـــه سســـتي پرېـــږدم. راپـــاڅېږم اوافغانســـتان تـــه

دځانګړوځواکونودلېږلوموضوع حل کړم. دتروریزم پروړاندې د مرکز او د شمال ختیځې فرقې ترمنځ په سلګونوافسران د دغو وظیفو د اجرا کولو لپاره موجود و اوپه قرارګاه کې نورې برخې وې چې دهغوی یوازېنی دنده دا وه چې د سي ای اې او د امریکې د پوځ او نورو دولتي عناصرو ترمنځ انسجام اوهمکاري رامنځته کړي. ماته داسې ښکاره شوه چې د دغو ستونزو لپاره چې ما یې یادونه وکړه حل په قرارګاه کې دننه دی.

راډ ډېرښه سړی دی اودخپل اعتبارپه خاطریې ماته اجازه راکړه چې وغږېږم. هغه په ډېرارام اوپه ښه ډول یې ځواب راکړاودپنځلسودقیقوپه شاوخواکې ستونزو ته په بیاکتنې وغږېدو.

ماهغه ته دهغوستونزو په اړه چې له قرارګاه سره مودپوښتنو. ځوابونواوغوښتنوله مخې لرل اودهغو مالوماتو په اړه چې په سي ټي سي کې یادښت شوی اوثبت شوي وځانګړي مثالونه وړاندې کړل.

راډ ومنله چې افغانستان ته دامریکې دپوځ لېږدولوموضوع ښکاره بایدواشنګټن کې حل کړې وای. راډ ژمنه وکړه چې دغه موضوع به د ډي سي ای سره په همغه ورځ مطرح کړي اوهانك اوكاپر به دې ته وهڅوي چې دسي ټي سي جوړېدونکی ساختمان او دغه عملیات له نږدې په لاس کې ونیسي.

زماګروپ د سي ای اې دهغولسوګروپونوڅخه و چې افغانستان ته د دندې ترسره کولولپاره لېږل کېدل لومړی ګروپ و او ټولې ستونزې مخکې له دې چې نورګروپونه رالېږل کېږي بایدحل وای. وروستی موضوع چې له هغه سره مې یاده کړه هغه دطالبانوپروړاندې زموږدبمبار د کمپاین داغیزې نشتوالی او د هغوحالاتو وه چې په لومړیوکړښوکې شمالي ټلواله ورسره مخ وه.

دغه کمپاین درېیمې ورځې ته داخل شوی وخولاتراوسه هم د طالبانولومړی کرښې نه وې ویشتل شوې. دشمالي ټلوالې مشران اندېښمن و او هغه څه چې موږ لیدل د دښمن له محاورو څخه دا څرګندېده چې طالبان نورهم تشویقوي او د دوی مورال ډېرلوړ و. راډ وویل چې زه باید د ساحې د حالاتو د ارزیابی لپاره بل رپوټ ولیکم چې په هغه کې حالات څېړل شوي وي اوپه شمال کې حالات وروسته د دې چې که موږخپله ستراتیژي د ښخوا راوګرځوو او د شمالي ټلوالې د ځواکونو پر وړاندې طالبان وټکوو. د حالاتو بدلون په کې څېړل شوی وي.

داځل مې چې ټلیفون کېښود. نسبتاً ډېرښه احساس مې کاوه.

زه له ریك اوکریس سره وغږېدم اوپرېکړه مې وکړه چې د راډ هغه نظرچې ویل یې باید د ساحې دحالاتو دارزښت ټاکنې لپاره بل رپوټ ولیکم. ښه نظر و. دایوازېنی رپوټ و چې ماباور درلودچې وبه لوستل شي اوماغوښتل چې زمورنظریې په واشنګټن کې دکرنلارې دبحث یوه برخه وګرځي. زه د رپوټ په

ليکلو بوخت شوم.

شـمالي ټلوالـه پـه افغانسـتان کـې دامريکـې پـوځي مداخلـه ديـوه خـوب دربښتينوالي په ماناګوري. بلې نوموړې ټلواله په هېوادکې ترټولوښه پوځي ځواک دی خوددوی داحتياط. پرسونل اودلوجستيك د نشتوالي له امله نشي کولای چې پخپلومټودجګړې ځپه دطالبانواودهغوی دعرب ملاتړوپرواندې وګرځوي. که چېرې دطالبـانولومړی کرښـې لـه منځـه يوسوشـمالي ټلوالـه کولای شي چې شمالي سيمې اوکابل تر ولکې لاندې راولي.

طالبان به په کابل کې دپاتې کېدلوکوښښ وکړي خوکوښښ بـه وکړي چې سـويل اوخيـتځ اوښـکته لـور ته پکتيـا. پکتيکااوګرديزتـه وتښـتي. دشـمالي ټـلوالې مشـران پـه دې پـوهېږي چـې دامريکـې د دولـت پـه مـنځ کـې د دوی لخوادکابـل دنيولوپرواندې مقاومت شته خودجګړې ډګرحقيقت بـه ددغـه عمـل پېښـېدل حتمي کړي.

که چېرې شـمال غـرب کـې امريکـې دتخـار لـومړی کرښـه بمبـارکړي نوشـمالي ټلواله به هلته هم دکرښې دماتولو تـوان پيـداکړي. تالقـان بـه ډېـرژر ددوی لاسته وغـورځي اوشـمالي ټلوالـه بـه ترکنـدوزه ځـان ورسـوي. دامريکـې پـه مرسـته بـه قوماندان دوستم اواستادعطا مزارشريف ونيسـي اوهمـدې تـه ورتـه بـه اسـماعيل خان به هرات ونيسي.

دځواکمنې بمبارۍ له امله به دلومړيوځواوونيوپه پای کې دافغانستان نيمايي برخه شمال ترخپلې ولکې لاندې راولي. که سم اوکـه غلـط وي خوشـمالي ټلوالـه بـه لـه کابـل څخـه هـاخوا د تـګ کوښـښ ونکـړي. ځکـه چـې دوی کابـل تـه دخپلـې مورنۍ ځمکې په توګه ګوري اوچې طالبـان کابـل پرېـږدي کابـل تـه د دوی ورتـګ دتاريخ په اوږدوکې عادلانه اونژادي حق او د جګړې پـه ډګـر کـې حقيقـت بـولي. دوی پـوهېږي چـې ترکابلـه هـاخوا خوځېدنـه بـه ځـواکمن سياسـي خطـرات منځتـه راوړي اوشمالي ټلواله خپله هم وايي چې دوی له کابل څخـه هـاخوا د بريـد لپـاره بنستيزې وسيلي او لوجيستيك نلري.شمالي ټلوالـه بـه حتماً پـه نـږدې وخـت کـې دمسعودسياسي اجنداچې دلويې جرګې او د موقتې ادارې جوړښت و په رامنځته کولوکې مناسب رول ولوبوي. يوه داسې اداره به رامنځته کړي چې پـه هغـه کـې به تاجك او نور لږکي يومناسب رول ولوبوي.

پاڼي يوازې له نيمې شپې څخه لږوړاندې دساحې ارزښت ټاکنې رپوټ ولېږه.

زه وروسته خبرشوم چې دغه رپوټ ډې سي ای اغېـزمن کـړی و او د اکتوبرپـه يوولسمه نېټه يې چـې راتلـونکې ورځ وه ولسمشـرته تشـريح کـړې وه. پـه غونـډو کې اوس معياري بحث دا وچې که چېـرې شـمالي ټلوالـه کابـل تـر ولکـې لانـدې راولـي. پاکسـتانيان بـه څـومره خپـه شـي او پـه سـويل کـې دپښـتنودهڅونې او

خوځښت لپاره بایدخه ترسره شي.

ډي سي ای خپله وویل چې موږبایدپه شمال کې شمالي ټلواله له پرې خلاصه کړوځوتالقان اوکندوزترولکې لاندې راولي. د دوی چټکه کامیابي په شمال کې طالبان اوعرب جنګیالي په لومه کې رانیولی شي یابه تسلیم شي اویابه له منځه یووړل شي.

شمالي ټلواله باید دکابل په شمال کې راټال کړوځوپښتانه او(پاکستانیان. لیکوال) کرارکړو. زموږکامیابي به په شمال اوسویل کې پښتانه قومونه حرکت ته غښتلي کړي. هوداهغه څه وچې ماذکرکړي وخودادومره څه وچې دغه دپرېکړې لپاره کړکېچن حالت له منځه یوسي اودجګړې ډګردکار ورستراتیژي منځته راوړي.

که څه هم چې دغه بحث پای ته ونه رسېدخوپه هرترتیب مابیاهم یواوږدلیك (نه ارزښت ټاکنې رپوټ) ولیکه اودغه لیك دشمالي ټلوالې دمشرانونظریات دلومړی کرښې دبمبارۍ په باره کې اوپه عین وخت کې ددوی لخوادکابل دنیولو وروسته دمشکلاتودپیداکولوپوهېدنه په ګوته کوله.

عمده مطالب په کې دالیکل شوی ووچې شمالي ټلواله زموږله همکاریومنندویه ده خوکه موږدهغوی سره دجګړې په ډګرکې مرسته وکړواوکه ویې نکړودوی به دژمي تر راتګ دمخه دکابل دنیولولپاره خپلې هڅې پیل کړي. شمالي ټلواله پرې باوري ده چې دکابل نفوس به هغوی ته ځکه ښه راغلاست ووایې چې دغه ښارپه بنسټیز او عنعنوي ډول یوتاجك پلوه ښاردی. ماورته ولیکل چې دشمالي ټلوالې سره په پوره ډول زموږدمرستې بندول ددې لپاره چې دپښتنواوپاکستانیانو نیوکې کرارې کړویوه اشتباه ده. دشمالي ټلوالې سره زموږپوره مرسته به دشمالي ټلوالې په راتلونکي سیاسي فعالیتونوباندې زموږ اغېزه غښتلي کړي.

ماخپل لیك لانه و لېږلی چې له اسلام ابادڅخه یورپوټ راغی چې دبمبارۍ لومړی څلورورځې یې دسیاسي خپګان په سترګه کتلي وو.

په اسلام ابادکې د سي ای اې ځایي مشرلیکلي وچې پښتنواوس پنجره نوره هم ټینګه سره نیولې ده اوطالبان له ملاعمرڅخه نور راتاوېدل. رپوټ په دې تاکیدکاوه چې دپاکستانیانورول ددغه کړکیچن اوله ستونزوډك حالت کې مهم باله. دایې هم ویل چې دپاکستان ولسمشرجنرال مشرف د پاکستان داستخباراتودای اېس ای په شبکه کې پراخ بدلون راوستلی اومذهبي اومحافظه کار ډایرکټرجنرال اودهغه اندیوالان یې ١٧ د سپتمبر د یوولسمې له پېښې وروسته له دندې لېرې کړی و. چې له امریکې سره دنږدې همکارۍ مخالفت کاوه.ای اېس ای نوی اعتدال خوښوونکی مشرته دجنرال مشرف لخوا د سي ای اې سره دترورېزم پروړاندې دپوره همکارۍ امرورکړل شوی و. رپوټ کې راغلي

وچې ای اېس ای دافغانستان حالاتوسره په کلونوبلدتیادرلوده اولاله پخواڅخه یې په پېښورکې دپراخه نژادي (دافغان دولت په تبعیدکې) دولت دجوړېدلولپاره ډېرې هڅې روانې کړې وې. مشرلیکلي وو چې موږبایدپه دغه هڅه کې دپاکستانیانوسره له نږدې کاروکړو. په سویل کې بایدتمرکزوکړواودبمبارۍ کمپاین دراتلونکوڅواوونیولپاره په کرارکړواودطالبانودلومړی کرښې ځواکونه په خپل حالت پرېږدوله دې امله باید دغه اصلاًیوه سیاسي مبارزه وي نه پوځي مبارزه. پرېږدی چې دطالبانوپروراندې په پښتنوکې مقاومت زیات شي. هغه هم په داسې وخت چې سي ای اې او ای اېس ای هلته یووسله وال مقاومت رامنځته کړي دغه به دطالبانووروسته په سیاسي پروسه کې میزان برابرکړي. مادغه پیغام په پوره بې زړه توب ولوست. دغه دناکامۍ اودسیاسي حیرانتیالپاره یوحتمي امرو. دغه هڅه چې پاکستانیان یې افغان لوبې ته بیارابلل یوه پرېشاني اوربښتیني اشتباه وه. دوی ددغه ملك لپاره خپله سیاسي اجنډا لري اوداهغه څه نه وچې دامریکې دولت یې دطالبانو وروسته په مهال کې ځرګندېدل غوښتل. دواشنګټن هڅه په افغانستان کې دیوې ګټونکي جګړې لپاره له ستونزو او خنډنو ډکه مبارزه وه.

## درویشتم څپرکی

له انجینرعارف سره مایه خپله لومړی لیدنه کې داژمنه کړې وه چې امریکې پوځ به دشمالي ټلوالې ځواکونوته د هوا له لارې اړین پوځي توکي راوغورځوي اوهمدارنګه به بشري خوراکي اکمالات دهغو ملکې خلکولپاره چې د شمالي ټلوالې ترولکې لاندې دي دهواله لارې وروغورځول شي.

ما دغه موضوع تروریزم پرضدله مبارزې مرکزسره دلیك له لارې یاده کړې وه. که څه هم چې یوشمېرستونزې وې چې بایدددغې هڅې له ترسره کیدووړاندې اوارې شوی وای. خوهغوی ډاډه ول چې دوی له دې کارته غاړه ږدي او هغوی به بشري هوایي ماموریتونه ترسره کړي.

که څه هم چې ددغه کارپه ترسره کولوسره به دوی دغورځونې سیمې په زیات درستوالي سره په نښه کړې وای خودامریکې هوایي پوځ نه غوښتل چې دیادوشویوتوکولومړنی غورځونې له ټیټې ارتفاع څخه ترسره کړي.

په افغانستان کې دطالبانوځواکونوپه سلګونوامریکې جوړ اورد واټن ویشتونکي ستېنګرمیزایل او همدارنګه په سلګونوروسي اوبیلا بیل له ځمکې څخه د هوا ضدمیزایل لرل. د اېس اې ار (د پلټنې اوژغورنې) د ظرفیت دنشتوالي له امله یې دبار وړونکوالوتکوغورځونې بایدکړې وای. خو ډېر زیات خطر یې درلود. لومړنی غورځونې یې باید له اوویشت زره فوټه لوړوالي څخه

ترسره کړې وای. ددغه کارلپاره يوه اورده پراخه او اواره سيمه پکاروه چې پنحشېردره ترهغه مهاله ترې بې برخې وه. خوکه د غورځونې ارتفاع راټيټه شوی وای بيا شونې وه.

د اکتوبرپه لسمه نېټه مورته خبرراکړل شوچې اېن اېس سي پرېکړه کړې چې دخوړولوموړی غورځونې په شمال کې دتاجکستان له پولې يوازې سوېل لوري ته په اوارو سيمو کې چې دخواجه بهاوالدين ختيځ اوسوېل ته غزېدلې وې ترسره کړي.

ځلور سي-۱۷ C ډوله الوتکې دزرگونوپاونډه خوړو د غورځونې لپاره ټاکل شوې وې.

مورته ويل شوي وچې دخوړو دغه ډبي چې زموږ ايم ار اي[1] ته يا په ډېيوکې دخوړلوتيارې شوې غذاته ورته دي دملکي بشري سازمان دکارونې لپاره جوړې شوې وې اوپه هرپاکټ کې پوره اندازه خواړه و چې يوبالغ سړي پرې ديوې ورځې لپاره بسنه کولی شوه.

جنرال فهيم دغه ماموريت ته په خوشالی سره هرکلی ووايه اوميوري په خپله خوښه وغوښتل چې شمال ته وروگرځي اودخپل ملگري جنرال بريالي خان سره دغورځونې دسيمې لپاره نقشه جوړه اوکواردينات يې واخلي څو له غورځنې وروسته دغه بکسونه لادرکه نه شي.

ميوري زموږ د چورلکې په واسطه د اکتوبر په دولسمه نېټه تر خواجه بهاوالدين ور پورې کېده او د هوايي بشري مرستې غورځونې د اکتوبر په ديارلسمه نېټه سهار وختي ترسره کېدې.

د ميوري له کوزېدا وروسته چورلکه د شپې د تېرولو لپاره دوشنبې ته لاړه څو تېل واچوي او دوه اضافه افسران چې غوښتل يې زمورله گروپ سره په پنجشېرکې يوځای شي له ځان سره راواخلي. په داسې حال کې چې ميوري ته دگريگ اونصيرپواسطه الوتنه ورکول کېده زموږدگروپ ځلورغړي سوېل درې ته ښکته دموټروپه کاروان کې لاړل. کريس او ايډ په يوه موټرکې اوستان او ډاکټرپه بل موټرکې وو. کريس پلان درلودچې له سياف سره يوځل بياووينې اوايډ غوښتل چې په گل بهارکې زموږ د نوي بشپړ شوي هوايي ډگر دسپيناوي لپاره رسمي سروې وکړي. ستان اوډاکټربگرام ته دجنرال بريالي له څاگره ماموريتونوسره دپاتې کېدولپاره ور روان وو. دوی کوښښ کاوه چې د دقيقوهدفونولپاره اضافه مالومات ترلاسه کړي.

پريډېټر يا(داړونکی ځناور) يو د بې پيلوټه الوتکونوی توکم په افغانستان کې د

[1] په پاکټ کې بند تيار جوړ شوي خواړه دي چې معمولاً پوځ يې د وظيفې پر مهال کاروي. ژباړن

څو ورځې راهسې په کار پيل کړی و.د دغه داړونکي ځناور دماموريتونودترسره کولوپه اړه زموږګروپ (له اړوندو کسانو سره)نېغ په نېغه په اړيکه کې نه و. موږ د دغې داړونکي ځناور يا بې پيلوټه الوتکو د الوتنې له حقيقت څخه يوځه پاتې شوني مالومات درلودل. موږ پوهېدو چې دغه پريډيټور د ماموريتونو پرمهال د(دوزخ اور) چې له نوموړيو الوتکوڅخه د وېشتونکيوتوغنديونوم دی ،مسلح ول. دغه ميزايل د دښمن د ډېروغښتلو موقيعتونودله منځه وړلوپاره اودهغوبې زغرې موټرو د ويجاړولو لپاره چې اسامه او د هغه جګپوړو ورسره علاقه لرله ،جوړ شوي دي.

ددغه داړونکي ځناورو الوتنې په موږ باندې ډېر لږ اغېز درلود. تقريباً د غرمې پرمهال له واشنګټن څخه ټليفون راغی ريك او زه په کار ځای کې وو او ليکونه مو لوستل. پاپي ټليفون ته ځواب ورکړ. هغه تر يو څه وخت غوږ ونيواو بيا يې د ټليفون مايك په لاس بند کړ او ويې ويل چې د پريډېټر د ماموريتونو مشر د ټليفون په کرښه دی. هغه وايي چې ايامور د هغه نوي جوړشوی هوايي ډګرچې دشمالي په اوارو سيمو کې دګل بهار نومي کلي خواته پروت دی،مالومات لرو؟ دغه کس غوښتل چې زموږ د هوايي ډګرپه اړه له يوچاسره وغږېږي. نومادټليفون غوږۍ پورته کړه. له هغې خواڅخه مې ديوځوان نارينه پوځي ډوله غږ واورېد. له پېژندګلوی وروسته هغه وويل: صاحب زموږپريډيټوردطالبانولخواديونوي جوړشوي هوايي ډګرپه سرګرځي او د نقشې کوارډينات يې په لاندې ډول دي. هغه دعرض البلداوطول البلدنمبر راته ووايه او ما له ځان سره وليکه. ما نمبر ريك ته ورکړ اوهغه ته مې دنقشودبنډل په لورې چې د مېز هاخواته ايښې وې اشاره وکړه. غږ دوام وکړ. سي ای اې تايدکړې چې دا د طالبانونوې جوړې شوې ځالې دي چې د تېرو لسو ورځو په شاوخوا کې پرې ودانيز کار دوام لري.

پريډېټرهغه سرف موټرچې دخامې ځغاستې دلارې په خواکې ولاړدی او دوه سري چې لوېديځ ډوله جامې يې په تن دي ددغې ليکې خواته پلي ګرځي، په نښه کوي. دوی يقيناً چې افغانان نه دي اوموږ باورلروچې هغوی القاعده دي. يوډنګر او لوړ قد لري موږ فکرکووچې په خپله بن لادن دی!موږ غواړوچې له تاسې سره د دغودوو کسانواو جيپ موټر پر وړاندې د دوزخ ميزايل له بريد کولو د مخه پوښتنه وکړو. ماورته وويل چې تر څو چې موږ نقشې ګورو تر هغې بايد انتظار وکړې.

ماريك ته مخ وراړاوه اوورته ومې ويل چې ستا به باور رانشي خو زه فکرکوم چې پريډيټرکريس او ايډګوري اوايډ باندې يې د بن لادن ګمان کړی دی. دوی غواړي چې د دوزخ داور په ډزو سره يې له منځه يوسي. ريك د نقشې هغه ټوټه

راوړه چې دګل بهارسیمه په کې کنټرل شوې وه اوکوارډینات یې دګوتې په واسطه په کې تطبیق کړل. ربښتیا هم دده د شهادت ګوتې لاندې نقطه زموږ د ګل بهار د هوايي ډګر لیکه وه. هغه وویل زماخدایه دوی ایډاوکریس وژني!

زه بیا دټلیفون په کرښه شوم اوهغه ځوان سړي ته مې وویل چې برید ودروي. ځکه چې هغه دوه کسان دسي ای اې افسران دي. زموږ د ګروپ غړي دي. هغوی دسي ای اې لخواپه جوړشوي هوايي ډګرګرځي.داپه ډېر واټن سره دشمالي ټلوالې دکنټرول په سیمه کې دننه دی او د طالبانو کرښې له دغه ځایه نږدې شپږ یا اووه میله د لوېدیځ خواته دي.

ایازه ډاډه وم؟زه باالکل ډاډه وم. موږ سي ای اې او تروریزم په وړاندې ریاست ته په دوام دارډول ددغه ډګردودانیز کار دپرمختګ په اړه رپوټ اوجغرافیايې کورډینات ځوځله ورلېږلي ول!

زه به یې ومنم که دامریکې پوځ پرې خبرنه وي خوځنګه ښايي چې سي ای اې ترې ناخبره وي اوتردې لا ناوړه یې دا وه چې دوی څنګه د لومړیو کرښو څخه په دقیق ډول خبر نه لري؟ خپه شوي ځوان افسرماته ډاډ راکړ چې دی به ټول اړوندپرسونل له دغې ناسمې پېژندګلوۍ او تېروتنې څخه خبر او پرېډیټور ته به د طالبانو د کرښو پر سر بیا لارښوونه وکړي .

که چېرې دغه افسرله موږ سره اړیکې ټینګې کړې نه وای. پرېډیټور به کریس او ایډ تر برید لاندې راوستلی وای.

دا یوه بله پېښه وه چې دوی زموږ لیکونو ته پاملرنه نه کوله. موږبل مودب خوغښتلی لیك ټولو هغودفترونوته چې زموږدګروپ څخه یې ملاتړکاوه ولیږه. ددغه پېښې ذ کر مې په کې کړی و. موږ فکروکړچې په مساوي ډول دپام وړ او عجیبه خویې لادا وه چې ایډاوکریس له دې چې ددوی پرسرداړونکي ځناورګرځي اودوی ددوزخ[1] د اور تر برید لاندې راغلي و، هېڅ خبرنه و. زه فکرکوم چې دغه خبر د دوی څخه هغه خوند چې د دفتر د کارونوڅخه یې بهرپه تفریح کې تېراوه بېرته واخیست.

راتلونکی سهارچې داکټوبرمیاشتې دیارلسمه نېټه وه. میوري دهغې بشري خوراکي مرستو د غورځېدنې په اړه خبر راکړ چې په خواجه بهاوالدین کې وختي په هغه سهار تر سره شوې وه. هغه وویل چې جنرال خان د دغې مرستې دترلاسه کولولپاره بهرته په پوره ډول تیار ورغلی و. میوري د غورځېدنې د ځای مرکز لکه څنګه چې د هوايي ځواکونولخوا هدایت شوی و، په نښه کړی و. دی او خان د سلوڅخه له زیاتو کسانو او له پنځو لویو موټرو سره انتظار و ځو ورشي او

[1] امریکایان په خپل ټکنالوژۍ دېرنازېږي او ددې دپاره د هر نوي یا نسبتاً ځواکمن میزائل دپاره داسې یو طبیعي نوم خوښوي چې ډېر ویروونکی وي. ژباړن

د خوړو لکه څنګه چې هيله کېدله غټې بنډلې راغونډې کړې. په ډاډسره د دوه سی -۱۷ ډوله الوتکو غږ سهار په دوه نيمو بجو له هوا څخه واوريدل شو.

څنډ ووت اوبيا په خلاصه هواکې له پورته لورې څخه د راغورځېدنې غږ او ور سره په سلګونود ټـك اوخـرپ اوازونوپـه بـدرګې سـره داسـې لکـه د پټـاکيو د چاودېدوغږونه واورېدل شول. اوازونـه ژر د سوېل پـه لـورې پـه ورکېدو شول. دا هغـه اوازونـه نـه وو چـې ميوري يـې هيلـه درلـوده. لـويې بنـډلې چـې د کـارګو د پراشـوټ څخـه راوغـورځېږي هـر يـو يـې د درب اواز کـوي. وروسـته کسـان د غورځېدنې سيمې ته ورغلل او د هغو ګروپونو د ربنا پواسطه يې په مځکه باندې په سلګونوکوچني ژېړ رنګه بنډکي وليدل چې په سرونويې ټړلي وو. ميوري ځودانې راټول کړل اودموټړ ګروپونو رڼاته يې په غور سره وکتل. دوی په حقيقت کې دهغو انفرادي خوړو پاکټونه وو چې موږ يې د رسېدو هيله کوله. دغه پاکټونه ټول چاودېدلي وو. دننه خواړه يې سره ګډوډشوي اوپه خاورو لړل شوي وو. دغه کسانوچې ځومره پاکټونه په شپه کې پيداکولی شول ،راغونډ يـې کـړل. خـو دغـه په پراخ ډول سره د څو ميلونو په واټن سره تيت شوي وو. زياتـه انـدازه يـې چـې ميوري وليدل چاودېدلي اوخراب شوي وو.

د سپېدې چـاود سـره سـم پـه سلګونوافغانان دغـره پـه سيمه کـې لـه کليونـه رابنکاره شول . د غورځونې سيمې ته لاړل او د خوړو پاکټونه يې له سيمې څخه داسې راټول کړل لکه چرګې چې دانې ټولوي!

موږ ته څرګنده وه او د دفاع وزارت هغـه فلم چـې د سي – ۱۷ لـه دننـه څخـه يـې اخيسـتی و، تصـديق شـو. پراشـوټونه يـې نـه وکـارولي. خـواړه د الوتکـو لـه وروسـتی برخـې څخـه چـې پـه لويـو او د کلـك پنډکاغـذ څخـه د جـوړ شـوي کانټينرونوکې بندشوي اوراټېل وهل شوي وو. چې سملاسې وروسته هغه سره مات شوي اوخواړه په انفرادي ډول ځمکې ته غورځېدلي وو.

د اووه ويشت زره فوټه لوړوالي څخه د خوړو له غورځونې وروسته خـواړه د سرعت وروستني پړاو ته رسېدلي او د غورځونې په سيمه د ميلونو په واټن سره په پراخ ډول تيت شوي وو. دوی له ځمکې سره دکوچني مزايل پـه ډول چـې لـه لګېـدنې سـره سـم چاودنـه کـوي، لګېـدلي وو. دغـه غورځونـه دشـمالي ټلـوالې مشرانوته يوځل بيا د خپګان سبب وګرځېد. يوځل بيـاموږ لـويې وعـدې کـړې وې. خوپه دې ونه توانېدوچې سرته يې ورسوو.

د ماسپښين پرمهال له موږ سره ډګروال مل هولانډله خپلې قرارګاه څخه چې دکرسي خان اباديه هوايي اډه کې واوله تاشکندڅخه شمال لـورې تـه نـږدې سل ميله واټن درلود. له خوندې ټليفون څخه اړيکه ټينګه کړه. مـل هولانـډ وويـل چـې دسينټ کام له لـورې هغـه تـه اجـازه ورکـړل شـوې چـې پنجشـېر تـه د اکټوبرپـه

پنځلسمه چې دوه شپې لیرې وه یود اې (A)ګروپ دننه کړم.
ما هغه د نورو اجازو په اړه چې د ازبکستان د حکومت د هوايي ليکو څخه مو باید لرلای، وپوښت. مل هولانډ وویل چې هغه تراوسه مالومات نه لري خو هغه له امر سره سم خوځښت کاوه. ماورته وویل چې موږ به له شمالي ټلوالې سره اړیکه نیسو څو د کوزېدو لپاره ښه سیمه خوښه کړو. ما ور سره ژمنه وکړه چې زموږ پیلوټان به د دوی له هوايي کار کوونکوسره د ټلیفون په کرښه وي څو په خوندي هوايي لیکه باندې راشي.
امریکایي پوځ په پای کې پنجشېرته زموږسره د یوځای کېدو لپاره د اې ګروپ د لېږلو پرېکړه کړې وه خو زه د دغه ماموریت د تیارېدو لپاره د عمومي انسجام او اړیکو د نشتوالي له امله ځورېدم. د ازبکستان او تاجکستان دواړو سرحدونه د الوتکو ضد په مېزایلوباندې ساتل شوې وې. ځینې ځایونه یې د روسي ځواکونو لخواساتل کېدل. له رسمي انسجام او اړیکو پرته یو ناڅاپي او په خپل سر الوتنه د دې لامل کېده چې په نوموړو سرحدونو باندې له شوني ډزو سره مخ شي. د ماښام په شپږو بجو چورلکه له دوشنبې څخه د میوري او دوه اضافه افسرانو په ګډون راوګرځېده. دوه نوي راغلي کسان د سي ای اې افسران ول. فرېډ چې داړیکو افسر و د پاپي د دفتر غړی و. فرېډ له سي ای اې سره په نړۍ کې د دندو پرمهال یوکلك اواغېزناك شهرت درلود. موږ هم د ده له ګروپ سره دیوځای کېدنې له امله خوښ وو. پاپي دوه نوي همکار ته اړتیادرلوده اوموږ هیله مندووچې د فرېډ په راتګ سره به پاپي ته شل ساعته کار را لږ کړای شي.
بل کس چې براډ نومېده هغه دځانګړوفعالیتونوله فرقې څخه ځوان افسرو. هغه په نړدې وختونوکې له ځانګړوځواکونوسره دځوکلونود دندې ترسره کولو وروسته له (سي ای اې) سره یوځای شوی و. دا ښکاره شوه چې براډ په پوځي او د لایزر د نښه کولوپه سیستم سوفلام کې ماهر و او له ځانګړو ځواکونوسره یې دغه دندې ترسره کړې وې. سره له دې چې سي ای اې د هدف په نښه کول (د لایزر پواسطه) د ترسره کولو اجازه نه درلوده اودغه کار د امریکې په پوځي پرسونل پورې محدود و، براډ د سوفلام یا د لایزر پواسطه د نښه کولوسیستم ټول اړین توکي له ځان سره راوړي ول. نوموړې یوه سپکه لایزري اله ده چې یوه سر تېري ته ددې اجازه ورکوي چې د جګړې په ډګرکې دیوه ځواکمن رهبري لایزر یا(هوښیار بمونو) پواسطه هدف په نښه کړي.
موږ دسوفلام سیستم په لرلوسره خوښ وو. ښایي دغه سیستم د اې (A) ګروپ لپاره چې داکټوبرپه پنځلسمه پنجشېرته دماموریت لپاره لېږل کېدل،ګټورتمام شوی وای.
دګروپ له نویوغړیوسره دېږندګلوی له ګټې ګونې وروسته میوري ماته اشاره

وکړه چې له هغه سره ووینم. هغه له ورایه خوښ ښکارېده اوخندل یې. ګیري فکروکړچې په چورلکه کې به نورڅه له دوی سره راوړل شوي وي؟ مخکې له دې چې زه ځواب وکړم. هغه دوام ورکړچې زه لس ملیونه نغدې لرم. په دغه کې یې زه ځکه بندکړم چې ماله قرارګاه څخه دنوروپیسوهیله نه درلوده. په ډاډسره افغان کار کوونکودکلك کارډ بورډ له کاغذه جوړشوي څلورلوی بکسونه دهلېزته راوړل اوپه کلکه پلاستیکې تسمه باندې سرغوچ شوي ول. میوري بکسونوته اشاره وکړه او ویې ویل چې دسي. ټي. سي له نویوکسانوسره یې نورې پیسې هم رالېږلي دي. په دوشنبه کې مشر رانو وویل هغه خوښ وچې موږدغه پیسې دهغه له لاسه واخیستلې. هغه وویل چې دومره اندازه پیسې چې دده په خواکې پرتې وې، دی یې له اندېښنې سره مخ کړی و. ریك هم له موږسره یوځای شواومیوري دپیسوخبر هغه ته هم ورکړ. ریك یوبکس په لغته وواهه او ویې ویل دوی فکرکړی چې موږبه دغوپیسوته اړتیالروځکه چې هغه نورې درې میلیونه موږېړې ژر مصرف کړې!

هغې سم وویل ځکه چې وروستی تورېکس چې خالي کېدلوته نږدې شوجنرال فهیم ته دپیسو وروستنی ورکړې تقریباً بانك له نیستی سره مخ کړ. ماپه بکسونوباندې تسمې ته وکتل اوبکسونه یوځل خلاص شوي وو.

میوري وویل چې بلې زماله یاده وتلي و. ران بکسونه یوځل خلاص کړي څو شمېر یې تصدیق او وپلټي. ما ورته وویل چې موږ باید هر بکس پخپله وګڼو څو اندازه یې تصدیق کړو. څېل ساعت ته مې چې وکتل نن شپه مو هم کولی شول خو یو څه ناوخت و. زه غوارم چې د پیسو ګڼل په دقیق ډول ترسره شي ،درې بکسونه بېرته مهر کړو او یو بکس یې د کارونې لپاره پرېږدو. راځئ چې ددفترپه کونج کې یې پرېږدوبیابه سباورځ کارپرې وکړو.

دنویوکسانودځای پر ځای کېدلوله امله په دفترکې بیاګڼه ګوڼه اوبېړه شوه. دخوراك لویه کوټه چې له انجینرعارف سره مو د غونډو لپاره کاروله. نیمه برخه دنویوراغلوکسانولپاره دخوب ځای ته بېله کړه. جان محمددخوب لوی او هوار بالښتونه اویوه لویه سور رنګه پرده پیداکړه. ځوپه کوټه کې یې ځورنده کړي اونویوراغلوکسانوته یوه کوچنۍ پرده اوخصوصیت ورپه برخه کړي.

ما ممتاز پیدا کړ او هغه مې له دې چې د اې ګروپ ددولس کسیزګروپ پنجشېرته داکټوبرپه پنځلسمه شپه دماموریت لپاره راځي اودهغوی لپاره په کومه ودانۍ یاکورکې موږته ځای پیداکول اړین دي خبرکړ، ورته ومې ویل چې زموږګروپ ته ددوو نویوافسرانودګډون له امله زموږداوسېدلوځای تنګ دی. د اې ګروپ بایدپه کوم بل ځای کې ځای پرځای شي.

ماخپلوپیلوټانوته وویل چې له نصیراوحافظ سره په بارك کلي کې دښکته کېدلولپاره یومناسب ځای خوښ کړي اوبایدچې له ممتازسره اړیکه ونیسي.

ځودگروپ دراتگ لپاره دامنیت اود لېږلو لپاره تیارۍ ونیسي. مامممتازته وویل چې له انجینرعارف سره دراتلونکي سهارلپاره دغونډې چمتووالی ونیسي ځود اې گروپ دراتگ په اړه خبرې اترې وکړو. کله چې زه په هغه ماښام خوب ته دتللولپاره تیارېدم فکرمې وکړچې هرڅه دسمون په لورې روان دي خوزه ځومره لږپوهېدم!

## دپلان بدلون
## څلرویشتم څپرکی

تقریبا دسهارپه دووبجوزه دکولمودپخوانی گډوډۍ له امله راویښ شوم.
له دې پخوا ډېرښه وم او د سپپرو د داروهغه ډوزچې ډاکټرراکړی و،هغه مې هم خلاص کړی و. مافکرکاوه چې له دغه ستونزې څخه خلاص شوی یم. دبخت دملتیا له امله یوجوړشوی بوتل تیار او زما په انتظار و.
د ناروغۍ د نښې دهرې څپې تر منځ مې دشپې په تېرېدوسره خال خال خوب وکړ. دسهارسپېدې چاودسره مې د ډاکټرطبي الاتو باندې برید وکړ ځونورې سپپرو (یوډول انتي بیوتیک دارو. ژباړن) پیداکړم. ایموډیم اوټاکمېت (یوډول دارو) مې هم راپیداکړل، یو بله اوږده ورځ وه.
ممتاز زموږ دفتر ته راغی او ویې ویل چې انجینرعارف به زموږسره د وړاندیز شوې لېدنې لپاره په نهه نیمو بجوراځي.ریک اوزه ورته سترگې په لارو. موږپه پای کې یوځه مثبت لرل چې دهغه سره مو د امریکې دځانگړوځواکونوداوږدې مودې ماموریت چې پنجشېرته راروان و، تربحث لاندې ونیسو.
دهغه نیمگړي اومایوسه هوایي بشري غورځونې له امله چې یوه ورځ ترمخه وشوه،ماریک ته نظرورکړچې شمالي ټلوالې ته پنځه سوه زره امریکایي ډالرورکړوځوپه سیمه ایز ډول دخوړواونوروتوکورانیونه وکړي. هغه هوکړه وکړه.موږتوربکس راواخیست ځوپیسې وگڼواوبندې یې کړو.
زه په ځانگړي ډول دهغه دبوديجې دراړسېدلوله امله منندوی وم چې یوه شپه وړاندې رارسېدلې وې ځکه چې شمالي ټلوالې ته ددغه ورکړې دورکولووروسته به دهغه درې ملیونه ډالرو له جملې چې موږله ځان سره راوړې وې د یو سل او شل زره څخه یوڅه زیاتې پاتې وای. په نهه نیموبجوعارف راغی. ځکه چې زموږدلیدنوپخوانی ځای ددوه نویوکسانوله خوا کارول کېده. نوموږ باید دعارف سره دلیدنولپاره داستخباراتوگډ دفترکارولی وای.
کله چې له عارف سره کېناستوهغه یوڅه مایوسه ښکارېده. په هغه وخت

چې جبري چای اوکافي تیارشول، زه یې په لامل پوه شوم.

دعارف له خولې تېره شپه ناوخته دشمالي ټلوالې مشرانوغونډه کړې وه. خودځانګړوځواکونودګروپونو په ماموريت باندې خبرې اترې وکړې.

پرېکړه چې د نورګروپ په واسطه وړانديز شوې وه اودجنرال فهيم په واسطه تصويب شوې وه دا وه چې دځانګړوځواکونود دولس کسانو شمېربېخي زيات و.

يوازې دوه سرتېري بايد راولېږل شي اوهغوی بايد د متحده ايالاتو د پوځ د يونيفارم په ځای ملکي جامې په تن ولري.

ريک او زه ښايي چې وراخطا ښکاره شوي و. کله چې عارف خبرې پای ته ورسولې،دهغه سر داسې لکه مخکې او وروسته چې زانګې، ښکارېده. هغه زموږځواب ته انتظار و. ما له ده وپوښتل چې ولې دوی له هغه موضوع چې موږ دوه اوونی وړاندې څېړلي اوهوکړه موسره پرې کړې وه، پښېمانه شول؟

عـارف وويـل چـې لـه ده سـره ليـدنوپر مهـال مـوږ ټينګارکـاوه چـې دځانګړوځواکونواې ګروپونه به دشمالي ټلوالې ځواکونوته زده کړې ورکړي. عارف وويل چې ښکاره دشمالي ټلوالې ځواکونه په ساحه کې دجګړې يوويشت کاله تجربه لري اوجنرال فهيم وويل چې ترهغې اندازې چې امريکايان پوهېږي فکرنه کوم چې داسې کوم شی دزموږځواکونوته برابر کړي چې هغه به هغوی ته د راتلونکې جګړې په ډګرکې ګټورتمام شي.

د دې څخه پرته په يونيفارم کې د امريکايي پوځ شتوالی به شمالي ټلوالې ته دهغوی له ګاونډيانوسره ستونزې راپورته کړي.

اودهغه امريکايانوپه ضدبه کرکه اوغوسه راپورته کړي چې دشمالي ټلوالې سره يوځای کارکوي. زموږدراتګ په لومړی ورځ ريک اوما دانجينرعارف سره دليدلوپه مهال مود ځانګړو ځواکونو ګروپونوشونی رول دطالبانود موقيعتونو د لايزر په واسطه د نښه کولوپه اړه کوم بحث ونه کړ. په هغه مهال دامريکې دپوځ له خوا ددغه ماموريت په اړه کومه کلکه پريکړه نه وه نېول شوې يا لړترلږه ما اوريک ته دقرارګاه سره داړيکوپه مهال څه نه وو ويل شوي يا ډګروال مل هولانډ چې په ازبکستان کې و هم څه نه وو ويلي.

خودشـمالي ټلـوالې پـه واسـطه دغـه پرېکـړه د اې ګروپونوماموريـت تـه داحتمالي لويې ډېرې ښويدل و. ما ورته د اې ټـي ډي (دلايزرپه واسطه دهدف نښه کول)په واسطه دجګړې په ډګردامريکې دبمبارۍ ددقت اولګېدنې په اړه تشريحات ورکړل. ريک په دې وتوانيده چې د الفا يا ځانګړو ځواکونو د عملياتوپه څرنګوالي اوڅه ډول توکي به کاروي د الوتکې سره به څه ډول اړيکې لري موږکوښښ کاوه څوتاکيد کړوچې د اې ګروپ او د هغوی د اېل ټي ډي (لايزرپه واسطه دهدف نښه کول)په باره کې دغه ډول واضح اوپوره مالوماتواوددغه

دندې د ترسره کولولپاره دپوره گروپ دشتوالي داړتیا په اړه د پوره او ښکاره مالوماتودورکړې له امله. عارف هوکړه وکړه چې دغه موضوع به دجنرال فهیم سره بیا څېړي.

هغه وویل چې ددغه موضوع په اړه ماته په همغه ماښام خبرراکړي. دجلسې ددوام په پایله کې مودشلټرنودموسسې دافغان بندي له پلارسره دراتلونکې مرکې په اړه خبرې وکړې. دغه مرکه دکریس اوخافظ په واسطه وروسته په سهارکې ترسره کېدله.

عارف هیله مند وچې دغه لیدنه به مرسته وکړي اودنجات دماموریت دترسره کولو دځرنگوالي لپاره ښه پلانونه په لاره واچوي.

ماپلان درلود چې دبشري مرستې دهمکارۍ لپاره نقدي تادیه ورکړم خو پنجشېر ته د امریکایي ځواکونو د راتګ په اړه د پرېکړې ناڅاپي بدلون له امله مې پرېکړه وکړه چې تریوڅه وخت پیسې له ځان سره وساتم خوما یوه بله موضوع رپورته کړه. که څه هم چې دا یونظروچې د ډاکټرعبدالله سفردامریکې متحده ایالاتوته اوداداري له لوړپوړوچارواکوسره دهغه لیدنه به دهغه اندیښنوپه بدلولوکې گټورتمام شي چې په واشگټن کې یې زیات لري اووایي چې دشمالي ټلوالې په واسطه دکابل نیول به سختې ستونزې رامنځ ته کړي. ډاکټرعبدالله پخوا ځوځله له واشنگټن څخه لیدنه کړې وه اوهغه یوواضح عړیدونکې، ځلاندویاندوی اوپه عامه غونډو کې یې خپل ځان ښه اداره کاوه. دتېروورځوپه بهیرکې هغه د سي اېن اېن او د بي بي سي له تلویزیون چې دکابل سره دنږدې لومړیوکرښوڅخه یې خپرونې کولې، راښکاره شو.زما په فکر هغه دشمالي ټلوالې دنظریاتوپلانونواودپریکړوپه څرگندولوکې اغیزناکه دنده ترسره کړه. عارف له دغه نظرسره روښانه شواوددغه شونې لېدنې دبحث په مهال هغه راژوندی خوشاله شو. هغه ددغه نظرسره هوکړه وکړه اووعده یې وکړه چې په دفهیم اوډاکټرعبدالله سره به په هغه سهاردغه موضوع وڅېړي.

له دې سره غونډه پای ته ورسېده اوعارف په بېړه سره لاړ. دعارف دتګ سره سم پنځه سوه زره ډالر موسمدستي بیرته خپل تورصندوق ته واچولې. په همغه وخت کې ما فکروکړچې دشمالي ټلوالې سره د اې گروپونودراتګ په اړه د موضوع ناکامي په دې کې وه چې مورددغه ماموریت په اړه کافي اندازه وضاحت نه و ورکړی چې په حقیقت کې دغه ماموریت د شمالي ټلوالې په گټه دی. دشمالي ټلوالې ځواکونوهغه ډول زده کړې چې د اې گروپونوهغوی ته برابرولی شوې،اړتیا نه درلوده. دوی کوچنی خوښه تنظیم شوی پوځ و،نه غیرمنظم جنگیالي. زه په دې هم ناکامه شوم چې د ډاکټرعبدالله کتنه له واشنگټن څخه د کرنلارو جوړوونکو د ډلو د مخالفت اندازه په یادوساتم. دغه

دواړه پېښې به په راتلونکې ورځوکې بیا موږ په تکراري ډول وځپي. دعارف دتګ ځخه لږ وروسته دشلېزنودزنداني له پلارسره مو مرکه پیل شوه.

کریس اوحافظ دغه مرکه په مخ بووله چې په مرکه کې دهغه ځوان کس پلار او ترونه شامل و. زه هم دغونډې په پیل کې ورګډ شوم څو د دغه دواړوکسانولپاره د دوی داهمیت ارزښت وینا وکړم.

دوی دواړه صادق ښکارېدل .پلاریې د په حالت کې د ښکېلتیا له امله یوځه ساده اوډېراحساساتي ښکاریده. له دې چې دی ددوه سي ای اې افسرانوسره په یوه کوټه کې ناست واودکابل دزندان ځخه دخپل زوی د خلاصون په اړه غږیدل. هیڅ متاثرنه و. ماکریس دغه کار ته پرېښود اوزه لاړم ځودعارف سره په غونډه کې دطرح شویوموضوع عاتو په اړه رپوټ ولیکم. کریس اوحافظ دغونډې ځخه د ځومخه د مالوماتو په درلودلوسره چې دزندان دبهرنی برخې یوه خاکه (نقشه)اودننه برخې یوه نقشه چې دده زوی په کې زنداني او د زندان د ساتونکو په اړه هم په کې مالومات ول، ترلاسه کړه . دزندان دبهرنی برخې نقشې هغه انځورته ډېرورته والی درلود چې موږدسټلایټ له لارې اخیستی و.موږباوردرلود چې بندیان هلته شتون لري.

کریس دغه دوه کسانوځخه یوشمېر پوښتنې، لکه دزندانیانو روغتیا،هوساینه، درملنه اوددوه امریکایي مېرمنودځای په اړه دمالوماتوپوښتنې وکړې. پلارراتلونکې اوونی دخپل زوی سره په زندان کې دلیدنې سمدستي وروسته بله غونډه هم چمتو شوه. ریک ډګروال ملهولانډ ته چې په ټاسک فورس ډاګرکې وټلیفون کړی واوهغه یې دشمالي ټلوالې سره دځانګړو ځواکونو د ګروپ پنجشېر درې ته دراتګ په اړه د پرمختګونوځخه خبرکړی و. مل هولانډ تصدیق کړه چې دغه لومړی اې ګروپ چې او ډي اې ۵۵۵ یا Tripple Nickle [1] نومېده ددغه ګروپ لومړنی دنده به دلایرزپه واسطه دهدف په نښه کول وي.

ریک اومل هولانډ دیونیفارم موضوع هم وڅېړله اومل هولانډ ټینګارکاوه چې دده کسان به په یونیفارم کې دننه کېږي نه په ملکې جاموکې. مل هولانډ اوس هم پلان درلود چې او ډي اې ۵۵۵ ( د دغه پوځي ګروپ نوم. ژباړن)دپنځلس اوشپاړس اکټوبرپه شپه رادننه کړي. کله چې کارونه یوځه کرارشول، ریک اوما لس ملیونه ډالر وګڼل ځکه په دوشنبه کې بکسونه خلاص شوي ول. ما غوښتل چې هرځومره ژرمقدار تصدیق کړم.

ما فکرکاوه چې په هر صندوق کې به پنځه ویشت ملیونه وي خو د ناځرګنده دلاملونو له امله شمېر توپیر درلود.

---

[1] (Triple) د درېو په مانا دی او (Nickle) د اوسپنیزو پیسو پنځه ګون ته ویل کېږي یانې درې پنځه ګونه یا (555) په مانا دی. ژباړن

لس ملیونه وو،په توربکس کې دپیسو دکېښودلووروسته ما اوریک ټول بکسونه په احتیاط سره وتړل او د هرصندوق په سرمو د مبلغ اندازه د هغه ربړ ټیپ چې په سرمو تړې تاوکړای و، ولیکله. پوښتنه د پیسو د خوندي کولو وه.
دغه څلوربصندوقونه ډېرلوی و او داسې ځای نه وچې پکې موږئې ساتلي وای. دځوځلوناسموکوښښونوله امله مې پرېکړه وکړه چې په ښکاره ځای کې یې کېږدم.

د دفترله توکومویوکونج پاک کړ او دوه لوړدېوالونه موترې جوړکړل. سمدستي له دغه ځای څخه به یا د کېناستوچوکۍ په توګه او یا به د کافي دپیالې یا د اوبو د بوتل دکېښودلوځای په توګه کار اخیستل کېده.
دغه ځای دیوې سترګې خوب،ارام غږېدلواویا دلوستلولپاره مناسب ځای ثبوت شو. دا زموږ د خوب لپاره ترټولو لوړ بیه (قیمتي)توشکه وه. دپیسو د رارسېدلوڅخه یوه اونۍ وروسته مورته دسي ټي سي د مالي افسر له خوا ټلیفون راغی. کله چې زه دټلیفون په کرښه شوم هغه له دې چې دلیکونوله لارې مې دلس ملیونود رسیدونو تصدیق کړی وای ، مننه وکړه. بیایې له ما پوښتنه وکړه چې ایا موږ دغه پیسې په یوه خوندي صندوق کې ساتو؟ ما ورته وویل چې صندوق نه لرو. هغه پوښتنه وکړه:نوبیا پیسې چېرته ساتی؟ ما ورته وویل چې تراوسه پورې په همغه لېږدونکو بکسونو کې دي او د دفترپه یوکونج کې مو ساتلي دي. دټلیفون دکرښې له هغې خوا یوڅه غلمغال، ژوولې او د غوسې ډک غبرګون راغی.کله چې مې یوڅه ساه واخیسته ویې ویل، چې دغه ساحې ته به د راتلونکې اکمالاتي سفرپه دوران کې یودانه خوندي صندوق درولېږم. ما ورته وویل چې نه مننه: موږهیڅ لارنه لروچې دلته زرپاونډه وزن لرونکی صندوق هاخوا اودېخواولیږدوو. د دې پرته ښایي چې درې یاڅلورصندوقونوته اړتیا ولروڅودومره پیسې پکې وساتو. نورې غالمغالې اودمقراراتوذکر یې وکړ. ما خبرې ورماتې کړې او ومې ویل:ګوره پیسې زموږددفترپه سیمه کې دی چې شپه اوورځ لږ ترلږه د سي ای اې یوافسر ورسره شتون لري. هیڅ افغانی ددفترساحې ته دبدرګې پرته نه راننوځي نود دې لپاره پیسې دګروپ غړي له نږدې ځار څخه بې برخې نه دي. په شته شرایطوکې څومره چې شونتیا لري هومره خوندي دي. بیا مې خبرې راغبرګې کړې اوومې ویل:سربیره پردې دغه صندوقونه دیوې سترګې خوب لپاره بهترین ځای جوړوي. زه وروسته په هغه ماسپښین له هانک سره وغږیدم. هغه زما لیک پنجشېرته د ځانګړو ځواکونو د لېږلو شمېر او د هغوی د یونیفارم دځرنګوالي په اړه لوستلی و. ما ورته وویل چې زما په فکر د ځانګړو ځواکونو لخوا د اېل ټي ډي (LTD) یا د لایزر په واسطه د طالبانو د مرکزونو په نښه کول به فهیم و هڅوي څو درې ته د ګروپ ننوتل

ومني.

سره له دې ما دسینټ کام دننه دکرنلارې جوړوونکواو د دفاع وزارت څخه ډاډ غوښته چې د او ډي اې دغه ګروپ ته به په ربښتیا هم د دغه مهمې دندې دترسره کولواجازه ورکړل شي اوکه د اې ګروپ دلته راشي اود اېل ټي ډي ماموریت ترسره نه کړي. دابه داسې ښکاره شي چې ما شمالي ټلوالې مشرانوته ددې دپاره چې د او ډي اې ځواکونه د دوی هېوادته رادننه کړم، دروغ ویلي واو دابه سي ای اې او د امریکې دپوځ ارزښت ته په جدي ډول زیان ورسوي اوزموږماموریت به له خطرسره مخامخ کړي. هانک وویل چې هغه به دغه موضوع د امنیت د ملي شورا د مشرانوپه غونډه کې رایاده کړي. هغه وویل چې ډاکټرعبدالله دسفرنظرواشنګټن ته یوښه نظرو.

هغه زیاته کړه چې دی به په دغه موضوع دبهرنیوچاروزارت او د امنیت د ملي شورا سره پرې کارپیل کړي. په همغه ماښام د یوولس بجوڅخه لږوراندې ممتاز راغی ویې ویل چې هغه دشمالي ټلوالې د جګپوړو چارواکو سره په یوه غونډه کې چې دځانګړوځواکونوپنجشېرته د راتګ په اړه پوښتنه ده. ګډون کوي. هغه وویل غونډه به ناوخته ترسره شي او انجینرعارف به دفترته راتلونکی سهار د پایلوسره راشي. په ورته وخت کې ریک یولیک راوښود اوپه هغه کې ویل شوي وچې د (دځانګړوفعالیتونوفرقه) افسرانو یو شمېر د درانده کارونوکارګوپراشوټونه پیداکړي دي اوپه جرمني کې دامریکې هوایي ځواکونویوې هډې ته لیږدول شوي دي. اوزموږافسرانوبایددهوایي ځواکونودکارګوبارپرسونل دخوړودیوې بلې ښړي مرستې دښه سمبال لپاره چې دهواله لارې به ترسره کېدله،روزنه ور کړې وای. داخل یې خواړه دپراشوټونوپه ذریعه په لویوبنډلوکې راغورځول. دوی فکرکاوه چې دغه بارياکارګودشپاړسم اکتوبر دسهاروختي ساعتونوکې کولی شي چې راوغورځول شي. په خواجه بها والدین کې به دغورځولوساحه یوځل بیا وکارول شي. داخل به خواړه په ښه اودګټې اخستنې وړ حالت راورسېږي. ریک نظر راکړ ، براډ چې نوی راغلی کس وباید د مېوري سره ولاړشي څو د هغه سره په تیارولو کې مرسته وکړي. دوی د دیارلسم اکتوبر په ورځ یوځل بیا خواجه بها والدین ته ورپورې شي څوله جنرال بريالي خان سره بیا یوځای شي. موږتلویزیون دانګړڅخه دننه دهلېز ته چې د دفتر د سیمې څخه لږ دباندې و، وړی و. د هوا د باراني او سړه کېدلوله امله موټلویزیون حتی د دهلېز یا پټنځي لاندې هم نور په بیدیا کې نشوکتلای. افغان کارمندان له دې امله چې ټلویزیون کتلو ته یې نوره اجازه نه درلوده، مایوسه ول. موږهم یوڅه مایوسه شوو.

درې یاځلور ورځې مود بي بي سي او سي اېن اېن دواړه شبکې درلودې خو بیا سي اېن اېن موله لاسه ورکړو. جان محمد وویل چې دهغه تخنیګروفکر کاوه چې

سي اېن اېن څکه سګنل بندوي چې په پټه او د غلې په توګه دکارولو مخه یې ونیسي(لکه موږ چې په وړیا ډول نوموړې شبکه کتله)[1]. زما په باور ښه دلیل یې دا و چې جان محمد په سي اېن اېن باندې د ښکلو ښځینه ویاندویانو ته په کتلو ګناهګار شوی و! د هغه افغان کارمندان به کله چې د سي اېن اېن د خبر په مېز باندې ښځینه رابښکاره شولې، یو څه به مغشو ش شول. پاپي وویل چې د بي بي سي ټلویزیون په درلودلو سره له دخه خطراتو څخه نور په امن کې و. ځکه چې د بې بې سي ښځینه نطاقې واضحً د دوی د ښکلا له امله نه وې ګومارل شوې. کله چې ممتازلاړ،په دهلیز کې کېناستلم. او د د بې بې سي د خبرونو د کتلو لپاره مې هڅه وکړله، سر مې ګرځېده. د بدن اوبه مې کمه وه او یو څه تبجن هم وم. ګټریټ(یو ډول نوشابه. ژباړن) هم مرسته کوله. ایموډیم هم د ناروغی د ښښو ښښانو په راکمولو کې مرسته کوله.

زه پو هېدلم چې د سپېرو په خوړلو سره به د څو ورځو په بهیر کې نورمال حالت ته راوګرځم. د کېسې یوه برخه مې وکتله چې یوه افغانه کورنۍ چې د افغانستان په سوېل په کندهار کې اوسېدل، بمبار شوې وه.

دغه یوازیني انځورنه وو چې ټوله ورځ مې په دغه تلویزیون لیدل. یو ژوبل شوی سړی چې په یوه تذکره کې پروت و. په یوه دهلیز کې چې د روغتون په نوم ترې کار اخستل کیده، پروت و. یوه کوچنۍ نجلۍ په یوه چپرکټ کې پرته وه چې په سر یې پټۍ راتاو شوې وې کېمرې ته په مایوسی سره کتل.

ایډ وویل چې خدایه وبه وایي چې موږ یوازې ملکي خلک بمبار کوو!؟ څو ځله دغه یوه کورنۍ دوی په تلویزیون ښودلی شي(ځکه چې یوه افغانه کورنۍ ده که و هم وژل شي، ددې ارزښت نه لري چې د یوه تلویزیون په ښیښه راځرګنده شي. ژباړن) ما خپل سر د کرکې په ښودلو سره وښوراوه. سر مې هم ګرځېده او د خپلې کوټې په لورې وخوځېدلم!د وړاندینۍ دروازې څنګ ته د ځځلو ټوکرۍ ته ورغلم څو د اوبو دوه خالي بوتلې راواخلم.

زه ډاډه وم چې د سهارد رارسېدلو وړاندې به دواړو بوتلونو ته اړتیا پیداکېږي.

---

[1] سي اېن اېن او زیات شمېر نور نړیوال ټلوېزیونونه د لیدلو په مقابل کې کاردونه پلوري او له دې لارې عاید لاس ته راوړي، ځینې وخت کېدلای شي چې د کارډ د اخستلو پرته ولیدل شي چې لیکوال ورته اشاره کوي. ژباړن

# پـنـځـه ویـشتـم څـپـرکـی

د پنځلسم اکتوبرپه سهار د تلګراف په واسطه خبرراکړل شوچې ارجي او د الفا پاتې ګروپ تاشکند ته رارسېدلی اوافغانسـتان تـه د راننوتلولپاره وروستی تیاری نیسي. د ځنډ یوازېنی لامل یې د ازبکستان او تاجکستان حکومتونو څخه د الوتنې لپاره وروستنی اجازه وه. الفا ګروپ له جنرال عبدالرشید دوستم سره چې دشمالي ټلوالې جګپوړی قومندان و او په لوېدیځه برخه کې په سیمه ییـزډول په خپلواکه عملیات کړل چې دهغه ځواکونه دمزارشریف په سویل کې متمرکز و. د سپټمبر د یوولسمې څخه څومیاشتې وړاندې سي ای اې دجنرال دوستم سره په تاشکند کې د هغه د استازي په واسطه په اړیکه کې وو!

دوستم یوکلاسیک جنګ سالار او یو ربښتینی فرصت طلبه (هغه څوک چې له وخـت نـه ګټـه اخلـي)او د خپلو غـوره شخصي ګټـو په خـاطر دخپلـې وفـاداری په بـدلولو اومعـاملو جوړولـوکې ډېرمـاهردی. هغـه پـه شـمالي کـې دازبـک لږکیو(عقلیت)رهبردی.

د جهـاد پـه کلونـوکې د جوزجـان د ملېشـو قومنـدان و. د جوزجـان ملېشـه یـو ځواکمن ځواک وه چې روسانوته یې خدمت کاوه. هغه په ۱۹۹۲ کال کې کله چې پـوه شـوچې د نجیـب الله کمونسـت رژیـم راپرځېـږي ، د مجاهـدینو د لیکوسـره یوځای شو.

دکلونوپه تېرېداسره هغه زور کله ډېر او کله به هم لږ و خود ۲۰۰۱ کال په پیل کې دشمالي ټلوالې اومسعود سره یوځای شواوبیا دطالبانوپه ضد دجګړې لپاره خپل قومي ټټوبي مزارشریف ته را وګرځېد.

جنرال دوستم ته د سي، ای،اې د دویم ګروپ د لېږلولپاره دوه ساده خـومهم لاملونه موجود و. لومړی داچې دوستم سره دالفا ګروپ دځایونې او راوستلو په خاطرد اړین وخت لپاره ټینګې اړیکې درلودې. هغه دکمېټ په لحاظ هم شهرت درلـود اود جګړې د ډګر یو اغېزمن قومندان وچې په پرتلیز ډول مجهز او ښـه روزل شـوي ځواکونـه یـې درلـودل. زه کـه څـه هـم چـې د سـي. ای. اې ګـروپ دلېږلولپاره موجنرال دوستم د پنجشېرڅخه بیدیاکې لومړی قومندان خوښ کړ. پوهېدم چې جنرال فهیم اودشمالي ټلوالې مشران به له دغه پرېکړې څخه نا رضا وي. سره له دې چې جنرال دوستم دمسعود سره جوړه کړې وه، هغه په ختیه

ازبک و. هغه دجهاد په وختونوکې دروسانولپاره په ډېرځناورتوب سره جنګېدلی و. اوپه سختوجګړوکې دمسعود دځواکونوسره څوځله ټېر په ټېرشوی و. دشمالي ټلوالې مشران په هغه بې باوره اوهغه يې نه خوښېده. همدارنګه دويم ځواکمن قومندان په مزارشريف کې استاد عطاو.

هغه يوباوري تاجک اودمسعود دشمالي ټلوالې يوجګپوړی چارواکې و. دعطا ځواکونه په ځواکمنتوب کې تقريبا د دوستم د ځواکونوسره مساوي وو، د مزار په ختيځ کې متمرکز وې. زما اوريک سره دلومړيوليدلوپه مهال جنرال فهيم دعطا څوځله يادونه کړي وه او ويل يې چې عطا په مزارکې ډېرغښتلی واومورباید له هغه سره معاملې وکړو. د او ډي اې ۵۵۵ ګروپ د راننوتنې موضوع تراوسه دحل دنشتوالي له امله ما نه غوښتل چې انجينرعارف له دې چې مور غوښتل چې د سي، ای، اې يوګروپ دوستم سره ديوځای کېدلولپاره په راتلونکوڅوورځوکې ليږو، خبرکړم. ميوري او براډ خواجه بها والدين ته دتګ لپاره وروستني چمتووالی ونيوه. دبراډ لپاره به دپېژندګلوی ښه ماموريت وي ځکه چې مېوري دخورودغورځونې ماموريت يوځل تردې ورانديې هم ترسره کړی واودجنرال بريالي خان سره يې ښې اړيکې درلودې. اړيکوملګرتيا اوباوربه براډ ته هم وليږدول شي. دسهار په لسوبجوعارف راغی اومور يوه لنډه غونډه درلوده. هغه وويل چې دشمالي ټلوالې يوه شپه ورانديې ناوخته دڅوساعتونولپاره درې ته د اې ګروپ دراتګ موضوع وڅېړي. جنرال فهيم له دې روښانه هدف چې د طالبانو د موقيعتونو د لايزر په واسطه په نښه کول و، دټول ګروپ دراتګ سره هوکړه کړي وه خود اې ګروپ دشمالي ټلوالې سره دعملياتوپه مهال بايدملکې جامې واغوندي. عارف وويل چې دشمالي ټلوالې مشران دلايزرماموريت دې ته وهڅول چې د اې ګروپ درې ته ددندې لپاره دراتګ سره هوکړه وکړي. زه په ادبي ډول غوږ وم بيا مې عارف ته وويل چې زه له دې چې اې ګروپ راتګ هوکړه شوي،مننډوی يم خوداغوښتنه چې دوی بايد يونيفارم په تن ونه لري يوه جدي تيروتنه ده. ما وويل چې زه به له دې سره سره دغه شرط له قرارګاه اوپه ټاسک فورس ډاګرکې له ډګروال مل هولانډ سره هم يادونه وکړم. ما عارف ته وويل چې زمورډ سي ای اې دويم ګروپ په تاشکند کې واودجنرال دوستم سره ديوځای کېدلولپاره وروسته دهغې چې لوجستيکي چمتووالی اودهوايي ليکې اجازې يې اخيستي وای، تيارو. عارف هم په برابره توګه په ادب سره غوږنيولای و ويې وويل چې دماموريت دغه پلان يوه جدي تېروتنه وه. هو، دوستم هم دشمالي ټلوالې جګپوړی غړی دی خواستادعطا هم په مزارکې دشمالي ټلوالې يومهم قومندان و.

جنرال فهيم به له دغه پريکړې له امله خپه شي. ما يوازې دومره ځواب درلود

چې دغه پرېکړه زما دقرارګاه له خوا وروسته دښه فکرخځه شوې وه اودوستم سره موږ نېغ په نېغه په اړيکه کې وو. دالفا ګروپ ننوتنه اوهلته تګ به هرومرو ترسره کېږي پرته له دې چ پد فهيم نيوکه په نظر کې ونيول شي. يوشی چې دعارف په شخصيت کې مې خوښېده هغه دا چې په شخړه ايېزه مسايلوباندې به په ډانګ پيېلې ورکړه اوراکړه کوله اوبيا به هم دهغې وروسته مودب پاتې کېده. موږ به دواړو دا احساس کاوه چې بل وګړی (ددوی مشران. ژباړن)د دغه جدي موضوع په اړه ناسم دی خو موږ خبرې اترې مثبتې اومسلکي ساتلې. عارف غونډه پای ته ورسوله او له ما يې غوښتنه وکړه چې د ډاکټرعبدالله سره په ماسپښين کې د هغه وړانديز په اړه چې د واشنګټن ځخه د ده د ليدلې په اړه تېره ورځ کړی و،خبرې اترې وکړم. عارف وويل چې عبدالله د دغه ليدنې په اړه لېواله و .کله چې دغه موضوع د شمالي ټلوالې د تېرې شپې په غونډه کې ياده شوې وه، جنرال فهيم هم له دغې موضوع ملاتړکړی و. موږ د ليدنې لپاره وخت وټاکه .عارف وويل چې ممتاز به ديوه موټر چمتووالی ونيسي ځوما او ريک دعبدالله کوچنی باندې ته چې د استانې لاندې وه، ورسوي.

ريک په کرشي خان اباد کې ډګروال مل هولانډ ته ټليفون کړی وځو ورته ووايي چې شمالي ټلواله له دې سره هوکړه وکړله چې د ځانګړو ځواکونو ګروپ ته هرکلی ووايي خو ټينګار يې وکړ چې بايد ملکي جامې په تن ولري.

د ډګروال غوسه راوپاريده، هغه غوښتل چې کسان په پوځي يونيفارم کې وي. ريک ډګروال ته ډاډ ورکړ چې دغه موضوع به د بيا لپاره د ډاکټر عبدالله سره د ماسپښين په مهال وځېړي. موږ هيله مند و چې عبدالله به په حالاتو باندې د سياسي اغېزې سره برابر او همغږي وي . ريک هم ډګروال مل هولنډ ته ډاډ ورکړ چې موږ فکر کوو شمالي ټلواله بايد د يونيفارم د موضوع په اړه خپل دريځ بدلولو ته وهځول شي.

ډګروال وويل چې دغه موضوع په سوکام[1] کې د ده د امرونوکړی(سلسله مراتب) ته ورسوي خوهغه هيله مند و چې د يونيفارم د موضوع دهوکړې او نه هوکړې په پام کې نه نيولو سره به ده ته نن ماښام د ځانګړو ځواکونو د ننوتنې امر وشي.

افغانستان ته د ځانګړو ځواکونو د ورننباسلو له امله په هغه باندې ورځ په ورځ فشار زياتېده. ريک د الوتنې د ليکې د اجازې د ورکړې پوښتنه ترې مطرح کړله خو مل هولنډ وويل چې په دې اړوند کوم خبر نشته. ممتاز مو په همغه ماښام د ځانګړو ځواکونو د ګروپ د راتګ ځخه خبر کړ او له هغه مو وغوښتل

[1] (Socom) سوکام د ځانګړو ځواکونو مرکزي قرارګاه ده چې د عملياتو د پرمخ بېولو مشرتوب کوي. ژباړن

چې د لېږد او رالېږد وسېلې په سيمه کې چمتو کړي.

زموږ پيلوټانو باور درلود چې د استنې په هوايي ډګر کې چې زموږ چورلکه ولاړه وه، د متحده ايالاتو د ځانګړو ځواکونو د راتګ لپاره ترټولو ښه ځای دی.

سټان به د ځانګړو ځواکونو د رارسېدلو وړاندې هڅوی ته د ښکته کېدلو محل د کېمياوي څراغونو په واسطه په نښه کړي.

د امنيتي دلايلو او د ناڅاپي حيرانتيا لپاره د امريکې پوځ خپلې ځانګړې دندې د شپې په تياره کې ترسره کوي. د دوی د چورلکو مامورين د شپې په مهال د الوتنې په تکتيک کې په نړۍ کې تر هرچا ډېر ښه دي. ددغه ډول عملياتو سره چې په ډګر باندې د دوستانه ځواکونو لخوا ورته هرکلی ويل کېږي. د ښکته کېدلوځای په ځانګړي نښه باندې په نښه کېږي چې په هغې سره پيلوټان د شپې د دوربينو په واسطه په اسانۍ سره ليدلای شي.

د يوه نامناسبه ځای د نښه کېدلو په پايله کې پيلوټ اړ کېږي چې ماموريت ته پای ورکړي او خپلې قرارګاه ته وګرځي.

سټان د سېمې د ښه او منظم په نښه کولو دپاره ښه انتخاب و. ما د ترورېزم په وړاندې رياست مشر کوفر بلاک ته ټيليفون وکړڅو د امريکې د پوځ د بمبارۍ ستراتيژي ورسره وڅېړم او په ورته وخت کې يې د هغه ستونزو او ربړونو څخه خبر کړم چې موږ د شمالي ټلوالې سره د يونيفارم د موضوع په اړه درلودل.

کوفر خبر راکړ چې د امريکې مرکزي قوماندې قرارګاه په مزارشريف او کندوز سيمو کې هدفونه په نښه کوي او دا ځکه چې په کابل کې هومره ارزښتناکه هدفونه نه ترسره کېږي.

زه د دې په اورېدلو سره هک پک شوم. د تېرو دوو اونيو په ترڅ کې موږ د قرارګاه اوسينټ کام(مرکزي قومانده) ته د کابل سره په سيمه کې د طالبانو د پوځي ځايونو په سلګونو جغرافياوي کوارډينات ورکړي دي. اوارې سيمې چې دکابل د شمال څخه د شمالي ټلوالې د کرښو په وړاندې د چاريکارو او بګرام سره نږدې غزېدلې وې. د هدف لپاره يو غني چاپيريال و. داسې يو چاپېريال چې په ټول افغانستان کې نه پيدا کېده. ما له دې پرته وويل چې دکابل په خوا اوشا سيمه کې د طالبانو بمباري يوه سياسي پرېکړه وه، نه يوه نظامي پرېکړه. په مزاراوکندوزکې د ملکي خلکودسراومال زيان يوازې دکابل په شمال کې د اوارو سيموسره په لويوالي کې برابردي. موږترخپله وسه پورې کوښښ کاوه چې سينټ کام ته سم کوارډينات ورکړو. کوفر وويل چې په رښتيا هم هغه سياسي مناقشه چې دکابل په اړه بايد څه وشي اوشمالي ټلوالې ځواکونوته دکابل په دښارپه نيولولپاره داجازې ورکولوروسته داحتمالي سياسي ناهيلي او پايلو په اړه د اېن سي سي په منځ کې لفظي شخړې تر اوسه هم دوام لري.

او ډي اې۵۵۵ ګـروپ د دننــوتنې پــه اړه کــوفر وويــل چــې واشــنګټن نــن سهارخبرورکړل شو چې ازبکستان او تاجکستان د دوی دخاورې څخه افغانستان ته د نن شپې لپاره د دغه ګروپ د ننباسلو اجازه ردکړې ده او وايي چې دوی د حالاتو د ارزښت ټاکنې لپاره زيات وخت ته اړتيالري.

زه ديوې خواه ددوی د بې ميلي سره ارام هم شوم.نوموړې موضوع ماته وخت راکړڅوددډاکټرعبدالله اوانجينرعارف سره ديونيفارم په اړه خبرې اترې وکړم. ما له دې پرته تاکيد وکړ که د او ډي اې ګروپ کله هم دلته راغی دوی ته بايد اجازه ورکړل شي څودلايزرماموريت د دوی اصلي دنده وګڼل شي. کوفر ډاډ راکړچې په دغه موضوع باندې کارروان دی. په حيرانتيا سره که څه هم چې دوی دهـوايي ليکـې اجـازه د او ډي اې۵۵۵ ګـروپ لپـاره ردکـړی وه دازبکسـتان او تاجکسـتان حکومتونـود سي ای اې د الفا ګروپ دپاره اجازه ورکړه. پلان اوس دالفا و چې د شپاړسم او او لسم اکټوبر په شپه بايد د دندې لپاره الوتنې کړې وای. په ښکاره ډول ازبکستان او تاجکستان په افغانستان کې د سي، ای، اې له پټوعملياتوڅخه په ملاتړ کولوکې کومه ستونزه نه درلوده . خودوی تر اوسه په ښکاره ډول په سيمه کې دامريکې دپوځ دعملياتوڅخه دملاتړکولولپاره سياسي موضوعات نه وو حل کړي.

کوفرووېل چې دغه دلوړې سويې ډيپلوماسي موضوع ده. دولس مشراود دوی دواړه حکومتونـــــوترمنځ ټليفــــوني اړيکــــې نيــــول شــــوې وې څودرېږونواوستونزوډکه دغه موضوع حل کړي. کاپرډاډ راکړچې هغه به ماته دټيلګراف له لارې ددغه ديپلوماتيکه تمرينونودنتايجوپه هکله راتلونکي سهار خبر راکړي. ما ممتاز له دې چې د او ډي اې ۵۵۵ ګروپ دندې دراتګ څخه ديوڅه وخت لپاره وځنډيده اوهيله مند يوچې په راتلونکوڅوورځوکې به اجازه راکړل شي. ما ورته تاکېدوکړچې د اې ګروپ يوازې وځنډيده خو راتګ يې لغوه شوی نه دی. ممتاز وويل چې هغه به سمدستي لاړشي څودغه خبرعارف ته ورسوي له دغه خبرسره مې دهغه په غېرکې ارام وموند.

دعبدالله سره زموږليدنه دمازديګرپه پينځوبجوپيل شوه. عبدالله داستنې څخه سويل لـوري تـه دڅوميلوپـه واټـن يـوه بانـده (تفـريح لپـاره کـوچنی ځـای. ژباړن)درلوده. چې يوکوچنی سړک دغونډۍ لورې ته ورغلی وچې ده ته يې دسيند او د درې په ختيځ لورې کې دغونډيو يوه ښکلي منظره ورپه برخه کوله. لکه څنګه چې هيله مند وم، عبدالله يوازې و. ګرم ښه راغلاست يې راته ووايه. هغه لکه په عادي ډول لويديځ ډوله جامې په غاړه وې او وروسته دجبري چای د راوړلوڅخه هغه په نرمه چوکۍ باندې د ارام کولو په وخت موږ ته هرکلی ووايه. هغه ترډې مهاله زموږ د همکارۍ څخه خوښ و او ويې ويل چې هغه پيسې چې

مور ورته تر اوسه ورکړي وې، له هغې څخه منندويه دی.
دا هم رښتيا وه چې دکابل په شا او خوا کې شمالي ټلوالې دبمبارۍ هيله درلوده خوهغه پوهېده چې دبمبارۍ څرنگوالی او ډول د سياسي فشار تر اغېزې لاندې دی. د هغه صادقانه خبرې د دې لامل شوې چې زه په واشنگټن کې د سياسي حالاتو بحث ته چې مور ورسره مخامخ و، دروازه ورپرانيزم.
ما ورته وويل چې هلته انديښنې وې چې په کابل کې دتاجکو بريا به له پښتنوڅخه دغچ په خاطر چې د طالبانوملاتړ يې کړی و، د وينو د ډنډ د جوړېدا سبب وگرځي. دا انديښنې هم وې چې دشمالي ټلوالې له خوا د کابل نيول به هغوی دې ته زړورکړي چې دپښتنوکلتوري سيمو سوېل اوختيځ ته لاس ور وغزوي څو د طالبانو وروسته د قدرت په شريکولو کې د سياسي خبرو اترو لپاره مهم اوستراتيژيکه گټه لاس ته راوړي. ډاکټرعبدالله وويل چې دی له دغه انديښنوڅخه خبردی خوهغوی دستاينې وړنه دي. ده وويل چې په ۱۹۹۲ کال کې داحمدشاه مسعود ځواکونه په کابل کې له ښه راغلاست سره مخامخ شول. يادونه يې وکړه چې دغه ځواکونو د کابل د نيولو په مهال دخلکوسره ښه سلوک کاوه. په کابل کې اعدام،په زندان کې اچونه، او محکمه کول د هغه چا چې له روسانو يا د نجيب الله رژيم سره خدمت کړی وي،نه ترسره کېده. عبدالله وويل چې دا د پاکستانيانو او پښتنوهغه پروپاگنډ دی چې غواړي دشمال تاجک او نورلږکي له صحنې څخه جلا اوله پامه وغورځول شي څو يو محافظه کار پښتون حکومت چې د پاکستان د زيات نفوذ لاندې وي، واگې ترلاسه کړي. ډاکټرعبدالله له دې هم خبر و چې د جهاد د وختونويوجگپوړی پښتون قومندان عبدالحق هم په واشنگټن کې دکړنلارې جوړونکوسره نږغ په نږغه په اړيکه کې و او د يو څو شتمنو افغان ـ امريکايي سوداگرو ملاتړ يې درلود چې هغوی د امريکې د کړنلارې جوړونکوله ټولنوسره غښتلي اړيکې درلودې. د غښتلي سياسي هيلو پرته عبدالحق د مسعود او د تاجکو هميشنی مخالف و. د بهرنيو چارو په وزارت اود اېن اېس سي مهمو چارواکوپه منځ کې د هغه ډېرشهرت د ستونزو لامل گرځېده ځکه چې ده به هم د تاجکوپه وړاندې هغه منفي نظر چې د کابل څخه د هغوی ليرې ساتل اوپه سوېل کې په پښتنو باندې تمرکز و، له ځان سره درلود. عبدالله هيله درلوده چې کېدای شي چې له واشنگټن ليدنه وکړي او د جگپوړوکړنلارې جوړونکې ډلې سره وويني، دی به وتوانيږي چې دشمالي ټلوالې سياسي کړنلاره ورته په ښکاره الفاظوکې بيان کړي او هيله مند و چې دهغه کسانو بې باوري او انديښنې به له منځه يوسي کوم چې دافغانستان دتېرڅه دپاسه شل کلن ځورېدلي اوکړېدلي تاريخ باندې نه پوهېږي. زه هم له دې چې د ده ليدنه له واشنگټن څخه مهمه ده،موافق شوم. ډاکټرعبدالله داوړانديز هم وکړ

چې له ده سره په دغه لیدنه کې دشمالي ټلوالې د ننني کړی او د مسعودکشر ورور ولي مسعود هم ملګرتیا وکړي. ما کوښښ وکړ چې دغه نظرته زما منفي غبرګون پټ کړم خوبریالی نه شوم. ولي او د هغه ورور احمد ضیا مسعود دواړو دا تجربه او ځلا نه درلوده چې په لویدیځ سیاسي غونډې کې په اغېزناکه توګه دشمالي ټلوالې استازیتوب وکړي. ډاکتر عبدالله زما ربړوونکي غبرګون ته موسکی شو، ویې ویل چې شمالي ټلواله د ولي مسعود په شاملولو کې جدي ده. په دغه کار سره به نوموړې لیدنې ته د مسعود د کورنۍ په ورګډولو سره مشروعیت ورکړل شي او واشنګټن ته به ځرګنده شي چې شمالي ټلواله حتی د مسعود د وژنې وروسته هم سره متحده او یو ځای ده.

د ولي مسعود د سیاسي مهارت او توان په اړه مو دواړو هیڅ نظر ور نه کړ. عبدالله وویل چې د شلم اکتوبر وروسته هغه هر وخت کولای شي چې واشنګټن ته سفر وکړي.

ما ورسره وعده وکړه چې خپل دفتر ته د رسېدلو سره به دغه پیغام د سي، ای،اې قرارګاه ته ورسوم. ما باور درلود چې هر څومره ژر دغسې لیدنه ترسره شي، هومره به بهتره وي. د غونډې په بهیر کې مې ورته وویل چې د نن شپې د ځانګړو ځواکونو د ننوتلو پلان وځنډید.

بیا مې د ګروپ درې ته تر رسېدلو وروسته د هغوی د یونیفارم موضوع یاده کړله. ما ورته وویل چې یونیفارم لرل نه یوازې هر سرتېري ته اهمیت لري بلکه په واشنګټن کې ددغه موضوع د اغېزې د پالیسي جوړونکو لپاره هم ډېره مهمه ده. ډاکتر عبدالله کوچنۍ موسکاوکړه او ویې ویل چې هغه د یونیفارم د لرلو په اهمیت ښه پوهېږي. هغه وویل چې دی په خپله د ځانګړو ځواکونو په یونیفارم درلودلو سره ملاتړ کوي خو ویې ویل چې د شمالي ټلوالې د رهبري په دایره کې به نور کسان د بهرنیو ځواکونو په ښکاره ډول ښودلو سره د خپل ځان سپکاوی وګڼي!؟

د شوروي اتحاد خاطرې اوس هم ژوندی دي او همدارنګه د بمبارۍ بې اغېزې کمپاین او د طالبانو او د عرب ځواکونوپه وړاندې د بمبارۍ د اغېزې د نشتوالي له امله د شمالي ټلوالې په مغزو کې د متحده ایالاتو حکومت د هغه وعدې په اړه چې د طالبانو په وړاندې د جګړې کول و،پوښتنې راپورته کړي دي. هغه وویل چې د خپلوملګرو سره به په نوموړې موضوع بیا ووینې او د دغه موضوع په اړه به د مثبتې پریکړې لپاره زور واچوي. ما د غونډې د پرېښودلو پر مهال د پرمختګ احساس وکړ.

# شپږ ویشتم څپرکی

د شپاړسم اکتوبر پر سهار مو د مختلفو خبرونو په رارسېدو سره پیل کړ. لومړی له ژمنې سره سم زما او د کوفر تر منځ دېنځلسم اکتوبر د خبرو په څار د کوفر څخه یو هیله مند لیک راغی.

د شپاړسم او اولسم اکتوبر په شپه د سي ای اې لخوا مزار شریف سیمې ته د الفا ګروپ د لېږلو په سر د کرنلارې جوړونکې ټولنې په منځ کې یو بل مېز(بحث) چې د شمالي ټلوالې او د کابل د شاوخوا په اړه باید څه وشي، رامنځ ته کړ. ولس مشر په شمال کې د ژامې ماتوونکي ګروپ لخوا د ترسره کېدونکې څېړنې څخه خوښ و او د شمالي ټلوالې د لارې دخلاصون سپاربښتنه یې وکړه(لیکوال دلته د شمالي ټلوالې د لومړیو کربښو څخه د کابل په لورې پرېښودل منظور دي. ژباړن). [1]

افغانستان ته د پوځ د ځانګړو ګروپونو په لېږلو کې د ځنډ له امله،د کابل په شاو خواد شمال په سیمو کې د طالبانو په وړاندې په جګړه کې د سملاسي پرمختګ د اړتیا فکر را پورته شو. په پای کې کوفر ما ته دا لاندینی دندې را وسپارلې.

ما باید د جنرال فهیم سره بیا لیدلي وای څو ډاډ مې ورکړی وای چې د امریکې حکومت د شمالي ټلوالې سره غواړي کار ته دوام ورکړي او همدارنګه باید فهیم مې هڅولی وای څو خپل ځواکونه د جګړې لپاره په بشپړه توګه تیار کړي.

ما باید فهیم ته د هغه د جنګیالو، په پنجشیر کې د ملکي خلکو سره د بشري مرستې او د شمالي ټلوالې هغه قوماندانانو لپاره چې د هېواد په شمال کې یې فعالیت درلود په ځانګړي ډول استاد عطا ته چې هغه د سي ای اې د الفا ټیم د

---

[1] د بون د پرېکړې په اساس د کابل ښار ته د طالبانو د ماتې وروسته باید لومړی د (ISAF) ځواکونه راغلي وای، چې شمالي ټلوالې د دغې پرېکړې په مخالفت کابل ته راننوتل او ځای ځای یې پښتانه وځورول. ژباړن

هغه له سیال جنرال دوستم سره یو ځای کېدلو له امله خپه کېده، نقدې پیسې ورکړې وای.

دا یو خوشاله وونکې خبر و ځکه چې زه ډاډه وم چې د تېرو څو ورځو خپګان او مخالفت د شمالي ټلوالې شوق سوړ کړی و. د سهار په اوو بجو میوري چې په خواجه بهاودین کې و. د پاپي سره یې د سپکې لېږدونکي مخابرې چې زموږ په کور کې د لوی مرکزی سیستم سره تړل شوې وه،اړیکه ونیوه.

د هوا له لارې د خوړو بشري مرستي اکمالات که څه هم چې د همغه سهار د دوو بجو پورې ځنډېدلي و په کامیابۍ سره تر سره شوي وو. د سي ای اې لخوا ورکړل شوي پراشوټونه، د خوړو درندې بنډلې په ټاکلي ځای باندې روغ رمټ را غورځولي وو.

جنرال بریالی خان خوښ و او د سهار له سپیدې چاود سره سم یې جنرال فهیم ته د دغه خبر له امله د مخابرې اړیکه ونیوه. د خان کسان د وروستیو بنډلو په راغونډولو بوخت و، خان وویل چې هغه پلان لري چې په همغه ماسپښین به د خوړو وېشل پیل کړي.

موږ هوکړې ته ورسېدو چې میوري او براډ هلته د دغه پروسې د څارلو لپاره پاتې شي او د اولسم اکتوبر په سهار به دوی د چورلکې په واسطه له هغه ځایه را پورته کړای شي. په پای کې مې یو څه ښیګڼې انجینر عارف ته ورانديې کړې.

خو بیا مې د سنټ کام[1] لخوا لیک ولوست چې په هغې کې د ازبکستان او تاجکستان لخوا د الوتنې لپاره د اجازې ردولو او د شمالي ټلوالې د ملکي جامو موضوع ته پکې له غوسې ډک غبرګون شوی و. د تروریزم په وړاندې د ریاست څخه د سهار په تلګراف کې لیکل شوي و چې دغه ځنډ په وزارت دفاع باندې په افغانستان کې د امریکې د پوځ د بوټ ایښودلو موضوع د پرمختګ د نشتوالي له امله د این ایس سي یا د امنیت شورا لخوا نور فشار هم زیات شوی و.

که څه هم چې د ژامي ماتوونکي ګروپ په پنجشیر دره کې شل ورځې تېرې او په شپاړسمه او اولسمه شپه د الفا ګروپ د مزارشریف سیمې ته ننوځي، تر دې مهاله د امریکې یو پوځي هم افغانستان ته نه دی ننوتلی. دغه حقیقتونه تېره ورځ د این ایس سي په غونډه کې د دفاع وزیر ته په خوړمنه توګه په ګوته شوي و.

په پای کې د هانک لخوا یو تلګراف راغی ، لیکل شوي و چې د کرنلارې جوړونکو ډلې له خوا په ځانګړي ډول د بهرنیو چارو وزارت لخوا د ډاکټر عبدالله د لیدنې غوښتنې ته لومړنی غبرګون منفي و.

---

[1] سنټ کام : د امر ورکولو مرکزي قوماندانی ته وایي چې انګرېزې متن یې ( Central Command)یا مرکزي قوماندانی ده. ژباړن

د بهرنیـو چـارو وزارت ځکه د ډاکټـر عبـدالله د لیـدنې مخالفـت کـړی و چـې د افغانستان سیمه ایز ګاونډیان به د امریکې لخوا د شمالي ټلوالې د بهرنیـو چـارو وزیر د مېلمه کولـو تـه د تاجـک شـمالي ټلـوالې تـه د سیاسـي تصـدیق پـه سـترګه وګوري. پاکستانیان به په ځانګړي ډول له دغـه خوځښـت څخـه خپـه شـي او بیـا بـه دغه لیدنه په سویل کې په پښتنو قومونو باندې هم منفي اغېز وکړي.

تلګـراف دا هـم زیاتـه کـړه چـې دغـه وړانـدیز شـوې لیدنـه بـه د سـي ای اې د قرارګاه لخوا ځکه ملاتړ شوې وه چې دغه لیدنه به د اېن اېس سي ټولنې[1] ته په ډاډه توګه وښیي چې څنګه د ځواکمنو تاجکو سره معامله وشي.

هانک لیکلی و چې په دغه موضوع باندې به کار کولو ته دوام ورکړي. عبدالله او شمالي ټلوالې ته دغه زړه بوږنونکی خبر و چې ما باید ور رسولای وای. ما له ځان سره پرېکړه وکړه چې یوه ورځ یا زیات وخت یاد نـه کـړم څـو د تروریـزم پـه وړاندي مرکز یا سي ټي سي ته وخت ورکړل شي چې کوښښ وکړي او موضـوع زموږ په ګټه حل کړي.

انجینـر عـارف پـه همغـه نهـو بجـو راغـی څـو د شـلټر نـو موسسـې د بنـدیانو د ژغورنې په اړه تازه پرمختګونه راسره شریک کړي. لنډه خو مثبته غونډه وه. عارف وویل چې هغه کابل ته یو افسر لېږلی او د کابل په استخباراتو کې یـې د طالبـانو له جګپوړي افسر سره بیا اړیکه ټینګه کړې. دغه اړیکه ګټوره ثابته شوه.

د عارف افسر او د طالبانودغه افسر سره وینه شریکه وه(خپلـوان و. ژبـاړن) د شلټر نو د بنـدیانود پرېښـودلو دپـاره د طالبـانو دغـه افسـر لېوالتیـا درلـوده چـې د پیسو لپاره معامله او خبري اترې وکړي.

د ده موقف ته په نظر او هغه شمېر خپلوان چې د کابل په پولیسو او امنیتي اورګانونو کې یي لرل د طالبانو دغه افسر ډاډه و چې د بندیانو چټک خلاصـون او د هغوی لېږدونه د شمالي ټلوالې کرښو ته ترتیبولی شي.

د زندانیانو د خلاصـون لپـاره یـې څلـور ملیونـه ډالـر د انعـام پـه توګـه غوښـتل. هغه د پیشکۍ په ډول د کومو پیسـو هیلـه نـه کولـه خـو تاکیـد یـې کـړی و چـې د دغه ماموریت د سرته رسېدلو په پایله کـې د دغـه مقدار پیسـو غوښـتونکی دی. ما ورته وویل چې د دا ډول خطرناک خو مهم ماموریت د ترسره کولو دپاره څلـور ملیونه یو مناسب انعام دی خو باید موږ په احتیاط سره په مخ لاړ شو.

د طالبانو افسر باید په پوره ډول مالومات راکړي چې دهغه پلان به څه ډول پیل شي او د ټولې پروسي په بهیر کې به د بندیانو د خونـدیتوب لپاره څه ډول ګامونه اوچت کړای شي او له هغه وروسته چې زندانیان زموږلاسونو ته راشي موږ به هغه ته د پیسو دورکړې لپاره یو ترتیب جوړ کړو.

---

[1] اېن اېس سي یا د امنیت ملي شورا. ژباړن

د طالبانو دغه افسر ته به تر هغه هيڅ پيسې ور نه کړل شي څو چې زندانيان د شمالي ټلوالې تر ولکې لاندې سيمې ته په خوندي ډول لېږدول شوي نه وي.

عارف هوکړه وکړه چې ددغه افسر سره به په چټکې کار ته دوام ورکړي. زه د افغانانو په ټولنه کې هغه اړيکو ته حيران شوم چې دوه دښمنې ډلې چې د ژوندي پاتې کېدلو لپاره په جګړه کې سره ښکېل دي وګړو ته دا اجازه ورکوي چې د داسې يوې سترې موضوع لپاره سره يوې معاملې کولو ته هوکړه کوي.

عارف وويل چې د طالبانو افسر او د هغه ادعاوو ته بايد د احتياط او شک په سترګه وګورو خو هغه د دغه سړي د شخصي ګټو لپاره د خپل لوري د تېر ايستلو دا ډول عمل ته حيران نه و او د ده په نړۍ کې(دده په نظر. ژباړن) هر هغه هوښيار سړی چې په دغه ډول بايلونکي او له لاس ورکوونکي حالت کې را ښکېل شي، بايد دغه ډول کار وکړي.

په پای کې مې عارف ته وويل چې زه غواړم چې د فهيم او ډاکټر عبدالله سره هر څومره چې ژر وي، ووينم. ما ورته وويل چې د واشنګټن څخه زه مثبت خبر لرم. غواړم چې د شمالي ټلوالې سره د طالبانو په وړاندې د جګړې لپاره د ځانګړو تياري نيولو لپاره نقدې پيسې ورکړم.

کله چې دروازې ته د قدم وهلو په حال کې و څو خدای په امانی وکړو عارف وويل چې هغه ته اوس ياد شول چې ډاکټر عبدالله غوښتل چې له ماسره په راتلونکي دوه ساعتونو کې ووينې. کله مو چې لاسونه سره ورکول. عارف وويل چې ممتاز به د غرمې په مهال د موټر تياری وکړي څو عبدالله ته مو ورولېږي.

ډاکټر عبدالله ما او ريک ته بيا د درې په کوزه برخه کې په خپله کلا(د ښاره وتلې تفريحي کور) کې انتظار و. دا ځل مې دغه کورته په ښه پام سره وکتل را وکتل. دغه ځای ته د باندې ويل يو څه تبليغ کېده. دوه کېسې کور(دوه منزله/چته . ژباړن) چې د لويديځ ډوله سيوري لرونکې چت يې درلود.

ماته ويل شوي و چې د پوښل شوي برنډې مخ لورې ته چمن اوګلان هم کرل شوي. سره له ښکاره غفلت کولو دغه کور اوس هم د پنجشير د سيند او د درې زړه راښکونکې منظره لرله.

د کور په دروازه کې عبدالله له سره د روغبړ وروسته موږ په هغه کوټه کې چې واضح د اوسېدلو کوټه ښکارېدله کېناستلو ته بلنه راکړه. يوه عصري چوکې چې سپين څادر پرې غوړيدلی و ، څلور نوري کوچنۍ چوکې وې، د کړکۍ خواته يو مېز و چې په سر يې د ټايپينګ يو ماشين او ورسره يو سټلايټ ټليفون په مېز باندې په داسې ډول ايښی و چې د څرخېدونکي چوکۍ څخه په اسانی سره د لاس په غزولو سره را اخيستل کېده.

د کوټې په کونج کې يو دوه کسيزه چپرکټ چې سپين څادر پرې غوړېدلی و،

پروت و. ټول ښایسته او په منظم ډول سره اېښودل شوي و. ډاکټر عبدالله زموږ د ارامه خبرو اترو څخه په ناڅاپي ډول سره هغې جرګې ته د ځان پوهولو لپاره زموږ پام کړ چې هغه فکر کاوه چې په واشنګټن کې به د هغه د بحثونو موضوع وي.

هغه د جهاد په تاریخ باندې وغږېده او د شورویانو په وړاندې د مسعود تاجک ځواکونو رول وښود ، د افغانستان د راتلونکې په اړه یې د مسعود سیاسي نظریو ته یوه کتنه وکړه.

عبدالله شمالي ټلوالې ته د واشنګټن په منفي نظر باندې پوهېده او ټاکېد یې وکړ چې دی دغه سفر یو فرصت ګڼي څو هلته خپله سوانح په سمه توګه ثبت کړي. له دې امله چې دغه سړی په واشنګټن کې د جګپوړو سره د لیدلو د اړتیا په اړه خبرو اترو ته دوام ورکړ، زړه مې پرې وخوږېده!!

د پخوانیو لیدنو په بهیر کې عبدالله د بهرنیو چارو او د افغانستان د ځانګې له مسول سره لیدلي و او په دوهمه ناسته کې یې د افغان د چارو له مرستیال سره لیدلي و. دواړه په پرتلیز ډول لوړ رتبه افسران و. دا ځل هغه هیله درلوده چې د بهرنیو چارو له وزیر او د ولسمشر لپاره د ملي امنیت له مشاور سره لیدنه وکړي نو په دې اساس د ده پیغام به داخل ډېر اغېزمن وای.

دده له لیدنې سره د منفي غبرګون په اړه مې هیڅ ونه ویل خو زه پوهېدم چې دده لیدنه او کتنه به تر سره نه شي. سي ای اې کولی شول چې تر خپل وس پورې د دغه لیدنې د ترسره کیدلو لپاره هڅه وکړي خو په پای کې دغه پرېکړې ته د سیاسي نظرپه توګه کتل کېږي او د بهرنیو چارو وزارت به د ورځې په بهیر کې خپل نظریات وړاندې کول.

بیا هم خوشالوونکي خبرې اترې وې. د طالبانو په وړاندې د جګړې د څرنګوالي په اړه په کې هڅوونکي نظریات تبادله شول. حقیقت دا و چې له ډاکټر عبدالله سره مې هروخت خبرې او بحث خوښېده. کله چې موو له ډاکټر عبدالله سره په خبرو بوخت وو، باران هم پیل کړی و. موږ په خپل موټر کې د خپل کار ځای په لوري وخوځیدلو.

د باران لومړی سیلۍ د موټر په ښیښه باندې دوړي په خټو بدلې کړې. حرارت هم را ټیټېده او زه په داسې حال کې چې له موټره ساړه څاڅکي را څڅېدل،وریږدولم. په موټر کې د اوږدې چوپتیا وروسته ریک وویل چې یاره ته خو خپه ښکارې، څه خبره ده؟ زما په فکر غونډه خو ښه پای ته ورسېده، هو ستونزه همدا ده. که چېري دغه سفر تر سره نه شي هغه به مایوسه شي. یو بله بېلګه چې موږ د هغوی هیلې راوپارولې او بیا مو تر سره نه کړې. ریک وپوښتل چې ایا ته ډاډه یې چې دا سفر به تصدیق نه شي؟

ما ریک ته مخ ورواړوه او ومې ویل، ملګریه هیڅ شوني نه ده څکه چې د سهار تلګراف ټول په ښکاره ډول په ګوته کړي و .زه د افغانستان او پاکستان لپاره مرستیال سکرټر پېژنم. هغه د جهاد په کلونو کې په پېښور کې سلاکار جنرال و. او بیا د ۱۹۹۰ کال په وروستیو کې په اسلام اباد کې د امریکې د سفارت مرستیال و.

ما او هغه د مسعود سره په ۱۹۹۷ کال په مني کې په تالقانو کې لیدنه وکړه. د موټر د څنګ له کړکۍ مې ښکته د درې په لورې وکتل. موږ تقریبا دوه سوه فوټه د غونډۍ مخپورته ختلي و. باران هم د موټر ښیښه د ختو څخه یو برخه پاکه کړې وه.

د هغه تاجک نه خوښیږي. ستا په یاد دي چې ددغه کال په لومړیو ورځو کې د طالبانو په وړاندې په جګړه کې د مسعود د ساتلو په خاطر د هغه سره د مرستې بحثونه و.  نو دغه کس د مسعود سره د هر ډول مرستې کولو مخالفت کاوه.

د ده په وینا موږ باید یوازې افغان ته اجازه ورکړو څو افغان ووژني او موږ خپل هدف ته چې د بن لادن نیول دي، باید هیڅ ورنږدې نه شو. یو سخت جمپ د دروازې سره په کلکه ووهلم او په خپل مټ درد. ته مې په کړکه او په غوسې سره وروکتل. په هغه وخت کې د ده د څېرنو سره یوازینی ستونزه دا وه چې طالبان د خپلو پاکستانیو او عرب ملګرو په مرسته د غښتلي کېدو په لورې روان وو.

مسعود یوازې وو او که چېرې مسعود مات شوی وای نو طالبانو به افغانستان خپل کړی وای. موږ به نن ورځ دلته په دره کې په دغه موټر کې خپل کوناټي د جمپونو له لاسه ښکته او پورته نه کولای. موږ به اوس په تاشکند کې ناست وای او په دې به مو فکر کولی چې څنګه وکولای شو چې د طالبانو په وړاندې ګروپونه یوځای کړو او د هغوی په وړاندې پاڅون را منځ ته کړو.

## اوه ویشتم څپرکی

د اکتوبر پر اوولسمه نېټه د ترورېزم په وړاندې ریاست خبر راکړ چې د الفا ګروپ ټول اته غړي د مزارشریف سویلي سیمې ته په بریالیتوب سره ننوتلي او د جنرال دوستم د ځواکونو سره د مهالوېش سره سم یو ځای شویدي.

تلګراف لږ خو موجز و او د څو جملو په لوستلو سره مې احساسات وپارېدل. په شمالي افغانستان کې مو دوهم ګروپ دندې ته تیار و او پلان هم جوړښت غوره کاوه. د الفا ګروپ د امریکې د ځانګړو ځواکونو لخوا لېږدول شوی و. دا د

امریکې د پوځ لخوا په سیمه کې لومړني عملیات و او دا هم د پرمختګ په لورې یو بل مهم ګام و. د الفا ګروپ د اړیکو سیستم زموږ ارتباطي سیستم سره ورته والی درلود نو په دې اساس موږ کولای شول چې دوه اړخیزه خوندي اړیکې ولرو.

ریک الفا ګروپ ته د ښه راغلاست لپاره لنډ لیک واستاوه او همدارنګه د عطا شونی منفي غبرګون په اړه هم ترې وپوښتل او له هغوی څخه یې وغوښتل چې د وخت او شرایطو په اجازې له موږ سره د خوندي مخابرې له لارې اړیکه ټینګه کړي. که چېرې د عطا لخوا کومه ستونزه راخوتېدلای، موږ مخکې له دې چې د جنرال فهیم سره مو په همغه سهار لیدلي وای، باید پرې خبر وای.

دتېرو څو ورځو په تېرېدو سره هوا د ژمي په کېناستلو سره نوره هم خرابه شوله. شمال خواته د هندوکش د غرونو لوړه ارتفاع کې د سختې واورې اټکل شوی و او جان محمد وویل چې د یوې اونۍ یا زیات وخت په تېرېدو سره باید د انجمن کنډو د موټرو د ټرافیک لپاره دراتلونکي پسرلي تر وروستیو پورې بندشي. سره له دې چې سهار شین اسمان و. د تودوخي ټیټوالي بیا هم اړ کړوچې دژمي درنې جامې واغوندو.

ایډاوګریګ پلان درلودچې دوشنبې ته په چورلکه کې الوتنه وکړي څوهغه اکمالات چې موږ درې ته دراتګ څخه یوه اونۍ وروسته له قرارګاه څخه غوښتي و،راولېږي.

هغه الوتکې چې همدغه اکمالات یې له امریکې متحده ایالاتو راوړي و، دوشنبې ته یې سي ای اې یو درې کسیزه ګروپ هم را لېږودولی و. څو هلته د سي ای اې لنډ مهال دفتر جوړکړي. د دوی لومړنۍاو اصلي دنده دا وه چې زموږ او دسي ای اې نورګروپونه چې په شمالي افغانستان کې فعالیت کوي ملاتړ کړي. زموږافغان پیلوټ نصیر په استانه کې دښکته کېدلو له ځایه د شمالي ټلوالې دمخابرې له لارې دهواله ناظر(کتونکي) سره چې د درې په پورتنۍ برخه اود انجومن کنډوپه سیمه کې اوسېده د هوا د کنټرول اوکتنې لپاره اړیکه ونیوله خوبیاهم ځکه چې هوا هره شېبه بدلون کولای شو، نوهوايي کارمندانوسفر ته دتیارېدولپاره سملاسي توب کاوه. مخکې د دې نه چې دوی چورلکې ته ولاړشي ما بک ته د پنځه اتیا زرو ډالروبنډل چې د المونیم اوفلزپه نازکه پاڼوکې پیچل شوی و، ورکړڅو دوشنبې ته نوي راغلي افسرانو ته یې ورکړي.

موږ ته د کوربه افغانانو له خبرو اترو څخه وروسته دا څرګنده شوه چې په دوشنبې کې لږ ښه موټر پیداکېږي. ریک د ران سره د برېښنالیک له لارې اړیکه نیولې وه او له هغه یې غوښتي وچې درې دانې کارول شوي سرف (SUV)ټویټا

موټر[1] وپېري. ران باید موټر د شمالي ټلوالې استازي امرالله صالح ته ورکړي څو هغه یې درې ته راولېږي. جان محمد ډاډ راکړچې پینځه اتیا زره ډالربه د دریو موټرو د پېرلو او همدارنګه په غرونوباندې د هغوی د راوستلو ټول لګښت پوره کړي.

مور یوازې داهیله درلوده څو موټردانجومن له کندوځخه راتېرشي، هوا به وتر هغې ښه وي، او د ژمي په پیل سره به ډېره سخته نه شي. ښایي چې دوی به زمور د تیلو ټانکر او کاروان هم هلته پیداکړي، هوهمداسې ده ؟!

تورصندوق مې خلاص پرېښود. ما اوریک یو سل اووه ملیونه ډالر وګڼل څو جنرال فهیم او ډاکټر عبدالله ته یې د همغه سهار د لیدنې په مهال ورکړو.

دشمالي ټلوالې دغښتلي کولو په اړه د کوفر له پیغام وروسته ماغوښتل چې دغه لیدنې ته ارزښت ورکړم هغه ډول ارزښت چې دشمالي ټلوالې د رهبرانو هغه شک چې د امریکې دحکومت د صداقت او د هغوی په ژمنه یې درلود، په له منځه وړلو کې مرسته وکړي. د یو سل اووه ملیونو ډالرو څخه یې اوه سوه پنځوس زره د فهیم لپاره وې چې باید د خپلو ځواکونو د جګړې دتیاري نیولو لپاره یې ولګوي او دوه لکه پنځوس زره د هغه ملکي وګړو د بشري مرستو د برابرولو لپاره وې چې د جګړې ډګرونو ته نږدې وو. دغه لګښت دملکي خلکودجګړو له کرښو راباسل او په دره کې خوندي سیمو کې د بیا ځای په ځای کولواو همدارنګه د هغوی لپاره دخوړو او د ژمي د لباس د رانیولولپاره و. ما په ځانګړي ډول غوښتل چې قوماندان عطاء سره د پیسو مرسته وکړم څود هغه غوسه د قوماندان دوستم سره د تېرې شپې دالفا ګروپ د یوځای کېدنې له امله پاربدلې وي،سړه کړم. د دوه لکه پنځوس زرو یوبل جلا بنډل مو په کاغذ کې پیچلی و او د بنډل په سر مې په دري ژبه د عطا نوم پرې لیکلی و. زه ډاډه نه ومه چې دغه پیسې به عطا ته ورسېږي خو ما غوښتل چې دسي ای اې هغه هڅه چې غوښتل یې د دوستم او عطا ترمنځ اوبه سړې کړي،روښانه کړم. د یو سلواوه ملیونو څخه وروستني څلورلکه پنځوس زره ډالر د انجینرعارف او د هغه داورګان د ورځني عملیاتو او د طالبان قوماندانانو ته د شوني بډو په خاطر وې څوهغوی د شمالي ټلوالې سره د یو ځای کېدلو لپاره وهڅوي. ما د پیسو د لېږدولو لپاره کوښښ وکړچې یوه کڅوړه پیداکړم خوارښوم چې په یوه ناپاکه او مات شوي کلک کاغذي کارتن کې یې ورتخته کړو. د دې لپاره چې د پیسو وزن ډېر و نواړ شووچې د کارتن بېخ په پلاستیکې تسمه کلک وتړو. غونډه د آستنې څخه لاندې په یوه ودانۍ کې چې زمورپکې لومړی ځل و، ترسره شوه.

دا ودانۍ د غونډۍ په اړخ باندې پرته وه چې دپنجشېرسینداوختیځ لوري ته

---

[1] (SUV) په افغانستان کې ورته سرف یا فورنر ویل کیږي. ژباړن

یې د غونډیو یوه پراخه منظره درلوده. جوړښت یې اغېزناك و ، په ربښتیا په بانډه کې یانې د ښار څخه بهر یو تفریحي کور و او ددغه نوم ورکولو ارزښت یې درلود.

په منځ کې یې دوه ودانۍ نورې وې چې بهرنـي دېوالونه یې دباسکېټبال په اندازه د غټو تیږوڅخه جوړشوي و. د انګړ چاپېره چمن یې دومره شین او منظم ساتل شوی ولکه دګالف [یو ډول لوبه. ژباړن] د کلب په ډول او همدارنګه ونې او بوټو ته یې ښه پاملرنه کېدله دکورسامان یې هم ډېر عصري، لوېدیځ ډوله فرنیچر ، غولی یې په روښانه کاشیو باندې جوړشوی او په افغاني ګل لرونکو قالینو باندې پوښلی و.

دېوالونه یې دغولي څخه تر چت پورې په خوندور سپین رخت ټوټوباندې پوښل شوي و. دغه کور د یوه شتمن افغان سوداګر و چې په ۱۹۸۰ کال کې د امریکې متحده ایالاتو ته تښتېدلی و. په دره کې د جګړو په مهال دغه ودانـي ډېره زیانمنه شوې وه. د احمدشاه مسعود څخه د منني لپاره چې روسان یې په زوره دافغانستان څخه وتلوته اړکړي وو، دغه افغان سوداګر نوموړی کور مسعود ته د سوغات په ډول ورکړی و.

کور پـه سـم ډول رغـول شـوی و او درې تـه د لـوړ پـوړو لېـدونکو لپـاره د مېلمستون په توګه کارېده. په حیرانتیا سره هغه دوه ژورنالستان چې مسعود یې وواژه په همدغه کور کې د مسعود سره د مرکې لپاره د انتظار کړی و. ما د کلک کاغذ څخه جوړ شوی کارتن له ځان سره واخیست اوکور ته دننه مې یوړ. کله چې دغونډۍکوټې ته لاربښوونه راته وشوه په بې احتیاطۍ سره مې په کوټه کې دننه په چوکۍ باندې کېښوده.

د جبري لاسونو ورکړې[1] اوستړي مه شي وروسته موږ ټول په نیمه کړۍ کې په هوسا چوکیوباندې کېناستو.

جنرال فهیم زما ترڅنګ کښېناست او ډاکټر عبدالله او انجینر عارف د هغه ښي خواته ناست وو. ریک زما ګڅ خواته واو ممتاز چې دیادښت اخیستنې دنده یې اجراکوله هم دده څنګ ته و. له دې امله چې دغونډې دجوړېدوغوښتنه مې کړې وه،ماته د غونډې د پیل بلنه راکړل شوه. زه په چټکۍ سره په پنجشېرکې زما ګروپ دراتګ څخه تراوس مهاله په پرمختګونوباندې په صادقانه ډول وغږېدم. ما دبمبارۍ له امله د دوی په خپګان په ځانګړي ډول دکابل سره په لومړی کرښه باندې اعتراف وکړ. ما یو څه نورو تېر وتنو ته هم اشاره وکړه. په خواجه بهاودین کې دبشري مرستې په خاطر د خوړو د غورځولو ناورین مې یوه بېلګه ورکړه ما همدارنګه بریالیتوبونه هم په ګوته کړل لکه دانجینرعارف اغېزمنه څارګره اداره او

[1] په لوېدیځ کلتور کې د ستړي مه شې په وخت د لاسونو ورکول ډېر رواج نه لري. ژباړن

په گل بهار کې نوی جوړشوی هوايي ډگر. ما دغه دريو افغانانو ته ډاډ ورکړ چې د امريکې حکومت طالبانوته په ماتې ورکولو هغوی د واك څخه په لرې کولو او دالقاعده اوبن لادن په ورانديي جگړې ته په دوام ورکولو کې ژمن دی. د دغه وړانديز په بهير کې مې له جنرال فهيم سره نېغ په نېغه خبرې کولې. په هغه باندې متمرکز وم او دا چې هغه په سترگو کې سړي ته مخامخ گوري ما هم ورته مساوي غبرگون ښکاره کاوه.

ما ورته وويل چې دشپاړسم اکتوبر په وروستيو ساعتونوکې دالفا گروپ په بريا سره د جنرال دوستم سره يوځای شو. د ځانگړي ځواکونو د اې گروپونه پنجشېر ته د دندې د اجرا کولو په خاطر وروسته د دې څخه چې دازبکستان او تاجکستان حکومتونوسره بيورو کروتيک موضوعات پای ته ورسېږي،راځي. دا يو واضح او مثبت ثبوت و. د امريکې حکومت زموږ شريک دښمن ته په ماتې ورکولو کې صادق او وعده ورکوونکی دی. ما ورته وويل چې شمالي ټلوالې ته مې دغې غونډې ته له ځان سره يوه زياته اندازه پيسې راوړي دي، موږ غوښتل چې ډاډ ورکړو . څو جنرال فهيم د جگړې لپاره د خپلوځواکونودپوره تياري لپاره مالي اسباب ولري او همدارنگه وتوانيږي چې د ملکي وگړو او د شمالي ټلوالې هغه قومندانانو سره چې د پنجشېر څخه د باندې او د هېوادپه شمال لويديځه سيمو کې دي،اړينه مرسته او همکاري وکړای شي. په چوکۍ باندې کارتن ته مې اشاره وکړه او ورته ومې ويل چې په دغه صندوق کې يو اعشاريه اووه مليونه ډالردي. د ټولو سترگې د کارتن په لورې واوښتې ، زه پوه شوم چې زموږافغان کوربانه د پيسو د دومره شمېر له امله خوښ شول. د پيسو د وېش په باره کې مې مالومات ورکړل د ځانگړو هدفونو لپاره لکه پوځي عمليات بشري مرسته او څارگر مالوماتو د کارولو لپاره مې د پيسو شمېر ورته په گوته کړ بيا مې د قومندان عطاد پيسو په اړه خبرې اترې وکړې. ماورته وويل چې دجنرال دوستم سره د سي ای اې د گروپ د يوځای کېدنې پرېکړه دشمالي ټلوالې رهبران په ځانگړي ډول عطاخپه کړی دی. ما په مزار کې دعطا پوځي ځواکمنتوب او د هغه ارزښت په گوته کړ او اعتراف مې وکړ چې د دوستم سره د سي ای اې د ښو اړيکو پراختيا وه چې د الفا گروپ په چټکۍ اوخونديتوب سره هلته ورساوه. دشرايطو په برابروالي موږکولای شو چې دعطا او د هغه د ځواکونو سره نېغ په نېغه اړيکې ونيسو. په ورته وخت کې دغه دوه لکه پنځوس زره ډالر چې ما د عطاء لپاره جلا کړي دي. د هغه مهمو قومندانانوسره چې په لويديځه برخه کې دی. سره زموږ د مناسبې معاملې د کولو يوه نښه ده. زه هيله مند وم چې جنرال فهيم به دغه خبرې د قومندان عطا تر غوږونو ورسوي او ډاډه يې کړي چې هر څومره ژر امکان ولري هغه ته دغه پيسې ورسوي. فهيم وروسته له دې

چې د بودیجې لپاره له ما مننې وکړي. په صادقانه ډول ځواب راکړ. هغه وویل چې هغه موضوعات چې مایې یادونه وکړه، په ځانګړي ډول د بمبارۍ داغېزې نشتوالي موضوع له ربړونو ډکه وه. دا ښه خبر و چې د امریکې حکومت د طالبانو په وړاندې دجګړې د راوړلو له پلان سره خوښښت کوي. هغه تاکید وکړچې په دغه جګړه کې د بریالیتوب لار دهوايي ځواک په زور اوپه بمبارۍ کې نه دی بلکه بریالیتوب دشمالي ټلوالې دځواکونولخوا دطالبانواودهغوی دعرب ځواکونو په وړاندې په ډګرباندې په جګړه اوهغوی ته په ماتې ورکولوکې دی. هغه وویل چې دقومندان عطاء سره به نن ورځ اړیکه ونیسي او هغه ته به زموږدمرستې ډاډ ورکړي. هغه وویل چې غواړي له قومندان عطاءسره ددې لپاره چې دجنرال دوستم سره دسي ای اې ګروپ یوځای شوی هلته په حالاتو باندې وغږیږي. بیا ډاکټرعبدالله وغږېد اودبودیجې له ورکړې یې مننه وکړه. هغه هم جنرال فهیم ته ورته موضوعاتو باندې وغږید. هغه خبرې وځنډولې کوچنی موسکایي وکړه اوبیا یې وویل چې دغه زموږلخواسیاسي پرېکړه نه وه. دلومړیوکرښوسره دملکې خلکو لپاره دبشري مرستې په خاطرهرکلی وایو اود سي ای اې لخوادغه کړنه به د شمالي ټلوالې درهبرانودخوښۍ سبب وګرځي. هغه وویل چې د امریکې متحده ایالاتوته د هغه پلان شوی سفر به دبهترې جګړې د پر مخ بیولو په اړه د نظریاتوتوپیرونه له منځه یوسي. د ځانګړو ځواکونو د یونیفارم موضوع یې ذکرنه کړه. شته کسانو ته مې د امریکې حکومت ته د دغه موضوع د ارزښت یادونه وکړه. امریکایي سرتېري د دې لپاره چې د شریک دښمن په وړاندې و جنګیږي،دلته راځي . د شمالي ټلوالې سره څنګ په څنګ ودرېږي. دوی باید په ملکي جامو کې نه وي. بیا هم ډاکټر عبدالله او انجینر عارف خپلې اندېښنې څرګندې کړې .کله چې ماخبرې خلاصې کړې،ډاکټر عبدالله بیا په انګلیسي ژبه خبرې پیل کړې. هغه وویل چې د شمالي ټلوالې د مشرانو لپاره نوموړې یوه حساسه موضوع ده او سره له دې چې فهیم په خپل مقام باندې ثابت دی، د شمالي ټلوالې د ټولو مشرانو لخوا دغه پرېکړه تر اوسه ټولو په پوره توګه نه ده منلې.

ډاکټر عبدالله د ګروپ خبرو اترو ته دوام ورکاوه او زما په باور د نظریاتو د توپیر شته والی درلود. د جنرال فهیم د پوهېدو لپاره یې خپلې خبرې په انګلیسي ژبه ژباړلې. ما دري ژبه دومره زده وه چې هغه څه چې ډاکټر عبدالله به ویل، پرې پوهېدلم.

هغه د بحث په اوږدولو او د نظریاتو د توپیر په اړه هیڅ ونه ویل. ممتاز چې په غونډه کې تر دې مهاله د ژباړن په توګه دنده اجرا کوله. د ډاکټر عبدالله د غږېدا پرمهال غلی ناست و. له دې سره غونډه و ځنډېدله. ریک او زه د تودې

خدای په امانی په ویلو سره له کوټې بیدیا بدرگه شوو. زه پوهېدم چې زموږ سره تر موټره د ممتاز د بدرگې پر مهال ډاکټر عبدالله،عارف او فهیم د پیسو په گڼلو بوخت وو. [1]

زما د وېش سربېره، ماپه دې کې چې د پیسو اصلي وېش به څوک کوي. شک نه درلود. زما یوازینی هیله دا وه چې جنرال فهیم دا په یاد ولري چې قوماندان عطا ته باید دوه لکه پنځوس زره ډالر ورسیږي.

ما نه غوښتل چې په داسې وخت کې چې د الفا گروپ یې په منځ کې را ښکېل وي. جنرال عطا او دوستم یو پر بل ډزې وکړي!

په همغه ماسپښین موږ ته خبر راکړل شو چې زموږ چورلکې له دوشنبې څخه خواجه بهاودین ته الوتنه کړې وه.میوري او براډ یې له ځان سره را اخیستی و خو د لوړو غرونو په سر د خرابې هوا له امله اړه شوه چې بېرته دوشنبې ته وگرځي. نوموړي کسان په دوشنبې کې د شپې لپاره پاتې او سهار یې بیا د راتگ هڅه کوله.

له دغه خبر پرته نور ماسپښین او مازدیگر دواړه هوسا تېر شول او د ورځې د پرمختگونو له امله مې مثبت احساس کاوه.

ما یو لیک ولیکه او په هغې کې مې د غونډې په اړه عمده مطالب او د پیسو د رکړې له امله زموږ د دریو افغاني همکارانو د متاثره کیدلو طرح مې هم پکې وکړله.

د عبدالله د هغه ادعا په اړه چې د یونیفارم موضوع تراوسه تر څېړنې لاندې ده. ځانگړې یادونه وکړه.: کارونه د سمون په لورې خوځېدل او د شپې د ډوډۍ خوړلو وروسته په انگړ کې د ریک سره د سېگار(یو ډول غټ سگرټ. ژ) په گډه څکولو ته انتظار وم. ځان ته مې اعتراف وکړ چې زه باید تر دې ډېر پوهېدلی. تقریباً د شپې په اته بجې د تروریزم په وړاندې له ریاسته څخه د خوندي ټلیفون په کرښه اړیکه ونیول شوه او ویې پوښتل چې ایا زموږ گروپ کولی شي چې د ډگروال ملهولنډ سره په همغه ماښام د او ډي اې ۵۵۵ گروپ دندې ته د لېږلو پخلی وکړي؟

سینټ کام د تروریزم په وړاندې ریاست ته خبر ورکړی و چې ډگروال ملهولنډ پلان شوې ننوتنه(دندې ته د گروپ لیږل. ژباړن) ترسره کوي خو دوی نه وو توانیدلي چې د ټاسک فورس ډاگر(د نظامي هدې نوم. ژباړن) سره اړیکه ونیسي څو دا رپوټ تصدیق کړي. د تروریزم په وړاندې ریاست هم نه و توانېدلی چې اړیکه ټینگه کړي. زه د دغه خبر په اورېدلو سره بالکل چوپ او گونگ شوم!!

د دغه هڅې په اړه زما گروپ سره هیڅ ډول اړیکه نه وه نیول شوې او اوس

[1] یوازې د څو میلونو ډالرو په بدل کې شمالي ټلوالې د افغانستان خپلواکي وپلورله. ژباړن

مهال د دغه لوی ګروپ د هرکلي د پاره ناچمتو و. د تروریزم په وړاندې ریاست تصدیق کړه چې ازبکستان او تاجکستان دواړو هېوادونو د خپلو هېوادونو له لارې دغه الوتنې ته اجازه نه ده ورکړې.

ټاسک فورس ډاګر سره د پخوانیو پلانونکوخبرواترو په درلودلو سره پوهېدلو چې د او ډي اې 555 او ګروپ به په اې اېچ53 ټیټ غږ لرونکي چورلکو کې الوتنه کوي.

دوی به اوس د دغه هېوادونو په هغه سرحدونو باندې چې دواړه یې له مځکې څخه تشیال (فضا) ویشتونکی روسي جوړ غوره میزایلو باندې سنبال و، ناخبره اوپه پټه الوتنې کوي.

دوی په لوړه ارتفا ع د ډارونکې او خرابې هوا سره مخامخ شوي و. دا یو هغه حقیقت وچې موږکولی شوچې ورته تصدیق یې کړو ځکه چې د هندوکش په سرونوباندې د همدغه هوا له حالاتو زموږ خپله چورلکه دوشنبې ته دورځې په پیل کې وګرځېدله. د پوهاوي څخه پرته الوتنه په دې مانا ده چې دکوزېدلو محل به نه وي په نښه شوی او د شمالي ټلوالې امنیتي چاپېریال به دنا اشنا(احتمالاً خطرناک. لیکوال)خلکودلیرې کولو لپاره شته والی ونه لري.

د سي ای اې کوم پرسونل به هم شتون ونه لري څوپه سیمه کې تر کوزېدلو وروسته د او ډي اې لپاره انتظار او د لېږد او رالېږد وسیلې ولري. دغه پرېکړه په لومړي سر کې یوناورین و دشپې لخوا د او ډي اې 555 ګروپ د ننوتنې په اړه یواړخیزه نا انسجام شوې پرېکړه یوه بې باکه او نا سنجول شوې پرېکړه وه چې سړي پرې باورنه شوکولای.

که چېرې کومه غمجنه پېښه د دې لامل شوې وای چې د دغه اې ګروپ غړي یې ټپي یاوژلي وای. ښایي چې د امرېکې پوځ لخوا د دغه جګړې قانوني کولو او څارلوباندې یې لویې منفي اغېزې لرلې وای خو د شیطان غوږونه دې کاڼه وي اوس مهال دوه چورلکې دي چې د امریکې د ځانګړو ځواکونو سرتېري د زیان په لور روان کړي او د دوی خوندیتوب باید ترهرڅه لومړی شوی وای. ریک کرشي خان اباد هوايي اډې ته د خوندي مخابرې له لارې اړیکه ونیوه. ډګروال ملهولانډ د اوس لپاره شتون لري خو موږ دا تصدیق کولای شوچې او ډي اې 555 ګروپ په دوو ټیټ غږ لرونکو ایم ایچ 53 چورلکو کې پنجشېر ته د دندې لپاره ولېږدول شول.

په دره کې د ښکته کېدلو اټکل شوی وخت یې نن ماښام لس بجې دی د دوی د هرکلي او هغوی ته د هرڅه برابرونې لپاره مو د دوه ساعتونو څخه هم کم وخت درلود.

ما ممتاز ته دروازه وروټکوله او په دې مې خبر کړ چې د اې ګروپ درې ته د

خوځښت په حال کې دی.  او له هغه مې وغوښتل چې د گروپ د رالېږدولو لپاره اړین وسایط تیار کړي. او همدارنگه د دولسو نویوکسانو لپاره د اوسېدلو ځای او هغه نورځه چې ما یې هیله درلوده د دوه زروپاوندېه وزن په شاوخوا کې د هغوی توکولپاره ځای برابر کړي. ممتاز وویل چې له جان محمد به غوښتنه وکړي چې دغه کار ترسره کړي او دی پخپله به انجینر عارف له دغه خبرکړي څو د ښکته کېدلو په ځای کې عملي امنیتي تدابیر ونیسي. په چارچاپېره غونډیوباندې ډېرکلي وو اوپه دې شپه کې د دوو چورلکو کوزېدل به هرومرو د خلکو وسوسې پیداکړي. د دې لپاره چې د اې گروپ لخوا دوستانه ډزو(هغه ډزې چې په ناپوهاوي سره د دوست په وړاندې وشي او امریکایان یې عادتاً په افغانستان کې کوي. ژباړن) پېښه او یا هم په سیمه کې د اې گروپ په وړاندې د چورلکې څخه د کوزېدو په مهال د طالبانو د ملگرو له خواپه هغوی برید ونه شي. بایدټولې هڅې په کار واچول شي. ریک د هرکلي گروپ منظم کړی و او هوکړې ته رسېدلي وچې هغه د کوزېدلو ځای په ښه کولوکې مسولیت لري.

موږباور درلود چې راتلونکې چورلکه به د استنې په هوايي ډگر کې ښکته کېږي. زموږ د تېرو بحثونوپه مهال زموږ پیلوټانو د ځانگړو ځواکونو پیلوټانو ته د همغه ځای جغرافیایي کوارډینات او هلته د رسېدلولپاره یې د ښې لارې د کارولومشورې ورکړې وې. ډاکټر به د بیړني حالت لپاره له طبي سامان الاتو سره تیار زموږ دگروپ دکوزېدلوپه مهال شتون ولري. ریک د هرکلي گروپ رهبري کاوه او ما د پاپي سره د مخابرې د نوکریواله دنده اجراکوله.

د ریک گروپ دوه روسي جیپونو ته ورکوز شول اوپه توره شپه کې په داسې حال کې چې دموټروغړمبهارې په کراري سره ورکېده، خوځښت وکړ. زه د دفتر په ارامه سیمه کې کېناستلم او پاپي د قرارگاه څخه یې لیکونه او پیغامونه سمبالول او همدارنگه د ټاسک فورس ډاگر (دیوې هوايي اډې نوم. ژباړن)څخه یې هغه ټلیفون ته غوږ نیولی وچې د راتلونکې گروپ ددریځ او د سفرتازه حال یې راکاوه. ما یوازې د حالت د خرابوالي په اړه فکر کاوه. ما د دغه احمقانه او نا انسجام شوي هڅې د شوني سیاسي پایلې او د پېښې په صورت کې د القاعده په وړاندې د امریکې حکومت په جگړه باندې د منفي اغېزې په اړه فکر کاوه خو ما ته دغه اندیښنې هغه وخت بې ارزښته ښکاره شوې کله چې ما د دغه ماموریت د او ډي اې 555 گروپ او د دوه چورلکوکارمندان چې بې له اړتیا یې په خطرکې اچول، په اړه فکروکړ. ریک د اېچ ایف[1] لاسي مخابرې  له لارې له ما سره اړیکه ونیوه څو رپوټ راکړي چې د ښکته کیدا ډگر د څراغونو(ځانگړي

[1] اېچ ایف لوړ فریکونسي لرونکي مخابرې دي چې پرته له اورده انتن څخه تر ډېر لرې واټن پورې پرې اړیکه ټینگېدلی شي. ژباړن

ځراغونه چې پیلوټان یي دشپې په دوربینوکې په اسانی سره ویني. ژباړن) په واسطه په نښه شوی او ممتاز د یو جیپ اوټویټا پیک اپ موټرو سره سیمې ته راغلی دی. انجینرعارف د درې د اړوند ځانګې له قوماندان سره اړیکه نیولې او له هغه یې غوښتي و چې د کوزېدلو ځای امنیت ساتلو لپاره خپل ځواکونه ولیږي. تر دغه وخته موږ د خپل توان تر کچې چمتووالی ونیوه. دلسو بجوځخه لږ وړاندې ډاګر ټاسك فورس خبر راکړ چې چورلکې له خرابې هوا چې تېز باد او یخ هم لري، سره مخامخ دي.

دوی تر وسه او توان پورې کوښښ کاوه خود هوا تر ښه کېدا پورې دا هڅه ښه نه ښکارېده. ریک ته مې د دغه خبر د رسولو لپاره اړیکه ونیوله. دشپې په لس بجواوپنځه ځلویښت دقېقوباندې ډاګر ټاسك فورس خبرراکړچې دغه دوه ټیت غږ لرونکي چورلکې دخرابې هوا له امله را وګرځېدلې او اوسمهال هوایي ډګر ته د راګرځیداپه حال کې دي. زه د دغه خبر په اورېدلو خوښ شوم. دمخابرې له پازوال ځخه مې مننه وکړه او له هغه ځخه مې وغوښتل چې له ډګروال ملهولانډ ځخه وغواړي څو له ماسره سبا سهار اړیکه ونیسي ترڅو د دغه ماموریت پېښې ته بیا کتنه وکړو. زه ملهولانډ ته په غوسه وم او فکرمې کاوه چې دغه پرېکړه له پرته له شکه یو بې باکه اوناسمه پرېکړه وه. نن شپه مو د دغه سرتېرو د لېږلوله امله ناسمه ډز وکړاو دوی ترې بچ شول خو دا هغه مرمۍ وه چې په لومړي سر کې باید ویشتل شوې نه وای (لیکوال دلته بلا وه اوبرکت یې نه وله اصطلاح ځخه منظور دی. ژباړن)ماله ریک سره تماس ونیوه او ورته مې وویل چې ځراغونه له منځه یوسي اوکسان کورته راوګرځوي. له هغه مې وغوښتل چې ممتاز ته ووایي چې زه به سبا ته د شپې د دغه پېښې په اړه چې ولې د ننوتنې ځخه مخکې اړیکه نه وه نیول شوې، مالومات ورکړم. زه هم نوموړې لیدنې ته لېواله نه وم.

## اته ویشتم ځپرکی

راتلونکی سهار د سپیده چاود سره سم د انجینر عارف د راتګ او له ما ځخه د تېر ماښام د ګروپ د ننوتنې د ناوړه هڅې په اړه د هغه د پوښتنې په تمه وم خو د ده لخواحتی تر غرمې پورې کوم احوال را ونه رسېد. زه دغه کار د یوه قهرجنې لیدنې ځخه هم ډېر اندېښمن کړم. د غرونو په سر هوا تر اوسه خرابه وه او زموږ

هـوايي کارمنـدانو د مخـابرې لـه لارې خبـر راکړچـې هغـوی بـه د هـوا حالـات د دوشنبې د هوايي ډګرڅخه وڅاري. دوی وويل چې که چېرې هوا ماته شي هغوی به مورته خبرراکړي. احتمال يې وخـو بيا هـم زمـوږ چورلکـه بـه پـه دوشـنبه کـې د يوې بلې ورځې لپاره هلته ولاړه وي.

تېر ماښام ريک وويل چې هغه بـه سټان او ډاکټرلـه ځان سره دبګرام هـوايي اډې ته بوځي اوهلته به د جنرال بسم الله خان د څارګرۍ شبکې سره شپه تېره کړي. د دغه سفر له امله به له يوې خوا د هغوی مورال غښتلی شي او له بلې خوا به د طالبانو په کرښو د بمبارۍ اغېزه لـه نـږدې ارزيابـۍ او همدارنګه وګوري چې ايا زموږ د نغدو پيسو ورکړه تراوسه پورې په کاراچول شوې او کنه؟ د دوی د تـګ وروسـته مـې قرارګـاه تـه يوشـمېرليکونه وليکـل او د هغـوی کـاپي مـې پـه ټامپه[1] کې سينټ کام يا مرکزي قوماندانی ته هـم ورولېږلـې . د ناکامـه ننـوتنې او اړوند پېښو په اړه مې مالومـات پـه کـې يادکړل. پـه دغـه ليکونـوکې مـې ځـان هغـوی سـپين او لـه غوسـې ډک غبرګـون وښـود. مـا د دغـه پېښـې لـه املـه پـه شمالي ټلوالې باندې داغېزې کچـه نشـوه انـدازه کولای خومـا دومـره څرګنـدولی شوه چې اغيز يې منفي دی.

دغرمې لږ وړاندې ممتاز راغی او ويې ويل چې انجينر عارف غواړي پـه همغـه ماښام په اووه نيمو بجو له ماسره ليدنه وکړي. ما ممتازته وويل چې زموږچورلکه په دوشنبه کې د هوا د خرابوالي له امله بنـده پاتې ده او د ځـانګړو عملياتوهغـه توکي چې موږ د عارف لپاره د اسامه بن لادن او د القاعـده پـه وړانـدې د کـارولو لپاره راغوښتي و.په ګډون د ټيټ غږ لرونکي ټوپک او ټيټ غږلرونکي توپانچې دوشنبې ته رارسېدلي دي اوکله چې چورلکه راوګرځي، له ځان سره به يې راوړي.

ماغوښتل چې عارف ته مځکې له دې چې نن ماښـام يـې ووينـم، يـو څـه ښـه خبر ورکړم. د غرمې وروسته مې له جان محمد سره د هغه سړک په اوږدو چې د درې شمال ته غزيدلی وپه چکرووتلم. که څه هم چې هوا له وريځوډکه اويـو څـه سړه وه. ورځ ارامه اوخوشالوونکې وه. دپنجشېرسيندهم دسړک غاړې تـه غزيـده. دسيندغاړه دکوچنيوونواوګڼوبوټولـه املـه شـنه وه اوسـطحي اوبـه هـم پـه کـراره بهېدلې. دبارک دکلي په پنا کېدو سره اودسړک دموږسره څنګ تـه داوبـو پـه منځ کې يوکوچنی طبيعي ډنډ و چې پينځه متره يې پراخوالی درلود. د ونو يوه ليکـه او د ګڼوبوټوچې دسيند ترغاړې دمځکې په نرۍ ټوټه شنه شوې وې، نوموړي ډنډ ته ښکلا وربښله.

دلرګيوڅخه جوړې شوې هيلۍ (د نـورو مرغـانو د جلـب لپـاره د ښـکار پـه هيلـه

---

[1] ټامپه د يوې سيمې نوم دی چې (Centcom) يا د امريکې د پوځ مرکزي قومانده له هغه ځايه ورکول کې ده. ژباړن

لکه لومه. ژبا(ن) د اوبو په سر لامبو وهلې اوځای په ځای د تار په واسطه په تيرو ټړل شوې او درول شوې وې.

ډېره زړه راښکونکې منظره وه. ساده بې غږه او چوپتيا وه. مو(ږ) هلته يو ځای ولاړ و. د هيليو د ښکار او په دره کې د ډېروکلونو د جګړې ويجاړتيا وروسته د ژوند د بيا عادي کېدو په اړه په کراره په دري ژبه غږېدلو. پلي تګ ته مو دوام ورکړ او دسړک په اوږدو مو يو بل کرليچی هم پيدا کړ.

هلته دسيندپه ختيځه شيله (اړخ) باندې چې مورته مخامخ ويوله خاورو جوړشوی کور و چې په منځ کې يې يوه ودانۍ او چارديوالي وه چې مخ ته يې يوه اواره ټوټه ځمکه چې تقريباًلس متره مربع پراخوالی يې درلود،پرته وه . دچاردېوالی ټولې خواوې دجګ اغزن تار په واسطه په پوره ډول ساتل شوې وې او يوازې يوځای په کې خلاص وچې لويه دروازه يې لرله.

د خاورو جوړه شوې بله ودانۍ د دروازې څخه يوازې يو څه دننه وه. جان محمدوويل چې داهغه زندان دی چې شمالي ټلواله پکې نيول شوي جګپوړي طالب ملايان ساتي. هغه وويل چې اوسمهال تقريباً دېرش ملايان پکې زندانيان دي. کله چې يوڅه ورنږدې شوم ومې ليدل چې څلور يا پينځه کسان چې اوږدې جامې يې اغوستې وې د ګټارې په منځ کې د ودانۍ مخې ته ولاړ و. جان محمد وويل چې هغوی دشاوخواسيمې پاکوالی کوي. د خوړو په مقابل کې بايد دوی هره ورځ کار وکړي. دپنجرې څخه بهر دوه سرتېري چې کلاشنکوفونه ورسره و، ولاړو.

جان محمد وويل چې د طالبانورهبران پوهېدل چې په دغه ځای کې په دقيق ډول څوک زندانيان و اودقيقاً دغه زندان چېرې موقيعت لري.

د ملايانوسره ناوړه سلوک نه کېده خو ددوی ژوند او حالت له ستونزو ډک و.

هغه وويل چې دوی د بيمې کرنلارې ته ورته بېلګه ده ځکه دوی مهم ملايان دي او د دوی سره ښه سلوک د شمالي ټلوالې د هغه بنديانو چې د طالبانوسره په زندانونوکې و، طالبان د هغوی په وړاندې د دوی سره د ډېرزيات ظلم څخه منع کول. کله چې مورخپل کورته د راتګ په حال کې و مو(ږ) د دغه ملايانو له زندان څخه د تېرېدو په مهال لس يا زيات ملايان وليدل چې د چاردېوالی په منځ کې په يوه کونج کې يې د کومې پروژې کار چې د مځکې کېندل و، سرته رساوه.

دا ځل مې وليدل چې په دواړو ودانيوکې کړکۍ نه وې يوازې درې يا څلور نري اوږده چاوکټونه (نری اوږد غار) د مځکېني دېوال په پورتنۍ برخه کې و چې زما په فکر يوڅه رڼا او باد ورپرېښوده د دوی لپاره ژوندپه رښتياهم سخت و.

الفاګروپ ماسپښين مهال ټليفون وکړ، له ارجي سره وغږېدلو او د دوستم له خواګروپ ته دهرکلي په اړه يې مثبت خبرراکړ. ظاهرًاً دوستم زيات وخت خپل

ځواکونه د اسونو په واسطه لېږدول. او الفا ګروپ اوسمهال رسمآد اسونو د کاروان غړي و. ستونزه د اسونو په سپرلۍ کې نه وه ځکه چې دغه اسونه دامریکې متوسط اسونو څخه کوچني وو. ستونزه په هغه زينونواومېخونوکې و چې افغانانوکارول. زینونه کوچني او د نرۍ څرمنې څخه جوړشوي و اوشاتنۍ هغه موړه چې امریکایي زینونه یې لري، نه لرله.

د دې څخه لا زیاته ستونزه.یې په رکاب (کریب)کې وه چې امریکایي لویې پښې په کې نه ځایدلې. دویستونزې جوړولې خو ارجي وويل چې هغوی په همغه ورځ قرارګاه ته پیغام لیږلی او له هغوی یې غوښتي چې ژر تر ژره امریکایي زینونه اوګل مېخې ورولیږي. ارجي وويل چې قومندان عطا د دوستم سره د الفا ګروپ د یوځای کېدلو له امله لړځه خپه و.

دوستم ارجي ته ډاډ ورکړی وچې چې د ده او عطا ترمنځ به هرڅه ارام وي. او د هغه دغه ډول خپګان زموږ تر منځه د اوږد مهاله سیالۍ او مخالفت یوه برخه ده.

ارجي د دوستم د ځواکونو لپاره په راتلونکي څو ورځو کې د هوا له لا رې د وسلې او مهماتو د غورځولو غوښتنه کړې وه. دغه غورځونه به په هغه سیمه کې ترسره شي چې د الفا ګروپ ته پېژندل شوې اوپه نښه شوې وه. داپه دې مانا چې ټول اکمالات به د دوستم ځواکونو ته ورکړل شي.

ما ارجي ته څرګنده کړه چې د اکمالاتو غورځونه ښایي د نوموړو قومندانانو تر منځ د ستونزو د جوړېدو لامل وګرځي. په داسې حال کې چې د الفا ګروپ به یې په منځ کې رابښکېل وي. په ورته وخت کې ما ارجي ته ډاډ ورکړ چې زه به په جنرال فهیم فشار راوړم څوله عطا وغواړي چې ارام شي او د دوستم سره همکارۍ ته دوام ورکړي.

په همغه ماسپښین دڅلورو بجو په شاوخوا کې مو د ډګروال ملهولانډ پسې ډېر ټليفونونه وکړل څو د تېرې شپې ناکامه ننوتنه وڅېړواو د راتلونکې بريالۍ هڅې دپاره پلان جوړکړو.

هغه ومنله چې د بریالي هرکلي لپاره یې باید زما دګروپ سره اړیکه نیولې وای خوهغه له دې چې سینټ کام ورته او دي اې 555 ګروپ د ننوتنې اجازه لکه څنګه چې د ده خو ښه وي ورکړې وه. هغه نه ماتېدونکې و. د ده سره بحث کول بې مانا و. ملهولانډ وويل چې د اې ګروپ همدغه ماښام دندې ته ولېږي خو د هوا د حالاتو وړاندوینه څرګندوي چې د هوا حالت د تېر ماښام څخه هم ناوړه دي.

د راتلونکي نولسم اکتوبر لپاره هر څه برابر او سم ښکارېدل. هغه وويل چې سینټ کام ته به خبر ورکړي چې د ګروپونو د راتګ د ماموریت لپاره به همدغه

ثابته نېټه وي. ما له هغه وغوښتل چې زما ګروپ سره په اړيکه کې شي او له خپلو پيلوټانو وغواړي چې له ګريک او ايډ سره سبا ورځ چې له دوشنبې څخه راګرځي،وغږېږي. د شپې ډوډۍ تياره وه. ممتاز راغی او خبر يې راکړ چې انجينر عارف په همغه ماښام ترتيب شوې ليدنه کې ګډون نه شي کولی. په راتلونکې ورځ هم نشي کولی چې حاضرشي ځکه چې د مسعود د مرګ څلوېښتمه ورځ وه. مراسم او دعا د مسعود د قبر په سيمه کې د ورځې په اوږدو کې ترسره کېدل.

زه پوهېدم چې ممتاز د څلويښتمې ورځې د لمانځلواو ارزښت په اړه رښتيا ويل ځکه په اسلام کې ديو چا د مرګ وروسته د وير کولو دغه يو مهم پړاو دی. سره له دې بيا هم ما فکرکاوه چې دغه ډول ښايي عارف د تېرې شپې د اې ګروپ د ځنډېدلو له امله خپله غوسه څرګندوي.

ارام ماښام وچې يوازې موږ څلور د دفتر په ساحه کې ټک ټک کاوه او بوخت و. بهر باد چلېده،هوا سړه وه او زه هم نسبتاًپه وخت خوب ته لاړم. د مهماتو د ساتلوګدام ته د شپې د يوه بار وړونکي موټر راتګ له خوبه راويښ کړم. تقريباً د يوساعت په دوام د درندو بکسونو په زوره د کوزېدلو له امله ګړنګهار و. دا هم يوځه د انديښنې وړ و خوپه وروستۍ برخه کې غږ لکه دوه شيان چې په زوره سره په مځکه راوغورځېږي، تبديل شو.

له کړکۍ مې بهر وکتل او ومې ليدل چې يوشمېرسرتېري داسې شيان لکه يوسلو دوويشت ملي متره راکټونه د دوی د خلاصوغارونو څخه د موټر شا ته وړي او په چټکۍ سره بې احتياطه او بې ترتيبه غورځول کېدل،او دلۍ يې ترې جوړوله. يوازې دومره مې کولای شول چې کټ ته بيا د خوب لپاره لاړشم. که چېرې دمهماتو انباراوګدام انفجار کړی وای، زه يې په درد هسې هم نه پوهېدلم. په حقيقت کې پاتې شپه مې ډېرارام خوب وکړ.

## نهه ويشتم څپرکی
## د اې ګروپونو ننوتل

د نولسم اکتوبر پر سهار د ښوخبرونو په رارسېدوسره پيل شو. دتروريزم په وړاندې رياست د ليک له لارې خبر راکړ ،د هر څه دلايلوپه اساس چې وي، د روسانوله خوا فشار يا د امريکې د پوځ له خوا د شپاړسم اکتوبر په شپه د الفا ګروپ په برياليتوب سره د ننوتنې له امله او يا هم په امريکې کې د ادارې د جګپوړو چارواکو د هغه تجربې له امله چې د دغه لوړ پوړو مامورينو د لاسونو په تاوولو يا فشار اچولو کې يې لرله. دواړو د ازبکستان او تاجکستان حکومتونو د او ډي اې 555 ګروپ د هوا له لارې د ننوتنې لپاره رسماً اجازه ورکړه. که چېرې

دهوا حالات اجازه ورکړي، د اې گروپ بـه نـن شپه الوتنه وکړي. پـه دوشـنبه کـې زمونږ هوايي ډلې خبر راکړ چې دغرونو په سر هواپاکه ده او دوی به د سهار په اتوبجوخوځښت وکړي چې درې ته به لس نیمې بجې راورسیږي.

سټان ډاکټر اوریک د بگرام څخه تر اوسه نه وو راگرځېدلي نوځکه زه پلی لاړم ثوممتاز دچورلکې د راتگ او لـه دې چـې نـن ماښام د اې گروپ راتگ تصديق شوی او داخل یې وخت معلوم و، خبر کړم. لـه دې چـې د څلويښتمې ورځـې پـه مراسـمو کـې بـه ممتاز تـه دغـه خبـر مزاحمت کـوونکی وي ، بخښنه مـې تـرې وغوښته خوهغه د دغه خبر په اورېدو خوشال شو. هغه وويل چې مخکې له دې چې هغه مراسمو ته ولاړ شي هغه به دښکته کیدلو په ځای کې په همغه ماښام د رالېږدونې لپاره چمتووالی ونیسي . همدارنگه کله چې ماسپښین هغه راوگر ځي د اې گروپونـو د هرکلي لپـاره بـه هـم ترتیـب ونیسي. لـه دې چـې لـه انجینـر عارف سره مې تېره ورځ ليدنه ونه کړه ما وانگېرله چې شمالي ټلواله تـر اوسـه هم پـه دې پرېکـړه ټينگـه ولاړه ده چـې د اې گروپونـه درې تـه د راتـگ پـه مهال بايدملکي جامې په غاړه ولري. زه پـه مخابره بانـدې د ډگروال ملهولانډدغبرگون څخه پوهېدم چې هغه به خپل کسان په يونيفارم کې راليږي. دڅلويښتمې ورځـې د مراسموپه ترسره کېدو سره نن ورځ دشمالي ټلوالې د کوم جگپوړي مشر لیدل ناشوني ښکارېدل. له دې امله چې د څلويښتمې ورځې مراسم تر سره کېدل، نن ورځ دشمالي ټلوالې دکوم جگپوړي مشر سره زمونږ ليدنه ناشـوني ښکارېدله. مـا نشو کولای چې دغه موضوع ورسره وڅېړم. او ډي اې به راشي يا په يونيفارم کـې او يا د يونيفارم څخه پرته او بيا به وگورو چې څه پېښـېږي. د مـوټرو د راتـگ د غـږ له امله ميوري راغی اود چورلکې څخـه يـې تـوکي راوړل. ټـول دروازې تـه ورغلـو ميوري خوښ ښکارېده او په ورين تندي يې موسکا کوله. لـه ما يې وپوښتل چـې (گيري)فکر وکړه چې زه به له ځان سره څه لرم؟ما ورته وويل چې نور لس مليـون ډالر! هغه وويل چې نه د هغـه څخـه يوڅه بهتـر دی خنـدا يـې کولـه او ويـې ويـل چې سل پاونـډه سټار بکس (يـو ډول کافي)کافي لـرم. زه د دغـه خبـر لـه املـه خوښ شـوم خونه پوهېدم چې ولې قرارگاه د دې فکر کـړی وچـې سټار بکس کافي راوليږي. هغه وويل چې ايا تا ته په ياد نـه دي چـې د بيـا اکمالاتو پـه خاطر مو لويه غوښـتنه کـړې وه. کـريس پـه کـې د سل پاونـډه سټار بکس کـافي او د انجيل کتاب غوښتنه کړې وه. مـونږ ټولـو وخنـدل خـو دا دی دلتـه راورسـېدل. دوی هغه دوه دکافي چټوونکي اوسپنيز چاينک هم چې کريس يـې غوښـتنه کـړې وه، رالېږلي دي. هو انجيل يې هم رالیږلی دی. براډ دسـټار بکـس دکمپنـۍ دوه لـويې کڅوړې را واخیستې او هره يوه يې ديوه پاونډ ځمکنۍ کافي څخه ډکه وه. دپيک اپ موټر په وروستۍ برخه کې دوه د اخيستنې کڅوړې پرتې وې. مـونږ ټـول هلتـه

په حيرانتياسره ولاړو. د دېرشو دقيقوپه بهيرکې موږ تازه اوگرمه کافي بيا وڅکله. موږ جان محمد ته ورو‌ښودله چې دا پخوانی ډوله کافي څنووونکې څه ډول کارول کېږي اوباید څومره کافي پکې واچول شي. دورځې په بهير کې وروسته بيا هغه دوه نغري دکرسيون (يوډول تېل چې دسونگ موادو په ډول کارول کېږي. ژباړن)بخاری د پخلنځي دکړکۍ په باندينی برخه کې جوړې کړې وې او ځوان افغان يې د دغه لوښو دمسولينو په توگه ټاکلی و. داځای زموږدکافي دکان وگرځول شواو جان محمد له دې امله چې ځای يې ډېر پاک ساته زموږ له خوا وياړ اخيستونکی شو. هغه هره ورځ يو لوښی دکافي څخه ډک او تيار درلود حتی د شپې د ډوډۍ څخه تر ډېره ناوخته پورې. دمورال ساتلو لپاره دغه ټيله فوق العاده وه او د سهار د کا في لومړی پياله هغه څه وچې موږ ټول به ورته انتظار و. زه نه پوهېدم چې کريس به کله هم هغه غوښتل شوی انجيل لوستی وي خود تروربېزم په وړاندې د رياست د لوجستيک افسر دغه له فکره ډک عمل و چې د انجيل په اخيستلواو ده ته په راليږلوکې يې اضافه هڅه کړې وه.

## دېرشم څپرکی

ريک ستېان او ډاکټردکابل سره له لومړۍ کرښې څخه دغرمې لږ وروسته راوگرځېدل او خبر يې راکړ چې يو ساعت وړاندې په موټرکې د راتگ پرمهال يې د قوماندان مسعود د قبر د غونډۍ سر د وېرکوونکو څخه ډک وليد. ما په دغه مراسمو کې د گډون هيله درلوده خو ونه بلل شوم. مانه غوښتل چې په داسې حال کې چې زموږ کوربانوخپل احساسات څرگندول ،نابللی ورشم. په مراسمو کې زموږ گډون به دهغوی پام اړولی وای اومااحساس وکړچې دوېر او خپگان څرگندولو لپاره دغه وخت دهغه چا لپاره دی چې دقومندان سره اوسېدلي او دهغه سره يې په يو ځای جنگېدلي دي. دکړکۍ بهرنی برنډۍدکافي د څښلو له امله په چټکې سره پام ځان ته واړوه.

ستېان، ريک او ډاکټرددغه کافي لومړنی پيالې په بيړه وڅښلې. فکر يې کاوه چې دکافي دوهمو پيالوتر ډکولو وړاندې به خلاصه شي!

ممتاز زموږ کورته دځلور بجو په شاوخوا کې راغی هغه په غوسه ، خپه اوغلی ښکارېده ،ويې ويل چې دقومندان مسعود لپاره مراسم ډېرپاروونکي ول. زه پوهېدم چې هغه ټوله ورځ ژړلي و . د ده لپاره دا سخته ورځ وه. ما ورته وويل چې دغرونو په سر هوا ښه ده او زموږچورلکې له دوشبې څخه خوندي راورسېدې.

موږ هيله مند و چې د اې گروپ به دخپل مهال وېش سره سم په همغه ماښام راورسېږي. ممتاز وويل چې هغه به په انجمن کنډوکې دهواله ليدونکي

څخـه د هواحالـات وپوښـتي اوهمدارنګـه دشـپې مهـال دګـروپ د لیږلـو لپـاره موټروانان او موټرونه د ښکته کېدلو په محل کې انتظار کړي.
دماښام په شپږوبجومودټاسک فورس ډاګر سره په تاشکند کې تماس ونیوه اوریک دډګروال مل هولانډ سره خبرې وکړې. دهغه ماښام لپاره دهوا حالات ښه اټکل شوي وخو په لوړو ارتفاعوکې دیخ سره دمخامخ کېدو خطر و.
۵۵۵ ګروپ دندې ته تیار و. دګروپ یوولس غړي به په دوه ټیټ غږلرونکو ایم ایـچ 53 ډولـه چورلکـوکې دنـدې تـه دتللولپـاره الوتنـه کـوي. پـه اسـتنه کـې دکوزیـدلواټکل شـوی وخـت لـس بجـې و. ایډاوګرېک هلتـه انتطـار واودچورلکوله پیلوټانوسره یې لس دقیقې یازیات وخت تېر کړ څو د هوایي کرښې دځراغونو په واسطه دمځکې په ښښه کول،اودمځکې جغرافیایي کوارډنیاټ سره وڅېړي. جان محمد راغی اوله ما او رېک یې وغوښـتل چـې د اې ګـروپ داوسـېدلولپاره دویـم کور لـه نـږدې وګـورو. دغـه کـور زمـوږ د ځـای څخـه تقریبـاً پینځـه سـوه فوټـه لـرې واودبـارک دکلـي پـه یـوه غـاړه بانـدې پـروت و. دا یـو داوسـېدلو دودیـز کـور وچـې دختوجوړشـوی لـوړو دېوالونوپـه واسـطه درې کـوچنی ودانـی چـې هغـه هـم لـه ختوجوړې شوې وې، چاپېره وو.
لومړنیـودوه ودانیـو یـو شـمېر کـوټې لرلـې چـې هـره یـوه یـې پـاکې اورنـاوې. دکوټوغـولي خـام واو د نویـواوځیرو قـالینو پـه واسـطه پوښـل شـوي و. دریمـې ودانـی دتشناب اسانتیا هم درلوده. (غولی یې له کانکرېټ جوړ وچې په کونج کې یې یوغار واوداوبو یوه لویه بوکه وه چې دکمـود پـه توګـه کارېـده. (لیکوال) یـوه کـوچنی سیمه یـې درلـوده چـې دېخلنځـي لپـاره کارېدلـه. جـان درې ځوانـان درلودل چې ټولویې په پاک کاري او جاروکولو کې ډېر ستونزې ګاللې،هغه ډاډ راکړ چې دغـه ځـای بـه درې تـه دمېلمنودراتـګ څخـه وړانـدې اوسـېدلوته تیـار وي. هغه وویل چې دمېلمنولپاره بـه تـازه خـواړه ، چـای اوکـافي کورتـه دسـرتېرودراتګ سره سمدستي تیار ولـري. کله چـې ریـک اوزه خپـل ځـای تـه راروان و، ومـو لیـدل چې دغه نـوی کوردمهماتوډېپوته څـومره چـې زموږځـای ورنـږدې و،هغـومره واټـن کې پروت و. زما په فکر چې جان محمد غواړي چې ځان ډاډه کړي چې که چېرې دمهماتو ډیپوچاودنه وکړي، باید مـوږ ټـول پـه کـې لـه منځـه ولاړشـو. ریک وویل چې هغه تراوسه هـم د 122 ملـي متـره راکټونـوغږچې درې شـپې وړانـدې هاخوا دېخواغورځېدل ،اوري.
پـه اسـتنه کـې پـه حقیقـت کـې دکووزیـدلودوه ځـایونو شـتون درلـود. پاسـنی سیمه په اسانی سره دوه چورلکې په ورته وخت کې ځایولای شي.په پرتلیز ډول کوچنی دویم محل دغونډۍ په ښکته لـورې کـې اودسـیند سـره پـه افقـي سـطحه پروت و. شمالي ټلوالې خپل دوه ایم ای 17 ډوله چورلکې په ښکتنی ساحه کې

درولي وې. موږ هم خپله چورلکه ددوی دچورلکو سره یو ځای ودروله ځودشپې دهوايي عملیاتولپاره پورتنی ساحه خالي شي. که چېرې د اې گروپ یې لېږد او زالیږد ترسره کاوه باید دسویل لخوامخامخ ، د درې ښکتنی برخې اودبارک دکلي له مخ څخه تېر اوبیا په سیند کې دکږلیچې سره چپ لورې ته چې دره پراخېږي،را گرځولي وای. دکوزېدلو دځای دنښه کوونکو څراغونو په شتون سره به دراتلونکې چورلکو پیلوټانو ته په داسې حال کې چې ځای ته رارسېږي دځودقیقولپاره په اسانی سره سره لیدلای شي.

ډاکټربه یوځل بیا هم دخپلوطبي توکو سره دعاجل وخت لپاره منتظر ولاړ وي. کریس به له ممتاز سره له نږدې څخه کارکوي څو ډاډه شي چې ټول موټراو د موټر چلوونکي شتون ولري اود اې گروپ به په چټکی سره موټرونوته واچوي. مېوري اوسټان غوښتل چې گډون یې په کې کړی وای. ما هم هوکړه کوله خوپه موټروکې ځای لږ و نو د دې دپاره باید زه له پاتې نور گروپ سره په خپل ځای کې پاتې وای. دشپې په نهو بجو د هرکلي گروپ تیار او د کوزېدلو ځای په نښه شوی و. رېک دایچ اېف مخابرې په واسطه له موږ سره اړیکه ونیوه او ویې وویل چې ممتاز سره د لېږد له وسیلو(موټرو) راورسېد. څلوردانې هایلوکس پک اپ موټرونه او څلور سرف جیپونه وو. تقریباًپه نهو نیمو بجو زه،میوري اوسټان دکور بام ته وختلو.موږ د شپې عینکې هم درلودې څوچورلکې دکوزېدلو ځای ته دتېرېدو په حال کې ووینو.

یوارام مابښام واودتېرو دوه شپو څخه لږ څه تاود و ،اسمان هم پاک و.سپوږمۍ هم دخپلوتیاره جاموڅخه د راوتلو په حال کې وه چې پریمانه چار چاپېره رڼا یې خوروله او د عینکوسره یې مرسته کوله. دراتلونکو چورلکو پیلوټانود الوتلولپاره د دې څخه غوره شپه نشوه پیداکولای.

په لس نیمو بجو ما او ریک د مخابرې له لارې اړیکه ټینگه کړه څو د راتلونکو چورلکو دراتگ حالت سره وځېږواود ټاسک فورس ډاگر لخوا وروستنی پیغام په نهو بجو او پنځه څلوېښت دقیقو باندې راغلی و. هغوی خبر ورکړی وچې الوتنه دمهال وېش څخه لږ وروسته پاتې ده ځکه چې د غرونو په لوړو څوکو د تیز باد او ساړه سره مخ دي. موږ یوازې دومره کولای شول چې انتظار وکړو. بیا دشپې په لس نیمو بجو موږ شمال لورې ته دچورلکو وهونکو(درز لرونکې)ځرخونو غږواورېد. دوی ټیټه الوتنه کوله او دغږڅخه موږ پوهېدوچې د درې په منځ کې سیده دسیند دجریان په خارسره راروان و. ماریک ته په داسې حال کې چې دوه توررنگه چورلکې زموږپه سر دتېرېدلو له امله غږمبهارکاوه، تقریباد یو سلو پنځوس فوټه په لوړوالي سره یې الوتنه کوله، دلاسي مخابرې په واسطه اړیکه ونیوه. دوی زموږ له موقیعت څخه په چټکی سره تېرې شوې او دکلي څخه لږ

ورانـدې ګـڅ لـورې تـه چـې غـټ کړلیچـی و،وروګرځېـدلې. دوی تقریبـا یومیـل دکوزیدلو ځای ته ورنږدې شوې وې خوکله چې دوی د درې کړلیچي ته ورننـوتلې، دماشینونو غږ یې بدلون وکړ. دا ښکاره وه چې دوی سرعت په کراره او په هـوا کې درېدلوته یې تیاري نیوله. مېوري هڅه کوله چې ددرې ښکته لورې تـه په پام سره وګوري. میوري وویل هغوی ښکته کېدلوتـه تیـاری نیسـي د دې فکرکـوي چـې دکوزېدلوکوارډنیاټو کې موقیعت لري خو دوی یو میل یا لیرې زیات واټن لري. غږ بیا بدلون وموند اوهغه وویل هوخدایه دوی خوښکته کېږي. دا خو ټوله سره ګډه وډه شـوه. ریـک مخـابره وکـړه چـې د درې پـه پـورتنۍ برخـه کـې دوه چـورلکې دکوزیدلوپه حال کې ویني. بیا سمدستي یوې چورلکې پورته خوځښـت وکړاو له بلـې چـورلکې څخـه لیـرې ولاړه. کلـه چـې ریـک دپېښـې پـه اړه وغږیـد، دوهمـه چورلکه هم پورته شوه. داسې ښکارېده لکه دکوچنۍ غونډۍ څخه چې پورته شي اوبیاښـکته شي تقریبـاً یـوه دقیقـه ځنـډ و،بیـا دواړه چـورلکې پـه هـوا شـوې اود ماشینونو یې غږمبهار زیات شو. دکور دبام څخه مور ولیـدل چـې دواړه چـورلکې زمور خواته بیرته رارواني شوې ،درې سوه فوټه لوړې شوې اود درې شمال لـورې ته زمور په سرونوتېرې شوې. دکوم علت په اساس هغـوی د کوزېدلوځای غلـط کړی و . د555ګروپ یې په دووبیلا بیلو ځایونو کې کوز کړي وو. په مخـابره کـې د ریک غږ مات شو. هغه وویل چې هغوی به له هغه ځایه حرکت وکـړي څوګروپ پیداکړي. دوی سره بېل بېل و. دوهمې چورلکې ګروپ ډېر لـرې د درې پـه ختیځـه برخه کې ښکته کړی و. ریک ته مې ځـواب ورکړچـې میوري سټان او زه بـه پلـي ووځو څوهغوی ولټوو. داسې ښکاري چې مور ته به لومړنی ګروپ ستاسې څخه نږدې وي. هلته به سره وګورو مور په زینوکې ښکته منډې کړې. څراغونـه مـوهم راواخیسـتل او د کلـي پـه خوامـو ښـکته د اسـتانې پـه لـورې حرکـت وکـړ. مـور ډېرګړندي روان وتقریباً منډې ته نږدې و . له ځان سره مې پوښتنه پیداکېدله، چې څنګه کېدلای شي چې دغو کسانو د کوزېدلو ځای غلط کړی وي. یـواړخیزه ښـکته کېدل خـوهم نـه و. دښـکته کېـدلو ځـای هـم پـه نښـه شـوی و. دوی خوبایدلـه دوه میله واټن څخه هم لیدلي وای. ولې دغه دوه چورلکوګروپ سره بېل کړ؟که څـه هـم چـې دوی پوهېـدلي دي چـې دوی پـه صـحیح کوارډنیـاټوکې نـه ښـکته کېږي،ګروپ یې ښکته کړاوبیا یې ولـې یوځای ښـکته نـه کـړل. تقریبـا دکلـي څخـه یومیل بیدیا، سړک دسیند غاړې سره غزېده. دکوچنیو کانالونو یوه لړۍ د سیند او سړک تر منځ بهېدله . میوري له دغه لندې سیمې ورپـورې شـوڅوهغه نقطـې ته چې مور فکرکاوه چې لومړی چورلکه پکې کښیناستله، تېز ورورسېږي.

مورختیځ او زمور مخامخ لورې ته چې سیمه په غونډیوبدلېدله. څراغونـه مـو ولیـدل. هغـه سـیمه چـې لرګـي ول ، دځنګلـي واښـو پـه واسـطه پوښـل شـوې

وه،یوشمېر ځراغونه ښکارېدل چې ها خوا اودیخوا گرځېدل. میوري وویل چې هغه به زموږ د سرتیرو ډله وي. دوی پوهېږي چې په غلط ځای باندې ښکته شوي دي اوموږته اشارې کوي. هغه په منډه شو او د ولاړوکانالونواوبه یې هاخوا دیخوا وشېندلې. د ځراغونو په خوا ورغی.

ما او ستاڼ هڅه وکړه چې په هغه پسې وروړسېږوخوهغه اوس دمنډې په حال کې و ځراغونه هم زموږ په لورې راروان و. میوري ورغږکړ موږ امریکایان یو. دېخوا وگوری،موږ امریکایان یو! موږ دمیوري څخه تقریبا شل فوټه لیرې وچې هغه دسیندغاړې ته وروړسېدداوبو بهیر دلته گړندی واوپه شپه کې داوبو د ژوروالي مالومول ناشوني و. میوري تراوسه هم اورده قدمونه اخیستل اوداوبو یخ جریان ته یې یوه سخته اوسطحي غوټه وروکړه. هغه په گندیتوب سره لامبو وهله اوپه تیاره دلامبوله امله داوبو په سر سپین ځړ ښکارېده. ستاڼ او زه ودرېدلوڅو دا منظره وڅارو. سیند دلته پراخه وخوزموږ ښی خواته تنگ و. ستاڼ تیرې ولیدې چې دسیند هاخواپورې کېدلې اوموږ د تیرې په لورې حرکت وکړ. مېوري دسیند هاخواته ورسېد او د څلور فوټه جگ دختوله پولې (مورې)سره مخامخ شو. هغه دسیند له غاړې دخس اوخاشک (یو ډول بیکاره بوټي)څخه په تیزی سره تېر شواوبیا دپنجواوپښو وهلوپه مرسته دښوینې پولې سرته پورته شو. کله چې میوري ودرېده، ځراغونه تقریبا د لسو فوټوپه واټن کې واو د ده په لورې یې وربلولې. هې امریکایان یو!زه یو امریکایي یم اودلته راغلی یم چې له تا سو سره وگورم. ولې ځواب نه راکوی؟

هغه کسانوچې ځراغونه یې نیولي ومېوري ته ورنږدې شول. مېوري ولیدل چې دوی دامریکې ځانگړي ځواکونه نه بلکې یوڅو افغانان وچې د دغه شوراو نا کراری له امله له کورونوبهر راوتلي و.

میوري چې په ځټو لړلی و، اوټول لوند او دسر ویښتان یې ټول په سر باندې سرېښ و. هغوی ته په بهرنی ژبه کې چیغې وهلې. دوی ښایي فکر کړی وي چې دی دبهرنی فضا کس دی. له نېکمرغه هغوی سره وسلې نه وې . زه اوستاڼ دسیند څخه پورې غاړې کې و. چې ور پورې شوو،میوري هم زموږڅخ لورې ته و. دیوشمېرموټرو ځراغونه هم زموږ په خوا ښکته او پورته کېدل .موږ پوهېدوچې زموږ د هرکلي گروپ دی اود اې گروپ په لټه کې و.

موټرو خپل لوري ته بدلون ورکړاوموږهم ددوی په خوامنډې پیل کړې. مېوري هم زموږ مخې ته راغی او د 555 نیمایي گروپ هم همدلته په سیمه کې و. دوی خپل توکي په یوه کړی کې د دفاع دپاره ایښی و . زموږ د رارسېدوپه انتظار و یوسرتېری چې وارنټ افسر ډي د کړی څخه راووت او د رارسېدونکي ډلې په لورې په پام سره ورغی. میوري هغه ته په داسې حال کې چې خپل لونداوپه

افغانستان خټوککړ لاس یې وروغازوه اوویې وویل: اې ملګرو، زما نوم میوري دی: ته په خیرراغلی. موټرتقریبا شل فوټه لیرې ودرېدلو او د درېدو ځراغونه یې بل و.ما ولیدل چې ریک د موټر څخه ښکته شواوما اوریک دځانګړوځواکونو ګروپ ته د رسېدو لړځه وړانـدې سره یوځـای شـو. ماخپـل لـاس وروغـزاوه اوومـې ویـل: افغانستان ته راتګ له امله درته هرکلی وایم: موږ دسي ای اې هغه ګروپ یو چې تاسې به ورسره دلته کار کوی.

سرتېرې یوځـه حیـران ښـکاره شـو. د ده د اورې هـاخوا مـې ولیـدل چـې د اې ګروپ نورغړي زموږ په خوا د حرکت په حال کې و. ماورتـه وویـل چـې موږ موټر لرواوموږ به تاسې سمدستي وروسته دهغې چې ستاسـې پاتې کسـان پیداکړو خوندي کورته ولېږدوو. کله چې تاسې هلته ځای په ځای شـوی تاسـې تـه بـه تـازه کـافي اوتـازه خـواړه هـم تیـار وي راځـی چـې تـوکي مـو موټروتـه ورواچـووا و پاتې ملګري مو پیداکړو. کله چې داکار ترسره کېده، ساعت ته مې وروکتـل دا وخـت د شپې یوولس بجې وې. کریس وویل چې د دغه او ډي اې نیمـایي ګـروپ سـامان ځلورپیک اپ موټرې ډکې کړې. هغه وویل چې دغه موټربايد سـامان ولېـږدوي او بیا د هغې خوا څخه خالي موټر دګروپ بلې برخـې سـامان تـه راولیـږدوي. وارنټ افسر ( ډي) [1] زموږ سره هـوکړه وکړه. د دغـه ګـروپ دوه کسـان اوزمـوږ دګـروپ ځوکسـان د خونـدي کـور پـه لـورې ولـاړل. د 555 ګـروپ پـاتې برخـه موسـهارپه دولس بجو او دېرشو دقیقو پیداکړه. دوی هم خپلو توکـو پـه واسـطه یـوه دفـاعي کرښه جوړه کړې وه. د دې لپاره چې یا چاپیداکړي وای او یا هـم د سهارسپېدي چاود لپـاره انتظار و،دګـروپ قومنـدان تـورن آر لـه دې امله چـې موږ یـې ولیـدو، ډېرخوښ شو. په دولس بجو او پنځه ځلویښتو دقیقـو مـو د او ډي اې ټـول ګـروپ خونـدي کورتـه راورسـاوه. د ژمنـې سره سـم جـان محمـد هـم د خپلـو هلکـانو پـه واسطه ګرمه ډوډۍ ،چای اوکافي هم تیار کړي ول. سټار بکس کـافي وه. موږ د تورن آر[2] او د هغه کسانو ته خبر ورکړ. په سپین او رڼا کـورکې دننـه مـې ولیـدل چې ټول ګـرو پ پـه یونیفـارم کـې و مـوږ پـه دې چـې ولـې دغـه دوه چورلکـو د کوزیدلوځای ورک کړی و، هیڅ پوه نـه شـوو. موږګمـان وکړچـې یـا خـو پیلوټانوتـه ناسم جغرافیاوي کوارډیناټ ورکړل شوي او یا د هغوی فکرونه ګډوډ شوي اوفکـر یې کړی چې دوی په هدف باندې دي خود هرکلي ګروپ لا نشته. د دغه تیروتنې له امله ځوک ژوبل نه شول خو تیروتنه شوې وه.

---

[1] وارنـټ افسر هغـه مسـول کـس وي چـې د ګـروپ د غړیـو د خوځښـت او خونـدي اوسـېدلو مسولیت په غاړه لري. ژباړن

[2] لیکوال د خپلو مامورینو د نومونو د پټ ساتلو لپاره د شخص د نوم یوازې یو حـرف لیکـی دی، هیله مندیم چې لوستونکوته د قضاوت په مهال په یاد وي. ژباړن

موږ انجینر عارف ته ډېره ستاینه کړې وه چې ځانګړي ځواکونه په شپه کې هم په خپل هدف باندې د کومې ستونزې څخه پرته کېنستلی شي اوموږ به د اې ګروپ دکوزېدلو ځای ته د رسېدلو وروسته د څو دقیقوپه بهیر کې هغوی راوباسو. ددې په ځای لکه موږ چې په منځني ختیځ کې ویلي وو، دا یو تاریخي توپیر و. د درې د ټولو برخوکلي وال په دغه لټون باندې خبر شول اوزیاتوکسانوخوپه لټون کې برخه هم واخیسته. زه ډاډه وم چې دشپې دپېښې مالومات انجینرغارف ته دسهار دسپیدي چاودسره سم رپوټ کړای شوي و او همدارنګه له دې چې ګروپ په یونیفارم کې راغلی هغه ته خبرورکړل شوی و. انجینرعارف سره دمعاملې کولولپاره یوبله په زړه پورې ورځ وه!

## یو دېرشم څپرکی

د۵۵۵ د ګروپ په راتګ سره ددې لپاره چې دورځې زیات کار مومخې ته پروت وپه پرتلیز ډول وختي پاڅېدلو. موږباید د اې ګروپ په همدغه سهارزموږدشمالي ټلوالې کوربانه دحالاتواوموضوعاتو څخه خبر کړي وای اوهمدارنګه هغوی مو انجینرعارف ته ورپېژندلي وای.له هغوی موغوښتي وای چې ۵۵۵ ګروپ یې بګرام ته لېږدولی وای څو له جنرال بسم الله خان سره یوځای شوي وای. ماوریک له ستان څخه وغوښتل چې د اې ګروپ سره یوځای شي څوزموږاودهغوی ترمنځ اړیکه ټینګه شي. ستان ددغه رول دپاره ښه انتخاب و.

ځکه چې هغه دجنرال اودهغه مهموافسرانو سره ښې وظیفوي اړیکې درلودې. دې ته په مساوي ډول اړین داوچې دستان مهارت په روسي ژبه کې به د اې ګروپ زموږافغان کوربانو ترمنځ داسانه پوهاوي سبب وګرځي.

مېوري مخکې له مخکې د اې A ګروپ دڅوکسانوسره ملګرتیا جوړه کړې وه اوهغه هم په خپله خوښه دستان سره بدرګې ته تیارشو. ریک، کریس، ستان،مېوري اوزه د۵۵۵ ګروپ خوندي سمڅې[1] ته پلي ورغلو . سرتېرو خپل توکي ددې په هیله چې دورځې په وروستی برخه کې به ددندې لپاره سویل ته ولېږل شي،تیارول.

دګروپ غړي ارام ښکارېدل اوواضح دوی له دې چې افغانستان ته رارسېدلي

[1] خوندي سمڅه هغه ځای ته ویل کېږي چې د راکټ او مرمی د اصابت په پایله کې مقاومت ولري، دغه ډول سمڅه معمولاً د غره په لمن ، د ځمکې لاندې او یا هم د مځکې په مخ د ځانګړو کانکریټي دیوالونو څخه جوړې وې. ژباړن

و،خوښ و.
دوی له دې امله چې موږ ورته داوسېدلوښه ځای، ستاربکس کافي اوتازه خواړه ورکول، پام نشو اړولای. دوی دلته دراتګ سره فکر کاوه چې هغوی به بهرپه سخته هواکې دکمپونولاندې په خوندسره کارکوي. دغه هوسايي اوارامتيا دهغوی دپاره تقريباً دخپګان سبب ګرځېده (ليکوال دلته د خپلو ځواکونو ستاينه کوي. ژباړن). تورن آر اوساتندويه افسر ډي او د ګروپ جګپوړوغړوته د دې په اړه چې ورځ به څنګه تېره شي، مالومات ورکړل. همدارنګه مې هغوی له هغه پلان چې له مخې يې ګروپ نن ورځ دبګرام هوايي اډې ته ليږديده ، خبر کړل. ما اوريک ستان اومېوري هلته پرېښودل څوتول ګروپ ته تشريحات ورکړي. کله چې موږکورته راوګرځېدو، ممتاز خبر راکړ چې انجينر عارف غواړي چې په لسو بجو د ليدنې لپاره دلته راشي. ريک د اې ګروپ ته بيا ورغی څودګروپ مشر دانجينر عارف سره دليدنې لپاره راوغواړي.
ليدنې ته دتياری لپاره ډېرلږڅه اړين و (موضوع ښکاره وه. ژباړن) موږقرارګاه ته تېر ماښام يولنډ تلګراف وليږه څوهغوی د او ډي اې 555 ګروپ دخوندي رارسېدلوڅخه خبر کړو خوما بيا هم غوښتل چې ددغه عملياتو له پوره تشريحاتو څخه يې هم خبر کړم. ماغوښتل چې د اې ګروپ لپاره زموږ د هرکلي ګروپ د تياري نيولو،دکوزېدلو ډګر په احتياط سره په نښه کول،دلارې په اړه دځانګړوعملياتو د پيلوټانو او زموږ د پيلوټانو تر منځ مخکې له مخکې اړيکه اودکوزيدلو دځای لپاره دجغرافيايي کوردنياتوتاييد او تصديق په سم ډول بيان کړم. مباور نه درلودچې ټاسک فورس ډاګر به د اې ګروپ د هوايي ډګر د غلطولواو په پايله کې دګروپ په يوځای کولوکې دګډوډۍ اوحيرانتيا درامنځ ته کېدلوله امله کومه موضوع جوړه کړي خو که چېرې داسې شوي هم وای، ما ددغه موضوع حقيقت په رسمي تلګراف باندې غوښتنه کوله. دسهارپه ليکونوکې يو ليک مخ ته راغی چې يوڅه خپګان زېری يې درلود. د اېن اېس سي يا د امنيت د ملي شورا په کچه باندې د سي ای اې لخوا د همېشني فشار سره سره دبهرنيوچاروووزارت بې لا خره اوپه ټينګه سره دواشنګټن څخه دډاکټر عبدالله ليدنه رد کړه. ما بايد عارف له دغه موضوع خبر کړی وای. عارف په خپل وخت راغی. کله چې ما اوريک هغه دغونډوکوټې ته بدرګه کاوه، دهغه طبعيت خوښ ښکارېده. هغه واضحاً له دې چې د اې ګروپ رارسېدلی و، خوښ و.
ماله هغه څخه دتېرې شپې دګډوډۍ اوحيرانتيا له امله بخښنه وغوښتله او د دغه ستونزې پړه مې دلومړۍ چورلکې په ستونزمنوتوکو باندې ورواړوله. زه ونه پوهېدم چې عارف دزما په کېسې باور راغلی وي خوهغه دغه موضوع دلاس په ښورولو سره له منځه يووړله. هغه وويل چې اړينه داوه چې د اې ګروپ دلته

خوندي راغلی وي! عارف غوښتل چې د اې ګروپ بګرام ته د تګ په وخت باندې پوه شي. ما ورته وویل چې هغوی همدا اوس هم دتیارۍ نیولوپه حال کې دي. کله چې لوژستیکي چمتووالی اود جنرال بسم الله خان سره اړیکه ونیول شي. ګروپ سوېل ته ددندې لپاره چمتو دی. ما ورته وویل چې ستان اومیوري به دګروپ سره په دنده وګومارل شي څود جنرال بسم الله خان سره اړیکې ترتیب کړي. کله چې ماوویل چې زه غواړم چې عارف دګروپ قومندان ته وروپېژنم. خوله یې له خندا ډکه شوه. کله چې ریک لاړ څو آر را بدرګه کړي ماله څان سره وویل چې هو هغه څو په پوځي یونیفارم کې دی! تورن آر کوټې ته د ریک څخه مخکې راننوت اودعارف مخامخ مېزته ودرېده. عارف ولا ړشواو آر په داسې حال کې وروکتل چې ورکور شوڅولاس ورکړي. دعارف له مخ څخه موسکا هیڅ ورکه نه شوه. اولکه دنور وخت په څېرې داوسېدلودځای اودخوړو دښه والي په اړه پوښتنې کولې. تورن آر عارف ته ډاډ ورکړ چې ۵۵۵ ګروپ څنګه چې زمونږ افغان کوربانه هغوی ته دتګ امر ورکړي،تیاردي. عارف هغه پوښتنه چې ما یې انتظار کاوه،ترې وکړه. آیاد آر کسان به د دښمن دځایونو په وړاندې د جګړې په ډګر دلایزر په واسطه په نښه کولوعملیات ترسره کړي؟آر په چټکۍ سره ځواب ورکړ. صاحب: دایواځنی دلیل دی چې موږافغانستان ته راغلي یو. څنګه چې دبګرام په هوايي اډه کې ځای په ځای شو،موږ به د دښمن ځایونه د بمبارۍ لپاره په نښه کړو!

دعارف مخ هم موسکی شو،ویې ویل چې داخو ښه زېری دی. سویل ته دخوځښت لپاره به چمتووالی دلیدنې وروسته سمدستي پیل شي. دعارف یا زموږدنوروافغان کوربانو له خوا دیونیفارم موضوع په هغه وخت یا وروسته هم هیڅ ذکر نه شوه. ما باور درلود چې د آر لخوا د لایزرپه واسطه دهدف نښه کولوپوښتنې ته مثبت ځواب دیونیفارم موضوع حل کړه. دامریکې لخوا دشمالي ټلوا لې ددښمن په وړاندې د بم غورځول دشمالي ټلوالې رهبرانوته له دې چې د اې ګروپ څه ډول لباس په تن ولری، ډېر زیات ارزښت درلود. ما اوریک دانجینر عارف څخه الفا ګروپ شتون ته دقومندان عطا دغبرګون په اړه وپوښتل. عارف یوځه ارام اوخپه شو. هغه وویل هلته حالت جدي دی. هغه د سي ای اې لخوا دپیسې دورکړې څخه مننه دوی وخوددوستم سره دالفا ګروپ شته والی دمنلو وړنه و.عطاد مزارشریف په سیمه کې یو لوی قومندان و او مزار شریف په دودیز ډول دتاجکو تر ولکې لاندې سیمه ده.

عطا له دوستم سره اړیکې درلودې اوله دې چې ماښام دهوا له لارې وسلې غورځول کېږي، خبر شوی و. عطا خبر داری ورکړی و چې که چېرې دوستم ته دغه وسلې وروغورځول شي، هغه به ددوستم په ځواکونوبرید وکړي. ما عارف ته

وويل چې له دغه ډول عمل سره به واشنګټن ډېر زيات خپه شي. دالفا ګروپ دغړو ژوند به له اړتيا پرته په خطرکې واچول شي. ددې ثبوت چې دشمالي ټلوالې دوه قوماندانان ددښمن مخې ته په خپل منځي جګړوکې ښکېل دي. په واشنګټن کې دزياتو کسانودانظر چې دامريکې دمرستې تمرکز بايد په سويل کې دپښتنو سره وي، تصديق کړي!

ماله عارف ته سپارښتنه وکړه چې له جنرال فهيم څخه وغواړي څو عطا اړ کړي چې ارام شي اود دوستم په وړاندې دجګړې هرډول پلان له منځه يوسي. عارف هوکړه وکړه چې له فهيم به وغواړي چې د ورځې په بهير کې له عطا سره اړيکه ونيسي. په دې وخت کې زه پوه شوم چې د بهرنيو چارو وزارت لخوا د ډاکټر عبدالله د ليدنې ردول ښايي چې د يوې مثبتې پايلې لپاره وکارول شي. دابه زما د هغه تبصروچې په لويديځ افغانستان کې دشمالي ټلوالې د دوه لويوقوماندانانودجګړې اغېزه يې په واشنګټن کې په ګوته کوله،په ځواکمنولو کولوکې مرسته وکړي. ماله عارف څخه له دې امله چې دبهرنيو چارو وزارت دډاکټر عبدالله ليدنه ونه منله، بخښنه وغوښته خوداپه واشنګټن کې دلوړو پوړو چارواکو له خوا دشمالي ټلوالې داوږد مهاله هدفونوپه وړاندې دهغوی بدګماني تصديق کوي. ما ترخپله وسه کوښښ وکړڅوشمالي ټلواله په افغانستان کې زموږترټولوځواکمن ملګری په توګه ورو پېژنم اوفشارمې راوړڅودامريکې دبم غورځونې کمپاين ټول زور دلته په شمالي کې دطالبانوپه وړاندې متمرکز کړي څوشمالي ټلوالې ته دبريد کولولار پرانستل شي. زمابحثونوتراوسه پورې دسي ای اې رهبري کړی اود ملي امنيت د شورا له منځه د نورو کسانو په منځ کې د دغه ستراتيژی دسمولولپاره رضا کړي دي اوهيله مند يم چې په پايله کې د رهبری پاتې کړی به هم له دې هوښياری چې په شمال کې په جګړه باندې تمرکز وکړي، خبر شي. سره له دې ددوه جګپوړوقوماندانانوترمنځ جګړه د دې په سر چې څوک بايد د سي ای اې ګروپ مېلمه کړي او ياڅوک يواندازه وسله اومهمات بايد تر لاسه کړي، به داپه ډاګه کړي چې دشمالي ټلوالې سره له مرستې بايدډډه وشي اوپه دوی باندې دطالبانوپه وړاندې دجګړې په رهبری کولوکې باور نشو کولای. عارف په مطلب پوه شواوويې ويل چې له دې امله چې عبدالله به ونه توانېږي چې دامريکې متحده ايالاتو ته سفروکړي، خپه شو اودی به عبدالله پخپله ددغه پرېکړې څخه خبر کړي. عارف ډاډ راکړچې هغه به له جنرال فهيم څخه وغواړي چې د دواړو قوماندانانو تر منځ منځګړيتوب وکړي او هغوی وپوهوي. ليدنه له دې سره چې عارف تصديق کړه چې هغه به له ممتاز وغواړي چې د اې ګروپ سويل بګرام ته ولېږدوي ،پای ته ورسېده. عارف وويل چې دمازديګر پورې به هرڅه چمتو کړي. دالفا ګروپ سره مې دمخابرې له لارې اړيکه ونيوه. آر جي د

دوستم سره له لیدنې همدا اوس راوتلی و. اوهغه هم تصدیق کړه چې عطا ګوابښ کړی و چې که چېرې د دوستم ځواکونو ته دهوا له لارې اکمالات او وسلې راوغورځول شي، هغه به ددوستم په ځواکونو باندې برید وکړي . آر جي وویل چې حالت ترینګړي ښکاري اوله ما یې وپوښتل چې د درې په دغه برخه کې له شمالي ټلوالې په منځ کې څه پیښیږي؟

ماورته وویل چې له جنرال فهیم مووغوښتل چې راودانګي څودواړه قومندانانوسره اړیکه ونیسي اود دغه شوني خطرله رامنځ ته کولو څخه یې لاس په سر کړي.ماله آر جي څخه دعطا دبرید په صورت کې دهغه پلان په اړه وپوښتل. هغه وویل چې دوستم ډاډ راکړچې هغه به دوی ته د برید په وخت کې په کافي اندازه کسان د الفا د ساتنې لپاره ورکړي. آر جي وویل چې هغه احساس کوي چې دخوندي ساتنې دغه ډاډ قبول کړواونور خپل کارته دوام ورکړو. که چېرې عطا برید وکړ، الفا ګروپ به د حالاتو د پرمختګ سره سم عمل وکړي. ماورته وویل چې دماښام لپاره د وسلې غورځول وځنډوي خو آر جي وویل چې باید ترسره شي. د دوستم ځواکونه اکمالاتو ته اړتیا لري. اودامهمه وه چې د پنجشېرڅخه دباندې په شمال کې دشمالي ټلوالې له قومندانانوسره د سي ای اې مرستې پیل شي. دماسپښن وختي برخه مودعارف سره دلیدنې د پایلو او د دوستم اوعطا ترمنځ په حالاتو باندې درپوټ په لیکلوتېره کړه.

ماواشنګټن ته سپارښتنه وکړه او فکر مې کاوه چې دوستم ته دوسلې دغورځولوبندول به ترهغې چې حالات له خطره راووځي، هوښیاري وي. وسله مهمه وه خودوستم دوسلې په دومره لوی بهران کې نه و. د دې په هیله چې جنرال فهیم به راودانګي، دیوې یا دوه ورځو لپاره داکمالاتو په غورځونه کې ځنډراوستل به یوه ښه کړنلاره وي خو له اړتیا پرته اورته ته تېل ورګډ نه کړو. ممتاز په دربو بجو راغی اوخبر یې راکړچې د جنرال بسم الله خان سره ټول انسجام اوترتیبات بشپړ شوي. په شپږو بجو د اې ګروپ ته د لېږد وسپلو برابرول بشپړ شي څو هغوی خپل توکي بار کړي. ما په تیاره کې دګروپ لېږدول په دغه کوږوږ دلوړو او ژورو او له خطره ډک سړک له امله اندېښنه وښوده. ممتاز ډاډ راکړچې دهغه موټروانانوپه دغه سړک باندې ډېر ځله موټرواني کړې. دوی سړک سره دومره بلدیت لري چې په پټوستر ګوهم پرې موټرچلولی شي.ماورته وویل چې همدا دلیل دی چې زه یې اندېښمن کړی یم. ممتاز په دغه ټوکه پوه نه شو. مورستان ته یوروسی جیپ موټرورکړخود۵۵۵ ګروپ سره په خپل موټرکې سفر وکړي اوهمدارنګه په بګرام کې خپل ټرانسپورټ ولري. دشپږوبجولږ وړاندې مودهغوی سره جیپ موټرته دسامان په بارولو کې مرسته وکړه. ریک اوزه د اې ګروپ کورته ورغلوڅو هغوی سره مخه ښه وکړو. دمهالوېش سره سم ممتاز د یو

شمېر پیک اپ موټرواوسـرف جیپونوسـره هلتـه موجـودو. د هغـه کسـانو دسـرتېرو دتوکو د لویواودرنوبکسونو په وړلو بوخت و. په همغه سهار مودشپې د سفرلپاره له دوی سره د توکو په چمتووالي او دلی کولوکې مرسته وکړه.ما د دغه بکسونو دپورتـه کولوهڅـه وکـړه. فکـر کـوم چـې دمځکـې څخـه مـې یـواینچ پورتـه کړاوبیـا تسـلیم شـوم! تقریبـا دوه سـوه پاونـډه وزن یـې درلـود. دغـه ځـوان افغانانودغـه بکسونه موټر ته اچول او یو یو یې د دریو کسانو سـره پـه ګـډه پورتـه کـول. یوځـل دځانګړو ځواکونو یوه سرتېري هغه افغانانوته چې دبکس دپورته کولوکوښښ یې کاوه،ورغی. هغه په عادي ډول دغه بکس په یولاس کې ونیـوه. اوپـه یـوه اسـانه حرکـت سـره یـې خپلـې شـا تـه راوڅرخـاوه. هغـه دوه ځلـه خپلـې متـې وښـورولې څوبکس لږ نورهم پورته کړي او بیا یې دانتظـار مـوټرو پـه لـورې حرکـت وکـړ. دغـه دوه افغانان او زه سرتېرى تـه چـې سخت زور یـې وکـړ، پـه داسـې حـال کـې چـې خولې موخلاصې پاتې وې ،وروکتـل. مـا دخونـدي ټلیفـون لـه لارې دتـوریرېزم پـه وړاندې په مرکز کې له هانک سره اړیکه ونیوه. هغه هم دالفا په شا او خوا کـې د حالاتولـه پرمختـګ څخـه اندېښـمن و. خـوآر جـې دمهـالوېش سـره سـم پـه همغـه ماښـام داکمالاتودغورځولوټینګـه سپارښـتنه کـړې وه. آر جـې وویـل چـې دوسـتم دخپـل څـو لوړپوړي چارواکي لـه عطـا سـره د لیدنـې لپاره لیږلـي دي. او دوسـتم ډاډه وه چې دغه بحران به حل شي. هانک وویل چې ځکه چې ار جـې سـره هلتـه پـه سـیمه کـې لـوړ پـوړی چـارواکي دي . هغـوی بـه د نومـوړي سـره ددنـدې پـه اجراکولوکې مرسته وکړي.

داکمالاتوغورځېدل به ترسره شي. ماله دغه پرېکړې سره ارام احساس نـه کـاوه خو هرڅه چې پیښدلای، هغه به پیښېږي. ما یوازې هیله درلوده چـې الفـا د ډزوپـه منځ کې راښکېل نه شي خوزه نـه وم خبـر چـې پـه همغـه شـپه دالفـا ګـروپ څخـه موږ ته د ډزوپه منځ کې په راښکېدلوکې ډېر خطر و. په همغه ماښام د لسو بجو لږ څه وروسته پـه داسـې حـال کـې چـې د دفتـر کارونـه مـې خلاص کـړي وو او د چپرکټ په لورې تـګ تـه تیارېدم،زموږسـویل لـورې تـه داتومـات وسـلوناځاپي ډزې دکلـي پـه سـرکې واوریـدل شـوې.دکلا شـینکوفونو ډزو دوام وکـړ. ډاکټـر د خپلـې کوټې څخه دهلېز ته راووت اوویې ویل چې د وسلوکرېټ به خلاص کړو اومنتظر به واوسي. زه دکور بام تـه د شـپې دعینکوسـره وروختـلم. سمدسـتي دګـروپ څـو نور غړي راسره یوځای شول. اسمان شین واوشپه هم سړه وه. بام تـه د ختلوسـره سم د ډزوغږ نورهم تیز او تېره شو. حتی د شپو د عینکوڅخه پرته موږ د ټوپکـو د خولو پړکې چې د غونډی په ډډه کې دکلي هاخوا وې، لیدلې. د شپې دعینکوپـه شین رنګه ځلا کې موږ ولیدل چې څوکسان د غونډی په ډډه باندې په لاره کـې د خوځښت په حال کې و. او د هغه کسانوپه وړاندې چې د دوی پـه لـورې دغونـډی

له ښکتنۍ برخې د ونوله کربښې څخه د دوی په لورې روان و، ډزې کولې. دبل اړخ دټوپکوله خولـو څخـه هـم پړکـې کېـدلې او داسـې ښـکارېدله چـې هغـوی دغونډی په پورته لورې ډزې کولې. کریس راغی او ویې ویل چې ممتاز په داسې حال کې چې خوښ اوستړی هم و، راغی. ویې ویل چې اندېښمن نه شی. داډزې یـوازې د واده دمراسـمود لمانځلو لپاره کېږي. مـوږ د غونـډی په لـورې وروکتل وموليدل چې تقریباًڅلورسوه فوټه لیرې دټوپکودخولوپړکې او شورماشور زمـوږ په خوا راروان و. ما ورته وویـل چې د واده مراسـم نـه زمـا کوناټي!! هـر کس یو یوتوپک راواخلی. راځئ چې د راتلونکو مېلمنو لپاره انتظار شو. موږ لانـدې ښـکته شواو زه او ریک په دهلېز کې په داسې حال کـې چې دګـروپ هـر غـړي د کرېټ څخـه یـو یوکلاشـینکوف اود وسلې غـاړه کـی چـې دېـرش ډزې اوڅلوېښـت ډزې شاجورې پکې وې،راواخیستلې. ریک وویـل چـې د دې لپاره چـې دسیند لـوری او کلي لاندینۍ برخه موتر نظـر لانـدې وي، دلانـدینۍ ودانـۍ بـام تـه څوکسان بایـد وروخېژی.

موږ به دغه بام وساتو او یوکس به دېخلنځي په بام وګمارو. هغـه بـه وکولای شي چـې دروازه او د غونـډی لانـدې لاره په هغـه لـوري وسـاتي. دا ښـه پلان و. ټاکلو ځـایونو تـه مـو د تـګ لپـاره بیـړه وکـړه. ډزې یوڅـه کـراره شـوې. خوبـام تـه درسېدلوپه مهال ډزې بیا ډېرې شوې. دټوپک د خولـو پړکو تقریباًدوه سـوه متـره لیرې دغونډی ډډې هم رڼا کړې خودهیڅ مرمۍ لوری زمـوږ په لـوری نـه و. مـوږ د بام په څوکۍ سرونه ټيټ کړل اوپه انتظار مـو ورکتـل. ممتاز څوورځې مخکـې اعتراف وکړچې دطالبانوپلویان دلته په دره کې موجـود دي. ښـایي چـې د٥٥٥ دګروپ له امله چې تېره شپه راغلي و، خبر شوي وي. دغونډی په اړخ بانـدې لنډ مهالـه تبادلـه بیـا وشـوه. پـه یـوه شي بانـدې چـې زه پوهېـدم هغـه دا و چـې دا دلمانځلواوخوښۍ ډزې نـه وې. تقریبـاً پینځـه دقیقـې نـور هـم کېناستلواو ډزې په کراره لیرې کېدلې. د غونډی په سر کسان داسې ښکارېدل چې دغونـډی په لمـن کې له کسانو څخه پورته خواته په خوځښت او لیرې کېدل. په پـای کې کسان د لویوتیږوسیمو ته ولاړل او زمـوږ لـه سترګو پنـاه شـول. بیا ډزې ودرېدلې. پینځـه دقیقـې دکومـو ډزوڅخه پرته تېرې شـوې. د غونډی په لمن کـې مـې خوځښـت ترسترګو شو.

ما د ممتاز غږ د لویې دروازې څخه واورېد. بیا مې داېډ غږ دېخلنځي له بـام څخه واورېد. مخکې لـه دې چـې داوسـپنې دروازه له زنګېدلو سره خلاصه شي، یوڅه شور ماشور واورېده. ممتاز په خبرو پیل وکړ. له بـام څخه ښکته شـوم او زموږ د ودانۍ په دروازه کې مې ولید. هغه وویل: جنرال ګیري خیر اوخیرت دی. تاسې کولای شی چې ارام وکړی. هغه په اندېښنه کې وخوهڅه یې وکړه څو په

خندا يې تېره کړه. ماترې وپوښتل چې دا ډزې دڅه لپاره وې. اوهلته څه پېښه وه؟ممتاز تپ تپانه کېده اوکوښښ يې وکړ چې ځان ارامه وښيې خوناکام شو. ويې ويل څوکسان لاندې د ښار له زندان څخه وتښتېدل. موږ پسې ورغللو. هيڅ ستونزه نشته. ما وپوښتل:دطالبانوزندانيان وتښتېدل؟نه مجرمين او داړه ماران و. ما د سر په ښورولوسره د هوځواب ورکړ او د پېښې په اړه مې نور هيڅ ونه ويل. دهغه څخه دا ضافه حقيقت د پيداکولو لپاره نورې پوښتنې نه وې پاتې. زه تقريباً دخداى پامانى ويلو ته تيار شوم چې هغه وويل:هوهېره شوې مې وه. جنرال بسم الله خان له بگرام څخه اړيکه نيولې وه. د اې گروپ ستان او ميوري ټول تقريبا پنځلس دقيقې وړاندې خوندي راورسېدل. له ممتاز څخه مې د دغه خبر له امله مننه وکړه اوبيا مې دنوروکسانوسره يوځاى وسله بېرته کرېټ (صندوق)ته واچوله.

## دوه دېرشم څپرکی

راتلونکې سهاردکافى څښلوپه مهال دتېرې شپې راغلو ليکونوته کتنه وکړه. دالفا(هغه گروپ چې ددوستم سره په مزار شريف کې يوځاى شوى و.)لخوا يولنډ ليک راغلی واوپکې ليکلي يې وچې دوسلې اومهماتوغورځونه تېر ماښام دمهال وېش سره سمه تر سره شوه. په ليک کې ددغه اکمالاتودغورځونې له امله دعطا غبر گون په اړه څه نه وليکل شوي. ريک دخوندي مخابرې له لارې الفا گروپ سره اړيکه ونيوه. دهغوى دمخابرې افسر تصديق کړه چې غورځونه ښه ترسره شوه اوټولې بنډلې ترلاسه شوې اوحالالات ارام دي. آر جې او دالفا گروپ نور غړي ددوستم سره دليدنې لپاره تللي و. ريک له هغه وغوښتل چې آر جې هر څومره ژر چې وخت پيداکړي له موږسره اړيکه ونيسي. داچې دعطا لخواسمدستي کوم غبرگون نه و، د ستايلو وړ وه. خودورځې په بهير کې به څه پېښ شي، داهغه څه و چې موږېې اندېښمن کړي و. دتروريزم په وړاندې له مرکز څخه يوپه زړه پورې ليک راغی چې ددوستم اوعطا ترمنځ په کې د حالاتو څېړنه شوې وه. په تلگراف کې ليکل شوي وچې د دغه ستونزې دحل ځواب يو دا و چې بايد دعطا سره ديوځاى کېدلو لپاره دسي اى اې بل جلا گروپ ولېږل شي. دعطا دجنگيالو شمېر د دوستم سره برابر واو دمزار شريف په سيمه کې دجگړيزوعملياتودپيل سره سم دشمالي ټلوالې ددواړولويوقومندانانوسره سم د سي اى اې د گروپ شتوالی مهم و. سي ټي سي (دتروريزم په وړاندې د مبارزې مرکز)نظر ورکړی وچې دالفا گروپ په منځ نيم شي اودگروپ نيمه برخه دعطاسره يوځاى شي. دغه سمون به دلنډ وخت لپاره وي ځکه چې دواړه

ګروپونه به دکارمندانودکموالي سره مخ شي خوسي ټي سي د اضافه کارمندانو د لېږلولپاره بېړنۍ هڅې روانې کړې وې. زمونږ لپاره چې دلته د مېز چار چاپېره ناست وو،دانښه نظرخرګند شوخوزمونږلپاره ددغه پرېکړې په اړه دالفا ګروپ دنظرخرنګوالی په زړه پورې و. دقرارګاه څخه وروستي لیک کې لیکل شوي وچې سنټ کام (مرکزي قوماندای)غواړي چې دپنجشېر درې د اې بل دوهم ګروپ هم واستول شي. مرکزي قوماندانۍ او ټاسک فورس ډاګر مخکې له مخکې دلوژستیکوترتیباتونیول پيل کړي و. له دې څخه پرته،ددې لپاره چې دلته دفعالیتونودانسجام اوددواړو او ډي اې ګروپونو(ځانګړو ځواکونو)لپاره دیوه امر دشتون په خاطرد او ډي اې اړوند سي سي اي (دقومندې اوکنټرول کسان)دګروپ پنجشېر ته رالېږلو په سر هم بحث روان و. ریک وویل چې په عنعنوي ډول دځانګړوځواکونویوګروپ دیوه تورن یا د لوړپوړي ساتندویه افسر (هغه افسرچې دګروپ دغړواوتوکودساتنې شول وي. ژباړن)لخوا قومنده کېږي. ددې لپاره د او ډي اې (دځانګړوګروپونوبل نوم. ژباړن)څوګروپونه ساحې ته لیږل کېږي. ددغه ګروپونولخوا به دهوا له لارې دهدفونه په نښه کولوپه سیالۍ غوښتنې کېږي اود او ډي اې قومندان دپوځي خوړو له کمښت سره هم مخامخ و.دمنابعولېږلوته په لومړیتوب ورکولوکې به داکمښت ستونزه رامنځته کړي. په هرځل دځانګړوځواکونود او ډي اې او سي، سي، ای د دویم بریدمن لخوا قومنده کېږي اود هغه رتبه دااجازه ورکوي چې دهوایي مرستې لپاره سیالیزې غوښتنې انسجام او د هوایي دارایۍ (شتو)ویش وکړي. زه له دې سره لېواله شوم، مونږ نظر دا وچې له هغوی وغواړوچې د او ډي اې دویم ګروپ خواجه بها والدین ته ولېږل شي څودجنرال بریالي خان سره د تخار په لومړۍ کرښه باندې کار وکړي. او د او ډي اې،سي،سي، اي (قومندې اوکنټرول کسان)ګروپ زمونږ تر څنګ په هغه ودانۍ کې چې د او ډي اې لخوا خالي شوي وه، ځای په ځای کړای شي. ریک وویل چې هغه به له ټاسک فورس ډاګر سره اړیکه ونیسي څو له هغو د دغه اضافه لیږنې په اړه وپوښتي.

دسهار په اووه بجو او لس دقیقو ممتاز راغی او د انجینر عارف لخوا یې یو پیغام چې غواړي هغه له مونږ سره وګوري ،راوړ. مونږ د لیدنو او کتنوکوټې ته چې دې ودانۍ ته مخامخ وه،سره د کافي ولاړو. ممتاز خپه ښکارېده اودا ښکاره وه چې مخکې له دې چې هغه دعارف پیغام راواوروي، بدخبر و. هغه وویل چې دشمالي ټلوالې دمشرانوګروپ تېره شپه د دوستم اوعطا ترمنځ د حالاتو دڅېړلولپاره غونډه درلوده. ممتاز په شرمندوکي سره وویل چې د دوی غونډه په دې سره هوکړې ته ورسېده چې د الفا (Alfa)ګروپ بایدهرومرو د دوستم څخه راووځي. جنرال فهیم اودشمالي ټلوالې مشرانود سي ای اې هغه پرېکړه چې د

دوستم سره باید یو گروپ یوځای شي، یوه جدي تېروتنه ده. دا هغه ځواب نه و چې ما یې هیله درلوده. زه پوهېدم چې په هیڅ وجه به سي ای اې شمالي ټلوالې ته اجازه ورنه کړي چې زموږ د سیمه ایزه گروپونو د لېږد د څرنگوالي پرېکړه په زور سره بدله کړي. الفا گروپ مخکې له مخکې شتون درلود. باید پاتې وای اولې تر لږه درې گروپونه د راتلونکو دوه اوونیو په بهیر کې د رالېږلوپاره تیارېدل. ما ممتاز ته وویل چې زه پوهېږم چې په دره کې دشمالي ټلوالې مشران له دې چې موږ د هېواد په لویدیځ کې دشمالي ټلوالې قومندانانوته په خپلواک ډول گروپونه ولېږل، خپه دي. سره له دې زموږپلان داوچې د سي ای اې او د ځانگړوځواکونوگروپونه د هېوادپه کچه داغېزمنو قومندانانوسره یوځای کړو څو د طالبانوپه وړاندې جگړه په ښه ډول په مخ یوسي. دغه ستراتیژي داسې پرېکړه نه وه چې دشمالي ټلوالې ځواک ته په پټه زیان ورسوي. موږ د عطا هغه اندیښنې چې د دوستم سره د سي ای اې اړیکې به هغه له ډگره غاړې ته وباسي. پوهېدو خو دا په حقیقت کې داسې نه وه. موږدعطا سره د سي ای اې د پرسونل د یوځای پلان باندې مخکې له مخکې خبرې اترې کړې وې او ښایي راتلونکو یوه یا دوه ورځوکې تر سره شي. ما له ممتاز وغوښتل چې دغه پیغام انجینر عارف ته ورسوي. زه پوهېدم چې زما له دغه ځواب سره هغه خوښ نه وخوهغه هوکړه وکړه چې هغه به هر څومره ژر چې وکولای شي له انجینر عارف سره لیدنه وکړي. څوزما خبرې هغه ته ورسوي. ممتاز په اته بجو بېرته راوگرځېد. عارف هم واضحاً چېرته نږدې کارکاوه او ممتاز له لومړي ځل څخه هم ډېرخپه ښکارېده. انجینر عارف هغه څه ته چې ما د دوستم او عطا د حالت په اړه ویلي و،په پام سره غوږ نیولی وخو د شمالي ټلوالې پرېکړه بدله نه شوه. د الفا گروپ باید د دوستم څخه راووځي. ما په چوکۍ کې تکیه وکړه سرمې وښوراوه او په مودب ډول مې ورته ورته وویل ممتازه- د امریکې د دولت تر ټولو لوړپوړوچارواکو دا پرېکړه کړې چې د سي ای اې گروپونه به د ټولواغېزمنو قومندانانو سره چې دطالبانوپه وړاندې په مخالفت کې درېږي پرته له دې چې د هغوی مذهبي، نژادي او قومي پس منظر په پام کې ونیول شي، د هغوی سره دندو لپاره یوځای کړي. موږ دوهم گروپ د دوستم سره د امنیتي او اداري دلایلواوهمدارنگه ځکه چې هغه یواغېزناکه قومندان دی، ولېږه. موږ به یوگروپ عطا ته هرڅومره ژرچې چمتووالی ونیول شي، ورولېږو. موږ د الفا گروپ د دوستم څخه راونه باسو. لطفاً عارف ته ووایه چې دا پرېکړه د امریکې د دولت پرېکړه ده. زه په خوښۍ سره کولی شم چې دغه موضوع دعارف او یا د شمالي ټلوالې له نورو مشرانوسره هر ډول چې دوی غواړي، وڅېړم. کله چې دروازې ته د تگ په حال کې وم،ممتاز ته مې موسکا وکړهاوپه شا مې وټپاوه. هغه یوازې یو

پیغام ورونکی و. هغه ته ځان ډېر ښکته ښکاره شو ما هم پرې زړه وخوږېده. زه باید دا ومنم چې ماته هم ځان ډېر ټیټ ښکاره شو. دغه حالات ښه روان نه و. موږ د دوستم اودعطا دحالت په اړه ښه هیله درلوده. هغه ډول خبرچې دغه کړکېچ له منځه یوسي یوسي اوعطا دمرستې کولوته وهڅوي. کله چې زه او ریک دفتر ته راورسېدو، کریس موسکا وکړه. هغه د الفا گروپ څخه راغلی تلگراف په لاس کې و. داهغه ښه خبر وچې موږ ورته اړتیا درلوده. آر جې لیکلي وچې دوستم تېره شپه دعطا له استازو سره په داسې حال کې چې آر جې او د الفا گروپ څو نور غړي په کوټه کې شتون درلود، لیدلی و. دوستم د گروپ غړوته ویلي وچې د هغه لپاره به دا ور وي چې د سي ای اې ټوله مرسته یوازې دی ترلاسه کړي ځکه چې امریکایان افغانستان ته د شمالي ټلوالې سره طالبانو ته په ماتې ورکولوکې د مرستې کولوپاره راغلی دي. امریکایان غواړي چې دغه یوه گډه هڅه شي اوهغه اکمالات چې په همغه ماښام موترلاسه کړي دي دعطا سره په مساوي ډول شریک کړل شي. دوستم خپلوخبرو ته دوام ورکړاو ویې ویل چې دعطا استازي او د هغو ټول قوماندان چې د اکمالاتوراغورځېدلو ځای ته بدرگه کړي او وڅاري. بیا به دغه توکي زموږ کېمپ ته راوړل شي اوهلته به په مساوي توگه وویشل شي. قوماندان عطا چې هروخت تیارشوکولای شي خپله برخه یوسي. دوستم وویل چې د سي ای اې لخوا په راتلونکې کې ټول راغورځېدونکي مرستې به په مساوی ډول وویشل شی.

آر جې وویل چې په غونډه کې د دوستم له خوا دښمن په لورې له سخاوت ډک غبرگون ته ټول هک پک و. د دوستم دغه پرېکړه د هغه د ځانگړتیاوو څخه بهر وه. د دوستم دغه یو ناڅاپي پرېکړه دعطا قوماندانان دومره حیران کړل چې نور یې هیڅ ونه ویل خو یوازې له هغه یې مننه وکړه.

الفا گروپ ددوستم له قرارگاه څخه لیدنه وکړه څودعطا قوماندانانوته د وسلې اومهماتو لېږدول چې هغوی دهایلوکس پیک اپ موټر په کاروان کې خپله برخه وړله،له نږدې وکتله. آر جې وویل چې د الفا گروپ د نیمایي کولو نظر سره موافق دی. هغه په همغه سهار دا خبر له د دوستم سره شریک کړ او دوستم هم له دغه حرکت سره هوکړه کړې وه. دعطا سره هم په همغه ماسپښن د لیدنې لپاره وخت ټاکل شوی څو آر جې له عطا سره دغه نظر شریک کړي.

دا یوفوق العاده خبر و. زه پوهېدم چې جنرال دوستم یوهوښیارساحوي قوماندان دی او زه هر وخت په دې عقیده وم چې هغه زیات دعمل سړی و، نه یوسیاسي ټگ برگ اوغولوونکی سړی! د سي ای اې د اکمالاتو د شریکولو پرېکړه یې یوځیرک عمل و. د سي ای اې گروپ نیمایي کول او عطا ته نیمایي برخه گروپ ورلېږلوسره د هغه هوکړه هم ځیرکتیااو له لیدو دوستم اوس په لوړځای

ولاړ و. عطا ته يې د دوستم سره د همکارۍ کولوڅخه بله لار پرې ايښې نه وه. په داسې نه کولوسره به عطا هغه ته کوچنی او ټيټ سړی پېژندل کېده څوک چې طالبانوته په ماتې ورکولوکې نه بلکې په خپل شهرت کبر او لويي ته تږی دی. که چېرې عطا دوستم سره همغږی ته تيار شي، دا به دجنرال فهيم دپښوڅخه قالينه راوباسي. د دې لپاره چې دوستم اوعطا په خپل منځ کې همکاري ولري او اکمالات سره وويشي، د الفا گروپ د مخې لېږې کولو لپاره کوم دليل شتون نه لري. که چېرې دا کارهغه ډول چې ما فکر کاوه ترسره شي نوجنرال دوستم ته ديوې پگړۍ د کولو پوروړی کېږم. انجينرعارف په همغه ماسپښن زموږکورته تقريبا درې نيمې بجې راغی اوموږ نوي دقيقې غونډه درلوده څو دا موضوع حل کړو. د دوستم دا ښه نيت چې دقومندان عطا سره يې دهرڅه شريک کول و، هغه بحثونه چې عارف د ليدنې په مهال رامنځته کړل له منځه يووړل. د مزارشريف په سيمه کې ديوبل سره پرېکړه اومرسته کوي او د ماموريت په بشپړولوکې چې د طالبانود ځواکونوماتول و،مرسته کوله. دغه حالت په پنجشېر کې دشمالي ټلوالې دمشرانو د لاس څخه وتلی و. الفا گروپ دوه برخې کېده چې يوه برخه يې براو (BRAVO) نومول کېده له عطا سره يوځای کېدله .موږهرڅومره ژر چې کېدله دواړه گروپونه تقويه کول اوپه ځانگړو او ډې اې گروپونو باندې مو فشار راوړ څو له دواړو قومندانانوسره د دندې لپاره گروپونه يوځای کړو.

ما هغه ته د سي ای اې هغه پرېکړه واضحه کړه چې په شمالي افغانستان کې د شتون په صورت کې د هرڅومره اغېزمنوقومندانانوسره د گروپونو يوځای کولو موضوع کې د بحث لپاره هيڅ ځای شتون نه لري.

انجينر عارف اوپه دره کې دشمالي ټلوالې نور څه نه شوکولای خودغه حقيقت د رامنځ ته کيدا له امله غاړې ايښودلوته اړ و.

## دري ديرشم څپرکی

ددوه ويشتم اکتوبر سهار په ساړه اوپاکه هواپيل شو. موږخپل ځانونه دسهار مهال دستاربکس کافي دڅوپيالوپه څښلو، داوبو په لگن کې د خاوروڅخه ډکواوبوپه واسطه د حمام کولو،ما د تازه سيمه يېزې ډوډۍ سره د ممپيلود کوچو په خوړلوباندې ځان بوخت کړ. ايداوگريک دوشنبې ته د اکمالاتو د ورلوپلان درلود. د غرونوڅخه د هوا حالاتوښه وراندوينه شوې وه. دپاک اسمان په ټيټه ارتفاع کې بادونه راپورته شوي و. دوی د وختي سفر لپاره په بېړه سره تياری نيولو. دوی دهندوکش دغرونو هاخوا په فيض اباد کې هم بايد دربدلي وای اودراگرځېدا څخه وراندې په همغه ماسپښين بايد يوځل په خواجه بهاودين کې

هم درېدلي واى ځوبراډ ښکته کړي اودجنرال بريالي خان سره اړيکه ونيسي. چورلکه به دبراډ د لېږدولو لپاره راتلونکې ورځ ورتلله. په فيض اباد کې دهغوى دنده ابل- سل ډوله الوتکې لپاره د انجينر عارف لخوا وړانديز شوى ممکنه هوايي ډگر سروې اوکتل و. دتروريزم په وړاندې رياست هره شونې لار لټوله چې شمالي افغانستان ته توکي واستوي اودهغه نظر چې ويل يې چې ابل-سل ډوله الوتکه کولاى شو چې د شمالي ټلوالې په منځ کې د ماموريت لپاره وکاروو،ټکي او غيرحقيقي ښکارېده. عارف وويل چې شمالي ټلوالې دفيض اباد دغه هوايي ډگر د ثابت وزرونو لرونکې لپاره کارولى دى او هغه فکر کاوه چې ابل-سل ډوله الوتکه هم کولاى شي چې هلته کښېني. زموږ پيلوټان لېواله نه وو. فيض اباد د هندوکش د غرونو په ليرې پرته سيمه کې پروت او له دې امله بيا دهندوکش په نابـاوره غرونوبانـدې دباروړلولپـاره زمـوږ چورلکه يـې لـه خطـر سـره مخامخوله .د غرونوځوکې دومره لوړې وې چې هرځومره توکي چې فيض اباد ته لېږل کېږي، هغه به تر راتلونکي پسرلي پورې هلته بند پاتې وي ځو هـوا بيـا پاکه شي او د چورلکې د الوتنې لپاره لار خوندي شي. خو بيا هم موږ سروې بايد ترسره کړې واى. ممتاز دفتر ته راغى اوله دې چې انجينر عارف غـواړي لـه موږسره ماسپښين کې ليدنه وکړي،خبر راکړ. د ممتاز غبرگون ته په پام سره چې ارام اوله موسکا ډک و زه هيله مند کړم چې راتلونکې ليدنه به د تېرې ورځې له ليدنې ځخه چې مخکې او وروسته او منفي نظريات تبادله شوي و،ډېره زياته مثبته وي. ريک په ټاسک فورس ډاگر کې د ډگروال ملهولانډ ټليفون ته ځواب ورکړ او دوى د دويم اې گروپ او د او ډي اې،سي سي اي ( د قوماندې او کنترو مرکز) گروپونو د ممکنه ننوتنې لپاره پلانونه وڅېړل. په هغه وخت کې پلان دا و چې دواړه گروپونه بايد د پنجشير درې ته راوړل شي او په راتلونکې ورځ د اې نوى گروپ شمال ته جنرال بريالي خان ته وروليږل شي ځو د تخار په لومړي کرښه باندې کار وکړي. دخواجه بهاودين په سيمه کې مودشپې ننوتنې لپاره د کوزېدلو ځاى نه و ټاکلى نو د دې لپاره بايد د اې گروپ يوبل گام اخيستى واى او د پنجشېر درې ته راغلي واى .د هغې وروسته دورځې په بهير کې زموږ دچورلکې په واسطه هلته تللي واى .ملهولانډ وويل چې هغه غواړي چې نن ماښام ننوتنه ترسره کړي ځکه چې دهوا د حالاتو رپوټ ښه وړاندوينه کوله. انجينر عارف د ماسپښن په درې بجې راغى ، خوشال ښاکارېده. دجنرال دوستم هغه پرېکړه چې له مخې يې له قومندان عطا سره وسله اومهمات شريکول، په مزارشريف کې کرکېچ پاى ته رسولى و. عارف وويل چې جنرال فهيم ددوستم له دغه پرېکړې ځخه ډېر خوښ واودعطا سره يې نيغ په نيغه خبرې وکړې. له هغه يې وغوښتل چې ددوستم سره پوره همکاري وکړي. د سي اى اې هغه پلان چې الفا

ګروپ نیمایې برخه باید له قومندان عطا سره وي هم پرته له کومې ستونزې لېږدول شوی و.

زه پوهېدم چې د درې څخه بهر دقومندانانوسره په نېغ ډول دمعاملې کولوموضوع به په راتلونکې موربیا ښکار کړي. خوداوس دپاره اوبه ارامه بهېدلې! ریک دډګروال مل هولانډ سره سهار وختي خپله پرېکړه څېړلي وه .هغه ته یې زمورهغه غوښتنه چې د او ډي اې دوه اضافي ګروپونه باید راولېږل شي، رسولې وه.یوه هغه یې دجنرال بریالي خان سره دتخار په لومړی کرښه اوبل یې زمورسره دلته په بارک کلی کې مېشت شي څود او ډي اې ګروپونه سره په لومړیوکرښوکې و،اړیکه ولري. ریک هغه ته د او ډي اې/سي، سي ،اي (دقوماندې اوکنټرول عناصر)ددندواودهغوی دشتون له امله دکابل اوتخار دلومړیو کرښوپه وړاندې دهوايي بریدونو د سرته رسولو لپاره دوړاندیزونو له زیاتوالي هم خبر راکړ. عارف ننوتنه تصدیق کړه اوویې ویل چې دا زمورهڅوته دهر کلي ور زیاتوالی دی. هغه دکوچنی خندا سره وویل چې هغه هیله مند دی چې د او ډي اې/ سي اي ګروپ به دطالبانوپه وړاندې دبمونوپه غورځولوکې زیاتوالی راولي په ځانګړي ډول دکابل سره په لومړی کرښه باندې. موږدشلټرنوموسسې دزندانیانو دمالوماتودراټولودهڅودپرمختګ اودپرمختګ دنشتوالي په اړه خبرې وکړې. دافغان زنداني پلار درې ته تراوسه دهغه پوښتنې لپاره چې کریس ورته دنده سپارلي وه،کوم ځواب نه و راوړی. عارف وویل چې دشمالي ټلوالې هغه افسرچې دطالبانوداستخباراتواوامنیتي اورګانونوله جګپوړوسره یې اړیکه درلوده، کابل ته تللی وڅودهغوی سره زموږدانعام تصدیق اوپه دغه هڅه کې دهغوی وفاداري کچه واخلي خودهغه راګرځېدل هم ځنډیدلي و. ماله عارف وغوښتل چې دزما اودجنرال بسم الله خان ترمنځ دلیدلو چمتووالی ونیسي. ما تراوسه دهغه سره نه ولیدلي ،ما غوښتل چې هغه له نږدې ووینم. عارف وویل چې جنرال بسم الله دوه درځې وړاندې زما دلیدنې پوښتنه کړي وه. عارف وعده وکړه چې دفتر ته درسېدلو سره سم به جنرال ته ټلیفون وکړي څوراتلونکې ورځې ته د لیدنې لپاره تیاری ونیسي. هغه وویل چې دتصدیق لپاره به ممتاز ته خبر ورکړي خوتر هغې زه بایددکابل سره لومړیو کرښوته د راتلونکې ورځې لپاره تیاری ونیسم. دتګ څخه مخکې عارف وویل چې دځانګړوځواکونو د دوه ګروپونود لېږلود پرېکړې په پایله کې باید هغه سمدستي خبر کړای شي.

دعارف دتګ وروسته زموږچورلکه د دوه حیرانتیاووسره سم راورسېده. پیلوټان اوبک دکوزیدلود محل څخه په موټر کې دغټ زېري سره سم راورسېدل .هغه کارتن کې چې یوکوچنی برېښنایي تنور په کې و، یخچال هم دسرف موټر له شا څخه راوتلی و. دګروپ دغړوڅخه یوې ډلې په داسې حال کې چې باور یې نه

راته دکلک کاغذ کارتن ودانۍ ته ولېږداوه. ګریګ سمدستي د یخچال په خلاصولو پیل وکړ ا و جورج د موټرو څخه دوه کرتنه روسي بالتیکه بیر چې په نیم لیتره بوتلو کې و، راوړل.

ایډ چې زما ترڅنګ ولاړ و،وویل: مشره موږ له تا څخه د بیرو د راوړلو ترمخه ستا د هوکړې ونه پوښتل که چېرې ته موافق نه یې نو یوازې هو یا نه ووایه. ما د ګروپ غړو ته چې ټول زما په شاوخوا ولاړ وو وکتل، د دې دپاره چې ټول یې واوري په زوره سره وویل: که د اعتدال سره سم وي او زموږ د کوربانواحساساتو ته احترام وشي یانې د هغوی په مخ کې ونه څښل شي او بوتلان یې په مځکه ونه غورځول شي نو بیا سمه ده.

له دې سره د ټولو په مخونو موسکا خپره شوه. وروسته کله چې ما او ریک په انګړ کې سره کېناستلو،ما ورته وویل چې زه یوازې په هغه وخت کې چې کوم یو زموږ امتیاز ته تاوان ورسوي او یا زموږ افغان کوربانو سره ترېکومه موضوع جوړه کړي،دبیرو په شتون نیوکه کوم. ما له ځان سره وعده کړې وه چې ترڅوچې په افغانستان کې وم، زه به شراب نه څښم. ما ددغه ګروپ لارښود کول جدي ګڼل اوغوښتل مې چې باید په هروخت کې څک او بیدار وم. ما هیله نه درلوده چې ددې وعدې لپاره به زه ازمویل کېږم خو دا دی اوس له ازموینې سره مخامخ شوم. زه باید خپلې وعدې ته ربښتینی وم. د روغتیا دوام دار خرابوالي او د سیپرو (یو ډول انتیبوتیک دارو. ژباړن) کارولو راسره ددې وعدې په ساتلو کې مرسته وکړه. اصلي خبر د همغه ماښام د شپږ بجو په شاوخوا کې راورسېد. د او ډي اې د ګروپونو لېږل ځنډول شوي وو. په لوړه ارتفاع کې هوا نوره هم په خرابیدو وله. ډګروال ملهولنډ وویل چې تر سبا به انتظار وکړي.

راتلونکی سهار درویشتم اکتوبر هوا حتی د تېرې ورځې څخه هم ښه وه. په پرتلیز ډول توده هوا وه. پاک اسمان اوپاکې او سپینې وریځې په هوا کې په کراره الوتلې. که څه هم چې تېره شپه دغرونوپه سر هوا خرابه وه، په دره کې هوا ښه وه. ډګروال مل هولنډ ښایي چې نن شپه د ګروپونو په لیږلو وتوانیږي. د سهار د لسو بجو څخه لږ وړاندې د کابل سره لومړی کرښې ته روان شوم. ممتاز هم زموږ سره بدرګه و او د موټر په مخکنۍ سیټ کې کېناست. زه په خپل همېشني ځای،د وروستني سیټ په منځ کې کېناستلم.

موږ خپل روسی جیپ کاروه او د پاکې هوا لپار ه مې کړکۍ خلاصې کړلې. د هوا د پاکوالي سیستم (ایر کندیشن. ژباړن) یې نه درلود او یوازې بې سیکه او د دوړو ډکه هوا له دغه کوچنیو سوړو راننوتله. موټروان هم ټیپ ته کېسټ ورواچوله او موږ یې د یوه چنګن غږ په واسطه چې په ډاډ سره ایرانی سندرغاړې وه، خوشاله کړو. د ۱۹۹۴ کال څخه راپدیخوا په افغانستان کې نه وه ثبت شوې نو

په دې اساس سندرغاړی باید ایرانی وي. ما خپل ځان ارام کړ او لنګي مې د سیټونو څنډوته وغزول او دواړه لاسونه مې د سیټ د سر څخه راتاو کړل څو ځان ټیګ کړم او د جمپونو سره مقاومت وکړم.

زه دغه لیدنې ته په انتظار وم. ماغوښتل چې د جنرال بسم الله سره وپېژنم ځکه چې هغه د دغه مهمې جګړې مهم لوبغاړی و. هغه د او ډي اې او زما د ګروپ کوربه هم و. زه دستان له خوا خبرېدلم چې د او ډي اې 555په راتګ سره له دې چې دلایزر په واسطه دمهمو هدفونوپه نښه کولو وړتیا لري، دبمونوپه غورځولوکې کوم دپام وړ توپیر نه دی راغلی. ما غوښتل چې له دوی هم واورم چې ددښمن په وړاندې په بمبارۍ کې ولې زیاتوالی نشي راوستلای.

ستونزه خو دارزښتناکه موخونشتوالی نه و. ما غوښتل چې د دغه حالت په اړه د جنرال بسم الله خان نظریات هم واخلم. د واشنګټن او سینټ کام سره دبمونودستراتیژۍ دبیا بحث لپاره به دغه غوره انرژي وي. یوځه باید شوي وای. ما انجینر عارف ته ویلي وچې د او ډي اې د ځای په ځای کولوسره به دبمونوپه غورځولوکې زیاتوالی راشي. اوسمهال دوی په لومړیو کرښوکې و. شپه اوورځ یې کار کاوه خودبمونوپه غورځونه کې کوم مهم بدلون نه وراغلی. دسینټ کام لخوا ورځنی پلان شوي هوایي بریدونه اوس هم د طالبانو د هدفونو په ډېره وروستۍ برخه باندې متمرکز کېدل لکه اکمالاتي اوپه ځانګړي ډول لوژستیکي برخې یې د لړلیک په لومړی برخه کې وې.

د درې لاندینۍ برخې ته هرسفر ډېردردناک و. روسي جیپونه دلته اساسي مشینونه دي اوځواکمنې پرزې یې ددې دپاره چې ډېره سزا ووینې سختې جوړې شوې دي. دپخواني شوروي اتحادپه واسطه په ۱۹۳۰کال کې جوړشوي موټرونو د افغانستان په سړکونوکې ډېرښه کارکاوه. د ارام لپاره په دغه جوړي شوي موټر کې هیڅ پرزه نه وه اېښودل شوي. په هوا ولاړ جوړښت یې سخت شخ واوجمپ ته یې هیڅ غبرګون نه ښود(د لېکوال موخه په موټر کې د جمپینونو نشتوالی دی، ژباړن). دموټر د وروستنی سیټ څخه چې زما ځای و،ما دومره نه شولیدلای چې په سړک کې راتلونکې سوره او دسړک څخه راوتلي کاڼي ته تیاری ونیسم نوپه دې اساس په ما باندې ددغه خنډونوسره دلګېدلوله امله پوره اغېزه راغورځېدله.

زما ګڅ لورې ته دسیند ها غاړې ته په زړه پورې منظر و د لیدلوله امله به دجمپونوسره د لګېدلو توان په سخته پورته کاوه. د درې دخولې پای ته رسېدلو سره سم مخکې له دې چې دشمالي اوارې سیمې ته ورننوزي د دې سیمې لیدلو ډېرخوندکاوه. دهغه پوخ سړک یوه ټوټه چې دبسم الله د دفتر تر دروازې غزېدلې وه، زمورلپاره یو بدلون اوخوند اخیستل و. جنرال زمور لپاره دخپلې

قرارگاه د دروازې په مخکنی دروازه کې چې د غونډۍ په سر وه، انتظارو. جنرال دچوکۍ غاړې ته رامخکې شواوځنګلې یې په خپلو زنګونوکښېښودې اوپه پوځي حالت باندې یې چې یوازې د دفتر له کړکۍ بیدیا پیل کېده،تبصرې پیل کړې. ښاغلی ګیرې له دې چې تاسې د شمالي ټلوالې سره همکاري کوی،مور مننډوی یو. له هغه بودیجې چې تاسې جنرال فهیم ته ورکړې وه،ما ښه ګټه پورته کړله اوله دې چې تاسې په مزار کې زموږقومندانانوته وسلې اومهمات وغورځول، زه مننه کوم. په ځانګړي ډول د اې ګروپ میوري اوستان له شتون څخه هم مننډ وی یم.

هغه خبرې یوځه وځنډولې. موسکا یې وکړه اوبیا یې خبرو ته دوام ورکړ. خوکه ربښتیا ووایم که څه هم چې د اې ګروپ دلته راغلی بیا هم دکابل په شا اوخوا کې په بمبارۍ کې ډېر لږ توپیر راغلی دی. هغه له چوکۍ پورته شو اوپه کوټه کې دلویې کړکۍ په لوری ورغی. ښاغلی ګیري هلته وګوره په سلګونه د طالبانوموقیعتونه،دعربانوموقیعتونه هم په درجنونو دي ،ټول په ډېره اسانی سره لیدل کېږي اوپه اسانی سره پېژندل کېږي. بیا هم ستاسې یوه یا دوه الوتکې په داسې حال کې چې په سوبل کې دبمبارۍ څخه یو بم ورپاتې وي، دلته راځي. طالبان په داسې حال کې چې هرسهار خپلې کرښې ګوري، خنداکوي بیا هم کوم زیان نه دی ور اوښتی!ما هیڅ ونه ویلې دهغه تبصیرو ته مې غوږنیولی و. زه د دغه کرښو څخه شاته یوه ښه روزل شوې قوه لرم اوزیاته برخه یې په پنجشېرکې ده. موږ په مناسبه توګه ښه مجهزاوکسان موځواکمن اوښه روزل شوي دي. دبرید په انتظار دي خوکه ربښتیا ووایم زه دومره ځواکمن نه یم چې ددغه لوړونقطوڅخه ښکته لورې پرمختګ وکړم اودکابل په لورې لار خلاصه کړم. ستاسې دهوایي ځواک دمرستې په نشتوالي کې نه شم کولای چې داکار ترسره کړم. دوعدې سره سم دطالبانوکرښې ماتې کړه اود دوه یا دریو ورځو په بهیر کې به کابل ونیسم. هغه په چوکۍ کې تکیه وکړه اوپه ځیره یې دستونزې څپه تېره شوه. زه پوهېږم چې ددغه ځنډ لپاره دلایل شتون لري. په واشنګټن کې سیاسي بحثونه، پوښتنې ،وېره او ډارشته خودغه ځنډ زما دسرتېرو په منځ کې سرخوږی رامنځ ته کوي. ژمی هم راروان دی اوژرترژره به دغه لوړې څوکې په واورو وپوښل شي. موږنه غواړوچې یوبل سوړژمی دلته په دغه سړوکې تېرکړو. خپل ځان یې راټول کړ او داسې ښکاره شول چې پر بدن یې د زور څپه راغله ویې ویل: ښاغلی ګیري، نو ځکه درته وایم چې که څه هم چې د بم غورځونې کمپاین پرمختګ هم ونه کړي،زه به بیا هم مخکې له دې چې ژمی راورسیږی،په کابل باندې برید وکړم.

زه ویره لرم چې برید د بریالی شي خو زه ترخپله وسه ټول ځواک او

شته(منابع) کاروم.

ما د ده له لورینې او ربښتینولۍ څخه مننه وکړه. ما ورته وویل چې زه به هم په مساوي ډول په ربښتینولۍ سره خبرې وکړم. تاسې سم وایی. بمباري دلته هغه ډول چې ما فهیم ته ویلي و، نه ده. د کابل راتلونکې چې ددغه کړکۍ څخه بهر ستا او ستا د دښمن ترمنځ پرته ده، همدا اوس په واشنګټن کې د بحث لاندې ده.

زما په باور حالت روڼ او ښکاره دی. طالبان دلته د کندوز او مزار شریف په شاوخوا کې مات او د هغوی ځواکونه په شمال کې په لومه کې راښکېل او بیا به له منځه یوړل شي. په دغه کار سره به په سوېل کې پښتنو ته د بریالیتوب دروازه پرانستل شي.

زه باور لرم چې ډېر ژر به هغه کسان چې اوس په واشنګټن کې بحث کوي، په دغه حقیقت پوه شي. زه دلته د دې دپاره چې ستاسې وړاندیزونه واخلم ، حالات پخپله له نږدې وګارم او له واشنګټن سره به د هغه مهماتو په واسطه چې له دغه ځایه یې ټول کړم،وجنګېږم.

بسم الله خان موسکا وکړه ، ولاړ شو ویې ویل: ډېر ښه. زه هم همدومره غواړم. راځئ چې کار پیل کړو. هغه حرکت وکړ او ما او ممتاز هم د دروازې په لورې د هغه پسې ولاړو.

په ټویټا سرف ډوله جیپ موټر کې چې اسماني رنګ یې درلود، په خړ نصواري رنګه دوړو باندې پوښل شوی و، سپاره شوو. موټر چلوونکی یو ځوان سرتېری و. نوي خړ رنګه خاکي جامې یې په تن وې . د جنرال او دغه امریکایي مېلمه د جګړې په کربښه په موټر کې د ګرځولو څخه یې خوند اخیست.

بسم الله د موټر په مخکني سیټ کې او د لاسي مخابرې سره بوخت و. هغه په ښي لاس کې نیولې وه او د موټر د سیټ څخه یې دباندې نیولې وه. زما په باور د ښه انتن لپاره یې بهر نیولې وه.

کله چې موږ د هغه له دفتر څخه د لویدیځ په لورې په عمومي سړک باندې د جبل السراج څخه د چاریکارو په لورې و خوځېدلو، جنرال وویل: موږ د سرتېرو د بدرګې پرته په یوه موټر کې سفر کوو. هغه وویل چې زموږ مخامخ د هغه غونډۍ راوتلی سر د طالبانو لخوا ساتل کېږي او هغه د یوې غونډۍ تېره سر ته چې د شمال څخه سویل ته غزېده چې تقریباً د اوارو سیمو څخه یې ارتفاع تر دوه زره فوټه لوړېدله، اشاره وکړه. دوی هلته دروند توپچي لري او د بمبارۍ د پیل څخه راپدېخوا هغوی د هر جذاب هدف په وړاندې په بیړه سره ډزې کوي او یو موټر چې تیز حرکت کوي او تنها وي، کوم جذاب هدف نه دی.

کله کله د دې لپاره چې د هدف د خطا کېدلو له امله خپله غوسه له منځه

يوسي،هغوی د توپ خوله کلي يا کوم بل ځای ته وربرابروي.
جنرال په هغه څه چې موږ ليدل،شننه پيل کړه. د کورونو هغه کوچنی ډله چې د سړک دواړه غاړو ته پراته ول په دوړو خړپړ،و نې يې راځوړند، پوټکي يې موښل شوي او وچې وې. بسم الله خپل سر وښوراوه او ويې ويل: د دريو کلونو درنې او دوام داره وچکالی نښه ده. ددغه ځای خلک ډېر زغمي او فصلونه يې وچ دي. حيوانات يې هم له تندې مري او ځاګانې يې له ډېر ه وخته وچې دي. زه فکر کوم چې افغانستان خدای هم هېر کړی دی!
زه په ۱۹۹۶کال زما کوربه ملګري مسعود خليلي سره يو ځای په دغه سړک باندې تللی وم. په هغه وخت کې دغه سيمه ډېره شنه ، زرغون باغونه يې درلودل او دمني فصلونه يې ښه مست وو.
د جوارو فصلونه ځليدل او هندوانو د سړک ترغاړې کتارونه جوړ کړي ول. د جګړې له امله د سختې ويجاړتيا سره سره د فصلونو پريمانتيا او د منطقې طبيعي ښکلا سړي ته هيله او وعده ورکوله. دغه اوسنی صحنه چې مځکه يې وچه شوې او للمه فصلونه د لمر لاندې مړاوي ول، مايوسونکې منظره وه. موږ د سوېل په لورې په خوځښت و. دغه سړک ته يې د کابل زوړ سړک ويلې. په ۱۹۸۰ کال کې شنو او زرغونه مځکې، ګڼ شمېر کليو او بانډو او د سړک تر غاړې رغړونکې عرضې د مجاهدينو لخوا د روسي ځواکونو په وړاندې چې د بګرام لويې اډې ته به له دغه لارې تلل او راتلل،کمينونه نيول.
د ونو په لنډولو،د سړک ترغاړې د ودانيو په ورانولو سره بيا هم مجاهدينو بريدونه و نه درول نو روسانو د ختيځ په لورې څو ميله وړاندې يو بل سړک جوړ کړ. د غه نوی سړک د پخواني سړک سره موازي غزيده خو په شنډه او ډبرينه مځکه کې تېرېده چې د مجاهدينو د بريدونو په وړاندې يې دفاع په پرتليز ډول اسانه وه خو دغه سيمه د ويجاړتيا او زيان له امله بربنډه او ويرونکې ښکارېدله. مځکه د سوېل په لورې مخ په ځوړ ېدله. د چاريکارو ښار زموږ په وړاندې را نږدې او پراخيده. د موټر د غږ سره سم مو يو بې سيکه غږ واورېده. دا يو تيز او ځرخيدونکی غږ وو ، زه پوهېدلم چې د توپ مرمی وه او زموږ په سر په اسمان کې ګرندی تېره شوه. په همدغه شېبه کې د ښار څخه خاورې راپورته او ګڼ شمېر ټوټې شوي توکي د تورو وريځو د کړی څخه په هوا کې هاخوا دېخوا ولاړل. جنرال بسم الله د مخابرې له لارې کوښښ وکړ چې اړوند کس سره اړيکه ټينګه کړي. موټر چلوونکی يې په مټ ټپاوه څو موټر ګرندی کړي. د دوه نورو چاودنو دوړې او لوګي تقريبا په مسلسله توګه له همغه ځايه راوخوټيدلې. جنرال په مخابره کې خبرې خلاصې او زما په لورې راوګرځېد او ويې ويل: دغه حراميانو بازار د توپ د ډزو لاندې ونيوه او دغه سيمه د مارکېټ او ګڼه ګوڼې سيمه ده.

دوی پوهېږي چې دوی دلته زيات شمېر ښځې او ماشومان وژلای شي. هغه دښمن ته په دري ژبه څه وويلې خو زه پرې پوه نه شوم. بيا يې وويل چې موږ بايد د بازار په لوري خوځښت ته دوام ورکړو اوزه بايد د هغوی سره مرسته وکړم،پوهيږې؟

ما سر وښوراوه او ومې ويل چې بلې،هو راځی چې مرسته وکړو. ممتاز ته مې وروکتل. هغه هم څومره چې ما احساس کاوه، هومره ترينګلی ښکارېده.

موټراوسمهال ډېرګړندی روان و. هغه انديښنه چې موټر به کنټرول له لاسه ورکړي، فکرته راغله. هغه ژامې ټينګې کړې وې اوسټرينګ يې دګوتوپه سرونونيولای و، لړترلړه دری نورې چاودنې هم وشوې خودامهال موږ دبازارغاړې ته ورنږدې واوصحنه موله سترګوپناه وه. کله چې موږ ښار ته ورګډشووحرکت مو کرارکړاوبسم الله موټروان دچاودنې ځای ته وربرابرکړ. موږ وراندې وليدل چې لوګي پورته کېدل .فکر کوم اورلګېدلی و. موږدهغه ځایه چې دخلکوګڼه اوګوڼه راټوله وه. تقريبا نيم بلاک ليرې ودرېدلو! جنرال مخکې له دې چې زه له وروستني سيټ څخه راپورته شم، له موټرښکته اوصحني ته يې ورمنډه کړه. وړاندې کوچنی څلورلارې وه اوهرې خواته يې درې ورې شوي لرګي اوغرفې پرتې وې. دااوس دوژلوساحه وه. اوزموږوروسته دغرفې مخامخ ديوې ودانی څخه داورلمبې پورته کېدلې. هرډول کباړاوپاتې شوني په کوڅه کې هرې خواته پراته ول .هرې خواته جسدونه په غير منظم ډول پراته او په خاوروککړشوي ول. جامې ټولې تورې اوداغ شوې وې. خلکومنډې وهلې څوخپلوملګرواودکورنی غړو ته لاس رسی وکړي، د درد او غوسې غږونه اورېدل کيدل. جنرال دګډوډی په منځ کې په مخابره خبرې کولې ،تقريبا دچا ورته پام هم نه و. زه هم ددې دپاره چې په صحنه کې ورګډشوم، دده وروسته ودرېدم. ماهم په يوڅه باندې پښه کېښوده ،ښکته مې وکتل دانسان په يوه لاس باندې چې ګوتې يې پورته وې،درېدلی وم. ګوتې هم طبيعي ډول ته ورته راټولې شوې وې خيټې مې غورهار وکړاوساه مې وويسته،په احتياط سره مې دلاس څخه پښه په داسې ډول لکه چې ما خوږکړی وي،راپورته کړله. جنرال دسرتېرو کوچنی ډلې ته لاس وښوراوه او د دوی په خوا ورغی هغوی ته يې امرونه کول اودټپيانو په لوري يې ورته اشارې کولې. کله چې هغوی په کارپيل وکړ، هغه وويل، ښاغلی ګيري دکلي خلک دزخميانوسره دمرستې په کولوپوهېږي. موږ دومره مرسته نه شوکولای. طالبان ښايي ددې په هيله چې راټول شوي خلک ووژني، يويا دوه نورفيرونه هم وکړي. لکه دده په خبروچې هغوی پوه شوي وي زموږڅخه تقريبا درې سوه فوټه ليرې يوه زوروره چاودنه وشوه. اودڅلورلاري لوېديځ لورې ته ودانی پرې ولګېدې. ټکر يې دومره زورور وچې زه يې په مځکه راوغورځولم

اوډپراتـه لاس ترخنـګ ولویـدم. جنـرال زه لـه مرونډخـه راونیـولم اوپـه پښـویې ودرولـم. هغـه وویـل ګـوره دوی پـه ربښـتیا هـم شـیطانان دي. راځـه چـې ځـو. لـه چاریکاربازارخـه راووتلواوتقریبـا یومیـل یـا زیاتـه انـدازه دسـوېل لـورې تـه ولاړو. جنرال موټروان ته اشاره وکړه چې دعمومي سړک څخه ګڅ لورې تـه خام سړک چې وړاندې دونودیوه کتارپه لورې غبرګېده، وروګرځي. دونوپه یوه کتار کې یـوه ډوب شوي سړک ته وروګرځېدلوچې د دواړو خـواو څخه د ونوپه واسطه پوښل شوی و. د تـودوخي درجه هـم ټيټه وه اوسړک نسبتا اوارو. ما جنـرال تـه د دغه هوښیارسړک جوړونکوله املـه څخـه حیرانتیـا څرګنـده کړلـه. جنـرال وویـل چـې دا سړک نه دی. دا د اوبو یو پخوانی کانال (ویاله)دی چې تقریباً دوه کاله کېږي چـې وچ دی اومـوږ یې د دې دپاره چې د موټرودوړې ښکاره نه شي اوپه غونډۍ بانـدې دلعنتـي طالبانودنظرڅخـه پنـاه وو، کـاروو. لـه دې چـې ونوښـه سیوره کوله،ډېر منندوی وم. جنرال وویل چې دبګرام هوايي اډې تـه دشا لـه خـوا لاره پـه کـار وه. جنرال وخندل اوویې ویل چې دشمالي په اواروسیموکې دشلوکلونوڅخه دزيات وخت جګړې پـه کولوسره هغه ددغه عرضي مځکې اینچ اینچ سره اشنا دی.

دلومړیوکرښوپه پټوځایونوکې به دربېرواودطالبانوموقیعتونه به له نږدې ګورو. بیا به د اې ګروپ ،میوري اوستاڼ چې په اډه کې چې دکنټرول له برج څخـه خپله دنده ترسره کوله، ووینو. موږدکانال څخه ووتلواو اوسمهال دسوېل پـه لـورې پـه پرتلیـز ډول پـه کـرار روان و.پـه هغـه تنـګ سـړک کـې چـې دروسـي پـوځ ورانـې ودانۍ وې په منځ کې کوږ وږ غزېدلی و،روان و. د ویجاړو ودانیو یـوې ډلې تـه پـه رسېدلوسره جنرال هغه ودانۍ چې جوړښـت یـې سړک تـه راوتلـی واشاره وکړه ،ویې ویل چې دا د روسانو د ټانک د رغونې مرکز و .د موږ دښار څخه په کراره تېرشوواودروستی ودانۍ دسپوږې شاته ودرېدلو. کله چې له موټرښکته شوو ومې لیدل چې دسمڅو یوکتار دسړک له غاړې سره په موازي ډول زموږچپ لورې ته غزیدلی و. زموږڅخه تقریباً شل متره پـه واټـن کـې دیـوې سمڅې شاته یوڅه سـرتېري ولـاړو. جنـرال وویـل چـې دازمـا ځواکونـه دي اودغـه سـمڅې زموږلومړۍکرښه ده. طالبان د درې سوه مترو په نږدې واټن کې همدې ته ورته دسمڅوپه کتار یې لومړۍ کرښه جوړه کړې ده. دلته باید موږمحتاط واوسېږو. لـه دې سره خلاصې سیمې ته دسمڅوپه لورې حرکت وکړ. له هغه سرتېرو سره چې جنرال ته انتظار و روغبړ وکړ. جنرال دسمڅې په یوه کونج کې یوننوتي زینې لار ته اشاره وکړه هغه له ما وغوښتل چې دسمڅې افسر سره د دغه زینې له لارې ښکته لاړشـم. ویـې ویـل چـې اوس بـه دښـمن لـه نږدې وګـورې. کوټې تـه دیـوې زینې رڼا دهمدغه غـار څخه چـې مـوږ کـاروه، اوهغـه دوه سمڅې چـې دوسلې دپـاره یـې دسـمڅې پـه مځکنـۍ برخـه کـې جـوړې کـړې وې، راتللـه. دهغـه

لرګیومتوچې زما مخامخ ددرانده بام دحمایه کولولپاره لګېدلې وې، زما په مخ یې سیورۍ جوړ کړی و. جنرال هم راننوت اویوڅه غبرګ شوڅودکړکۍ څخه د دښمن لومړۍ کرښې ووینې.

زه هم دسیمې دکتلو لپاره ورکوړشوم اوومې لیدل چې تقریبا درې سوه متره لیرې په شنوواښوکې پوښل شوي له ختوجوړه پوسته ښکارېدله. هغه کوټې چې ګورې هغه دطالبانودفاعي سمځې دي. واښه یې دکوټوجوړښت پټوي خوستا ګڅ لورې ته د کوچنیو ونوترڅنګ وګوره یوطالب دی او د دوربین په واسطه موڅاري. دجنرال د لارښوونې په بنسټ مې ولیدل چې یو طالب دکوچنیو ونوترڅنګ په خپړو روان دی. بیا زما ښۍ خواته پړک شو. دسترګوداړولوپه وخت کې مې دماشین ټوپک د ډزو غږ واورېد. جنرال وویل،فکرکوم نن دوی ډارېږي. دوی زموږ په ضد ډزې کوي. زموږ ښۍ خواته درنې ډزې ولګېدلې. لږ ځنډو بیا دوهم ټوپک هم دلومړي ټوپک سره یوځای او دا ځل مرمۍ زموږ په سمڅه باندې ولګېدله. هغه وویل ښاغلی ګیري راځه چې ځو. کله چې ددروازې په لورې ځې کوښښ وکړه چې ددېوال ترڅنګ ووسې. په سیوره کې موترهغې چې ډزې یوڅه ودرېدلې، انتظاروکړاوبیا د خاورینې زینې له لارې رښا ته په بیړه سره لاړو. دسمځودېوالونه په پوره اندازه لوړوچې موږیې د دښمن څخه پناکړي و. ډزې په چټکې سره لږې شوې اوبیا ودرېدلې. کله چې دلمرلاندې ولاړواوخبرې موکولې،جنرال حالت راته تشریح کړل. دواړوخواووزیات وخت په یوبل ډزې نه کوي. ځکه نه غواړي چې د اړتیا پرته مرګ او ژوبله وزغمي. دوی فکرکوم له دې چې په چاریکاروباندې یې دتوپ ډزې کړې وې، اندېښمن دي. دوی ښایي فکرکړی وي چې موږڅه پلان لرو. کله چې حالت یوڅه ارام شو. موږ دموټرپه لورې حرکت وکړ. بیادکنټرول برج دلیدلولپاره ولاړو. ختیځ لورې ته په حرکت و او د شوروي اتحاد دهوایي اډې دستروکندوالوڅخه تېرشوو. دلته اوهلته ویجاړې شوې الوتکې پرتې وې اوچېرته چې ویجاړې شوې وې. هلته پاتې شوې وې. حتی دوه ماشینه روسي الوتکې داسې لکه دلومړۍ نړیوالې جګړې الوتکې چې په فلمونوکې ښودل کېږي،ورانې اوغوځې خو په منظم کتار باندې ولاړې وې. کله چې موږ د الوتکې دکېناستلو لیکې ته ورګډ شو موټروان دموټرپه اکسلټرباندې پښه ټینګه کړه اوګاډی یې ګړندی کړ.جنرال زموږ په خوا راوګرځېد اوویې ویل، طالبان زموږګڅ لورې ته هغه کلي تر ولکې لاندې لري. دوی کولای شي چې دالوتکې ضد توپ په واسطه موږ د اور لاندې ونیسي. دوی هلته په ډېر ځواکمن ډول ځای په ځای اوله هغه ځایه د دوی لرې کول به د ډېروزونډنونوپه بیه ولوېږي. نود دې په خاطربایدموټرګړندی وچلوو. دکنټرول بورج یا ودانۍ هم یوه لویه حیرانتیا وه. ما دیوه ډېرلوی اولوړې ودانۍ هیله درلوده خوپه حقیقت کې دادوه چته

لرونکې(دوه ودانۍ په يوه محوطه کې. ژباړن)ودانۍوې او د څارنې کوټه يې په سروه. موړ موټر نړدې ور ودراوه او دافغاني غالمغال کوونکي افسرانوله خوا هرکلی وشو. ټول دجنرال سره دلاس ورکولولپاره خوښ و. د ودانۍ دېوالونه د مرمېو او بمونو د ټوټو د لګېدلو له امله داغ داغ و. دکنټرول کوټې ته دکنکريټ څخه جوړه شوې يوه تنګه زينه ورغلې وه. سټان اوميوري هلته ديوه کوچني مېز څخه راتاوېدل اوپه نقشه باندې يې کارکاوه. دکوټې سويلي اوختيځ دېوالونه سره جوخت د555 ګروپ شپېرغړي وڅودانې ټلسکوپونه دهغو څخه چې ښکاريان يې دنښــه کولولپــاره کــاروي،لوی ول. مخــابرې تــوکي، نقشــې،دوه يــا درې ډولــه دوربينونه اونورتـوکي په کوټه کې خواره ول. دکړکۍ څخه بهرصحنې ته ټول کسان متوجه ول. دبام له خوا چې دزينې په کومه سوره موړرانتوتلو، هغه دهوان مرمې دلګېدلو له امله سوری شوې وه. دکانکرېټ ټوټې د چت او د زنګ وهلي ګاډرڅخه راځوړندې وې. په هيڅ کړکۍ کې شيشې نه وې،دکنټرول کوټې ننې دېوالونه اوچت دمرمېودلګېدلوله امله داغ داغ ول. په دغه ځای کې کار کول لــه ورايــه څرګندېــدل. جنــرال بســم الله خــان مخکــې لــه دې خپلوافســرانوته ورشي،دسټان،ميوري اود اې ګروپ دځوکسانوسره يې روغبړوکړ. سټان اوميوري د اې ګــروپ لــه خوادکارکولوڅخــه ډېرمتــاثره وو. مســول خوردظــابط تــه يــې وروپېژندلم. هغه دلومړۍ کرښې حالات په صادق ډول وځېړل. دلومړۍ کرښې هغه سيمه چې دوی ورسره مخامخ و، په زياته اندازه ارزښتناکه هدفونه درلـودل. هغه کړکۍ ته بوتلم اودطالبانويوموقيعت چې تقريبا يوميل ليرې و او د دوربين پرته ليدل کېده، راوښود. هغه وويل چې دګروپ لخوا دالوتکوغوښتنه ډېرځله له پامه غورځول کېږي ځکه چې دالوتکوبريد دهېوادنوروبرخوته پروګرام شوي دي. 555 ګروپ غوښتنې ته په هغه وخت کې چې الوتکې ته په بل ځای کې دموظف شوي هدف څخه يوڅه مهمات ورپاتې وي، ځواب ورکوي. يوه يا دوه الوتکې به راتللې اوزيات وخت به يې کمزوري بمونه راوړل نه دوه زره پاونډ لرونکې بمونه چې دسمڅودورانولولپاره په کارېدل. ګروپ دشپې په مهال له دې ځايه هم ورنږدې کېدل حتی دطالبانودموقيعت سره ترټولونږدې ځای ته دکارلپاره ورمخکې کېدل. دوی په دوام دارډول خپل ژوندپه خطرکې اچاوه اودهيجاني طالبانوځواکونوله خوا چې دوی ورسره مخامخ کېدل،هره ورځ پرې ډزې کېدلې. دغه افسر واضح زره مات شوی وخوکوښښ يې کاوه چې مثبت واوسي. هغه له دې سره چې دسي سي اي (قوماندې اوکنټرول عناصر. ژباړن)ګروپ په راتګ سره به د555 ګروپ له خوا دبم اچونې غوښتنې ته پام واړول شي. ماله سټان سره دحالاتوپه اړه وليدل خوهغه هم دخور دظابط ټولې خبرې تايدکړې. دجګړې په دګردپايلونشتوالي له امله زموږکوربانه هم متاثره کېدل. دقطعې مسول دګروال

شمالي ټلوالې ته دامریکې دوعدونشتوالي له امله بې قدره کوونکې تبصرې وکړې. ستان وویل چې دتېروخوورځوپه بهیر کې دګروپ دژوند داوسېدلوحالات نسبتاً ښه شوي دي. دوی دلومړني ځای څخه چې دختوجوړشوي چاردېوالي په منځ کې په دوه کوټوکې چې دتشناب سهولت یې نه درلودنسبتا یوه ارام ځای ته وړل شوي ول خو دوی زیاتو بوتلي اوبوته اړتیا درلوده څکه چې حتی د اوبو د پاکولو تابلت (دارو)هم نه شوکولای چې دغه اوبه خوندورې کړي. ماله دې چې راتلونکی سهار به دوی ته اکمالات کوم، وعده ورکړه. له ستان مې وغوښتل چې د او ډي اې له ګروپ سره د اړتیایي توکوپوره لړلیک برابرکړي. دتګ وخت واو ما هم له دوی سره خدای پاماني وکړه. دا هغه ځای و چې عمل ترسره کېده او د دښمن په ضدجګړه ترې پیل کېدله. امریکایي سرتېري اود سي ای اې افسرانوخپل ژوندونونه په خطرکې اچول. فحر مې احساس کړخوپه عین وخت کې له دې زه هم باید ورسره وای یوڅه کستمني هم احساس کړه خوددې سره سره له دې امله چې هغوی ته مرسته اوملاتړنه رسېده یوڅه په غوسه شوم. په واشنګټن کې کړنلاره جوړوونکې له دې چې شمالي ټلواله بایددکابل ښارونیسي او کنه، زړه نازړه کېدل. داهغه پوښتنه نه وه چې له واشنګټن موکړي وای. زما په فکر دحالاتوسره برابره اومناسبه پوښتنه خوداوه چې ایا مورغواړوچې طالبانو ته ژرماتې ورکړواو کنه؟که چېرې ځواب هو وای نوبیا دغه هدف ته درسېدلو لارپه شمالي کې دطالبانولومړی کرښې بمبارکول دشمالي ټلوالې لارخلاصول و. په سویل کې دطالبانوپه وړاندې دپښتنودمنظم مقاومت دنشتوالي سره سره دکابل لوېدل دشمالي ټلوالې په لاسونوکې که ژر وای اوکه وروسته وای، یوحقیقت و. په ورته وخت کې دلومړی کرښوسره امرېکایان په خطرکې و، دوی د بمونو د غورځولو هیله درلوده . دماښام په شپږبجې خپل کورته ستړی، په دوړو خړ پړ اوشخ راورسېدو. ممتازله دې چې دا سفر یې ترتیب کړی و،مننه وکړه. سفر زړه ماتوونکی خوپه عمومي ډول ګټورو. ریک دستړي مه شي وروسته وویل چې د دوه اضـافي او ډي اې ګروپونوراتـګ نـن شـپه ټاکـل شـوی دی. ډګـروال ملهولانډوروسته دهغې چې زه له کوره وتلی وم، ټلیفون کړی واونظریې ورکړی وچې دا دوه ګروپونه بایدددې په ځای چې دغرونوپه سرتېرشي بایدپه خواجه بهاودین کې ښکته شي څکه دهندوکش څخه هاخواپه لوړه ارتفاع کې دهوا حالاتووړاندوینه ښه نه وه. تېرې څو ورځې د هوا حالات ښه و خو د شپې به بیا ډېر خرابیدل. هغه ویلې و چې کولای شي نن شپه ګروپونه په خواجه بهاوالدین کې ښکته کړي او د هوا د ښه کېدلو په صورت کې به راتلونکی ورځ د سي سي اي (د کنټرول او قوماندې غړي) ګروپ به درې ته د هوا له لارې ولېږدوي.

بـراډ د جنـرال بریـالي خـان سـره د ګـروپ راتـګ تـه تیـاري نیـولی و. د ګـروپ

چورلکې به د ښکته کېدلو هغه ځای چې ایډ او ګریګ خواجه بهاوالدین ته د سفر په مهال کارولی و،وکاروي.ریک له براډ سره اړیکه نیولې وه او له هغه یې غوښتې و چې د پلان د بدلون له امله له جنرال بسم الله خان څخه هوکړه واخلي او له هغه وغواړي چې نن ماښام د ګروپ هرکلي ته تیاری ونیسي.

ډېر کارونه و چې باید ترسره شوي وای خو ریک وویل چې هر څه تیار دي. بسم الله سمدستي له جنرال فهیم سره اړیکه ونیوه ، جنرال فهیم د تخار له لومړی کرښو څخه د لیدنې په سفر و. فهیم هم نوی پلان تصدیق کړ. ایډ او ګریګ د ډګروال مل هولنډ د پیلوټانو سره د خوندي ټلیفون له لارې اړیکه ونیوله څو هغوی ته د ښکته کېدلو د ځای جغرافیاوي کوارډینات او نور اړوند مالومات ورکړي.

دوی خبر ورکړ چې د کېمیاوي څراغونو په واسطه د مځکې په نښه کول به جنرال بسم الله ترسره کوي. ریک ډګروال مل هولنډ له پلان څخه خبر کړ او ټول د پلان له امله خوښ او راضي ول.

د شپې په اتو بجو او شل دقیقو د ټاسک فورس ډاګر قرارګاه خبر راکړ چې هغه چورلکې چې د او ډي اې دوه ګروپونه لېږدوي،په الوتنه یې پیل وکړ او په خواجه بهاوالدین کې به په لسو بجو او دېرش دقیقو ښکته شي. موږ له ممتاز غوښتنه وکړه چې انجینر ته دغه خبر ورسوي او هغه به بیا جنرال بریالی خان خبر کړي.

ریک له براډ سره د مخابرې له لارې اړیکه ونیوه او هغه ته یې پیغام ورساوه. براډ خبر راکړ چې د جنرال بریالی خان او د هغه کسان د چورلکې راتګ ته تیار دي. موږ هم انتظار کېناستلو. د شپې په نهو بجو او شل دقیقوممتاز زموږ دفتر ته پداسې حال کې چې پر مخ یې ښکاره ویره لیدل کېدله،راغی. جنرال فهیم د جنرال بریالی خان سره د چورلکو د کېناستلو په ډګرکې یو ځای شوی و. د اې ګروپ د ښکته کېدلو ځای یې نه و منلی ځکه چې د هغه په باور دا ځای ډېر بربنډ او خلکو په اسانۍ سره لیدلی شو. فهیم غوښتنه کړې وه چې د ګروپونو راتګ دې وځنډول شي او چورلکې دې بېرته ازبکستان ته وګرځول شي. ما په هغه څه چې اورېدل مې، باور نه راته. د کوزېدلو ډګر بربنډ و او خلکو په اسانۍ سره لیدلای شو؟ موږ خو هغه ځای د خپلې چورلکې لپاره ډېر ځلې کارولی دی او هیڅا هم خپل غږ اوچت نه کړ. ما هڅه وکړه څو ممتاز ته په غوسه نه شم ځکه هغه یوازې پیغام ورونکې و. ماورته وویل چې پلان ته دومره ناوخت بدلون ورکول خوناشونی دی. د دېرشو څخه زیات امریکایي سرتېري همدا اوس په چورلکه کې دي هغوی له خطر سره مخامخ دي او د دغه ډول احمقانه دلیل دپاره د پلان بدلول به یو بې ځایه تېروتنه وي.

ما له ممتاز وغوښتل چې انجینر عارف خبر کړي څو له فهیم سره اړیکه ونیسي او له هغه وغواړي چې پریکړې ته بدلون ورکړي. ریک د براډ سره د مخابرې له لارې اړیکه ونیوه څو له ددغه موضوع په اړه وپوښتي.

ما او ممتاز د ټاسک فورس ډاګر هوایي ډګر سره اړیکه ونیوه او هغوی وویل که څه هم چې ناڅاپي مخامخ بادونه(هغه بادونه چې د حرکت په وخت کې ورسره مخامخ کېږي. ژباړن) شته والی لري، الوتنه دوام کوي او د ښکته کېدلو اټکلیزه وخت لس بجې او پنځه دېرش دقیقې دی. ما ورته وویل چې د ښکته کېدلو د محل سره د ستونزو د راخوټیدلو له امله ښایي چې موږ د ماموریت پای ته رسېدا ته اړ شو خو په راتلونکي لس یا پنځلس دقیقو کې به یې پخلی وکړو.

د غه خبر له امله د مخابرې په هغه پای کې غبرګون خوشالونکې نه و. د مخابرې افسر وویل چې هغه به له ډګروال مل هولنډ سره اړیکه ونیسي او زموږ د مخابرې ددوهم ځل اړیکې لپاره به یې د مخابرې سره انتظار کړي.

کله چې ممتاز په نهو بجو او دېرش دقیقو راوګرځېد، د هغه مخ ته په کتلو سره پوه شوم چې هغه ناوړه خبر لري. جنرال فهیم بیا هم د ماموریت په پای ته رسولو ټاکېد کړی و. د ممتاز سره مشاجرې کومه مانا نه درلوده. ما له ریک وغوښتل چې له ټاسک فورس ډاګر سره اړیکه ونیسي او ډګروال ملهولنډ له دغه حالت خبر او د هغه ته د ماموریت د پای ته رسولو سپارښتنه وکړي.

کله چې ریک د مخابرې کولو لپاره ولاړ، ما له ممتاز سره په ادبي ډول شخړه پیل کړه. ما ورته وویل چې زه په دې نه پوهېږم چې زموږ چورلکې هلته په رڼا ورځ د څو ورځو لپاره الوتنې کولې او د شپې لخوا د ګرندي کېناستلو او بیا د سیمې څخه په بیړه د وتلو سره مخالفت وشو؟

د چورلکې هره الوتنه خطر لري خو بیا د دښمن تر ولکې لاندې سیمه باندې اوږدمهاله الوتنه خو لا ډېره خطرناکه تمامیږي او سربیره پر دې په وروستی دقیقه کې د الوتنې دبیرته ګرځولو پرېکړه خو باید یوازې د رښتیني او جدي امنیتي ستونزو د شتون پرمهال ونیول شي. ما ورته وویل چې هیله مند یم چې دا د فهیم د بې سنجشه او بې باکه پریکړو له ډلې څخه نه وې او د امریکې د ځانګړو ځواکونود کوربه کولو په وړاندې د شمالي ټلوالې د کرنلارې د بدلون اشاره خو بېخي باید نه وي! ریک په داسې حال کې چې ما خبرې پای ته ورسولې را وګرځېد، ویې ویل چې په غوسه شوي ډګروال مل هولنډ قرارګاه ته د الوتنې د ګرځولو سره هوکړه وکړه خو هغه د شمالي ټلوالې څخه په راتلونکي سهار ددغه پرېکړې د جوتونې او تشریح غوښتنه وکړله. ما له ممتاز سره خدای په اماني وکړ اوله هغه مې وغوښتل چې عارف ته زما پیغام او ډګروال مل هو لنډ غبرګون ورسوي. ما او ریک د فهیم دغه پرېکړې په اړه خبرې وکړې. زما باور دا و چې د

فهیم د وروستی دقیقې پریکړې تر شا سیاسي دلایل شته. په خواجه بهاوالدین کې څه روان و چې فهیم یې د وروستی دقیقې دغه پریکړې ته چې باید امریکایي پوځونه نن شپه هلته ښکته نشي،اړ کړ. په راتلونکې سهار پردغه موضوع د پوهېدلو هیله مې درلوده. د شپې خدای په اماني مو سره وکړه او خپل ځان مې د خوب ځای ته وروڅکاوه!

## الفا گروپ او د مزار شریف په سویل کې جګړه
## څلوردیرشم څپرکی

د 2001 زېږدیز کال د اکتوبر د میاشتې درویشتمه نېټه وه. ار جې خپل دروبین متمرکز کړ او مخې ته پراته اواره سیمه یې په ځیرځیر وکتله. هغه دغوندۍ سرته نږدې راوتلي پرښې چې داوارې سطحې څخه تقریباً پنځوس یا شپیته فوټه لوړې وې، تکیه کړې وه. روسي جوړدوربین چې په تاشکند کې یې دلسوڅخه په لږوډالرواخیستلی و، په حیرانتیا سره ښه کېفیت لرونکی و. د عرضي تفصیل(کاڼې، لوټې، لوړې اوټیټې. ژباړن)اوهغه ځواکونه چې په اواره کې ځای په ځای شوي اوندې ته لیږل شوي و، په اسانۍ سره ښکارېدل. دوستم تقریبا درې سوه پلي ځواکونه چې زیات یې سیمه ایزه ملیشه ځواکونه ول، درلودل چې دتېرو څلورو یاپنځو ورځوپه بهیر کې یې تیارې کړې وې. تقریبا دوه سوه ګزه اوارې سیمې ته چېرې چې د وچې شوي سطحې پولې سیمه کې څلورضلعی شکل غوره کاوه، وخوځول. دغه ځواکونه به په راتلونکې کې برخه واخلي خو د اوس دپاره هغوی دطالبانوشونی برید په وړاندې چې تقریبا په سیمه کې له دوی څخه اته سوه ګزه لیرې و، دخوندي ساتونکو په توګه له هغوی دفاع کوي. دوستم دطالبانوله خوادهغوی په وړاندې دبرید وېره نه درلوده خوداچې طالبان به څه وکړي، چا نه شوه ارزولی. د دوستم ځواکونوطالبان دتېروڅوورځوپه بهیر کې په تدریجي ډول وټکول. دطالبانوسترځواک یې دشمال اودمزارشریف په خوا وځغلول. آر جې وویل دطالبانوکرښوته په سیمه کې بیا په ځیرځیرسره وکتل.

طالبانودمځکې دژورولوپاره زیات وخت نه درلودخوهغه نقطې چې دوی

ټاکلې وې، ښې وې. د دوی شاته لوړ ډګربه د دوی زیډ اېس یو-23 (یوډول د الوتکې ضد توپ چې دپلې هدف په ضدهم کارېدلای شي. ژباړن)توپ په واسطه دډزولپاره ښه سیمه وه. دوی لږ تر لږه دوه دانې زیډ اېس یو-23 ډوله الوتکې ضدتوپونه اوټي T-55 ډوله دشورویانودوخت ټانکونه درلودل. جګړن اکرم چې د دوستم ددرستیز یا ارکان حرب دافسرانوله ډلې څخه و، اوس دالفاګروپ سره دارتباطي افسر په توګه په دنده ګومارل شوی و. د زروطالبانوچې په هغه ځای کې پـه انتظـا رو، اټکـل وکـړ. دوی د دفـاع اوخنـډ لـوی ځـواک و چـې دطالبانودځواک اصلي زور ته یې اجازه ورکوله چې دمزار سره نږدې کلک دفاعي موقیعتونه جوړکړي. دالفا ګروپ څوورځې وړاندې په منځ نیم شوی وچې نیمه برخه یې قومندان عطا چې په دغه سیمه کې تاجک رهبر و ، آر جې او دګروپ دریوغړیو د دوستم اودهغه دازبک جنګیالو سره پاتې شول. تېرې درې ورځې په زړه پورې وې. دوستم مزارشریف ته دسوېل له خوا ځان نږدې کاوه اوعطا هم دختیځ لـه لـورې ځـان ورنـږدې کـاوه. بریـاوې هـم پـه زړه پـورې وې. ازبـک ډېروکوچنیوسرتېروله دي چې په ډېرجرات اوزړه ورتوب جګړه کوله اوپه ښکاره ډول دخپل ژوندلپاره یې ډېره لږه پاملرنه لرله،د آر جې احترام ځان ته قایل کړ. ددوستم دجګړې ستراتیژي ډېره ساده وه. چېرې چې دښمن پیداکړی،په ټول زور سره یې په سر وواهه اوروسته پاتې به یې شیطان پسې وړي. باب چې دځانګړوفعالیتونودفرقې یا ساډ پخوانی افسر واود ګروپ دجلا کېدو وروسته یې د آر جې  د معاون په توګه کارکاوه. د ار جې ځنګ ته پرښې ته تکیه وکړه او ویې ویل. آر جې ستا په فکر به پلان څه وي؟

آر جې خپل سر وروګرځاوه او ویې ویل: زه فکر کوم چې دوستم به خپل سـپاره سـرتېري دطالبانودکرښـوپه وړانـدې مخـامخ ورولیـږي اودښـمن بـه دموقیعتونوپه منځ کې په خرپ سره له مځکې سره ونښلوي. په اواره سیمه کې پلي پوځ به په اسانوسپرو سرتېرو وروسته په داسې حال کې چې ددښمن په ښی اوګڅ خواوې د ډزو لاندې ونیسي، وخوځوي. دوستم تـوپچي بـه هڅـه وکړي څوددښـمن زیـډ اېس یـو-23 د الـوتکې ضـد تـوپ پـه نښـه کـړي. بـاب هـم اوارو سیموته په ځیرسره وکتل او ویې ویل چې هو:دابښه اټکل دی. دا ځکه چې دتېرو دریـو ورځـودجګړې پـه بهیـر کـې دوسـتم دقیقاً همدغـه ډول بریـد وکـړ. زمـا پـه نظرجنرال هغه نظریه ( چې هر حرکت یو ځل کار وکړي، هغه لاره وڅاره) کاروي ار جې خپل سر  وښوراوه او د اوراې سیمې په لنډو د طالبانو د موقیعتونو په لورې یې ور وکتل. ارمان چې د او  ډي اې ګروپ هم زمـوږ سره وای او د سي اې اېس غوښتنه یې کړې وای. د لایزر ټاکونکي په واسطه موږ کولای شول چې دطالبانوپه کرښوکې موسترغارونه جوړکړي وای. هیله لرم چې د ټاسک فورس

ډاګر هوايي قرارګاه هغه پلان چې دهغې له مخې باید د او ډي اې یو ګروپ نن شپه نناباسي،عملي کړي.

د دوی تر شا خوځېدنه پیل شوه . دوی دواړو د فرانک (د ګروپ بل غړی) په لوري وروکتل. فرانک خپل ګڅ لوري ته وکتل او له ځان سره یې وویل: دا دی جګړن اکرم هم راغی. زما په باور د ګډا د پیل وخت رارسېدلی دی. اکرم په هغه وقار سره لکه څوک چې د اس په شا را لوی شوی وي، په اس سپارلي کوله. هغه د اس جلو را کش کړ او په اسانه اشاره یې اس ودراوه او له اس څخه ښکته شو.

هغه د پینځه دېرش کلنی په عمر و او لس نیم فوټه قد، ډنګر او سپین پوستکې یې درلود. د هغه دا ډول څیره د تاجکي مور او ازبک پلار پایله وه. هغه د دوستم د همېشني پوځ یونیفارم تیاره شین خاکي پتلون، د ساحې جاکټ او تور بوټونه په پښو ول. سلا م ښاغلیو: هغه له ارجې او باب سره په بیړه لاس ورکړ او فرانک ته یې سر د سلام په توګه وښوراوه. هغه لاسي ساعت ته ورکتل ویې ویل: موږ په راتلونکو لسو دقیقو کې برید پیلوو. لومړی به ټانکونه او توپونه ډزې پیل کړي څو د شیطانانو سرونه ورټیټ کړي ورپسې به موږ د درنو ماشین ګڼو ډزې پیل کړو. هغه د شمال خواته د دښمن په لورې ټیټو غونډیو په لورې اشاره وکړه. جنرال هلته د 14.5 ملي متري څو ماشین ګڼې ځای په ځای کړیدي او هغه به د دښمن په بني اړخ ډزې پیل کړي. ورپسې به په لاندینی برخه کې پلی پوځ د دښمن په ګڅ لورې برید وکړي او په اس سپاره سرتېري به د دښمن د کرښو په منځنی برخه ورودانګي. ارجې او باب یو بل ته وکتل او اکرم ته یې موسکا وکړه. اکرم د اس په لورې ورغی او ویې ویل: راځی تاسې ته جنرال بلنه درکوي چې د هغه سره د جګړې د پیل کوونکو په توګه بدرګه وکړی.

اکرم خپل ځان سمبال او ترهغې چې ارجې او باب په خپلو اسونو سپاره شول،انتظار وکړ. ارجې د اس ښه سپارلي کوله څکه چې هغه د ۱۸-۱۹ کلنی پر مهال د مونټانو په شنو ورشو کې اس ځغلونه کړې وه. حتی ارجې هم د ازبکې کوچنیو رکابونو څخه نا ارام و. هغه په رکاب کې یوازې د بوټ څوکه ځایولای شوله. یو ځل هغوی هڅه وکړه څو ځانونه په نری څرمنې پوښل شوي لرګینو ځینونو باندې عادت کړي خو په کوچنیو او شخو سیټونو باندې د شا برابرول ورته د دردونو ډکه تجربه وه.

کله چې دوی د جګړن په څار سره په اس سپرلي کوله،ارجې د تروریزم په وړاندې د مرکز لوژستکې څانګې څخه غوښتل شوي لویدیځ ډوله د ځینونو د پیرودلو او په راتلونکې اکملاتي غورځونه کې د رالیږلو لپاره له ځان سره غلې دعا وویله! جنرال دوستم د خپلو جګپوړو افسرانو په منځ کې ولاړ و. هغه غټ خو

کلک جوړښت یې درلود. منځنۍ ونه، نصواري خاکې پتلون، تور بوټونه او د وریو څخه جوړ شوی دروند تور رنګه جاکټ چې نظامي ډوله لیکې یې درلودلې، په ځان کړی و. هغه لنګۍ ته ورته اسماني رنګه شی چې یوه ټوټه ترې ښکته ځوړند وه څو د دسمال په توګه ترې کار واخیستل شي، په سر و.

د سرتېرو وریځې او بریت تک تور ول. هغه په ځواکمنتیا او ډاډه توب سره چې ځان ته یې احترام اړاوه، حرکت کاوه. هغه د امریکایانو هغه ستونزې ته چې د اس سره یې د ښکته کېدلو پر مهال درلود، موسکی شو. هغه خپل لاس ارجې او د هغه کسانو ته وروغزاوه او په دري ژبه یې وویل: پخیر راغلی دوستانو: سره له دې چې ارجې په دري ژبه ښه مهارت درلود، اکرم د ګروپ د نورو غړو لپاره ژباړه کوله. موږ د څو دقیقو په بهیر کې جګړه پیلوو. دوستم د جګړې ډګر په لورې اشاره وکړه.

طالبانو په سیمه کې د ځانونو لپاره د ژورو ځایونو د کېندلو وخت نه دی لرلی او دا زموږ دپاره ګټوره ده. د تېرو دریو ورځو پر مهال په جګړه کې مو د هرې ورځې په بهیر کې هغوی ته ماتې وراړولې ده. دا هم زموږ دپاره ګټه ده خو هغه عرضي چې دوی ټاکلې ده، د هغوی لپاره ګټوره تمامیږي او په دغه اواره سیمه کې هغوی ته درسېدلو لپاره موږ ته اوږده سپارلي مخې ته پرته ده. هغه خبرې ودرولې او سیمې ته یې وکتل. که چېرې موږ د توپونو او د ټانکونو لپاره پوره مهمات درلودلای موږ به په هغوی درنه بمباري کړې وای او د هغوی د کمزورتیا لامل به ګرځېدلې وای. څکه چې دوی دتوپ له درانه او دوامدارې بمبارۍ سره عادت نه دي له دې غوره خو به دا وي چې هغه امریکایي الوتکې چې تاسې یې ژمنه کړې وه، دهغوی دموقیعتونوپه وړاندې زموږدخوځښت څخه بمباري کړې وای. هغه خپل لاس اوچت کړڅود آر جې له خوا ځواب مخه ونیسي او ویې ویل:نه ملګریه:زه شکایت نه کوم کارونه به ټول دالله دغوښتنې سره سم راشي نوموږچې څه لرو دهغې سره به معامله کوو. نن به مرګ ژوبله درنه وي خوکولا ی شوچې دښمن دسیمې څخه پاک کړو. دوستم خپلوافسرانوته مخ وراړوه اوویې ویل:ډګروال نظام الدين لطفاً دتوپ اورته اشاره وکړه. بیا مې ګروپ ته مخ وراړوه. راځی چې اسان تیار کړواوپه مخ لورې وخوځیږواوبرید دپیل کېدا سره سمه تماشه کړو. ار جې اس ته وروخوت اوځان یې ځین باندې برابرکړ. خپلو توکو ته یې په بیړه وروکتل. دهغه کلاشینکوف چې اوسپنیزه ماتېدونکی کنداغ یې درلود دهغه په ګڅ لورې له غاړې راځوړند و.یو ایم 9m اتومات توپانچه یې په ښي ورون باندې تړلې وه. د مهماتو بند چې دکلک پراشوټي تړپل څخه جوړشوی و او د کلاشينکوف مرمیوځلورشاجورې پکې وې، په سینه تړلی و. هغه دمرمیوضد زغره په ځان نه درلوده اوچترالي له وریوجوړه خولۍ(پاکول. ژباړن)یې

په سروه. يـوازې دهغـه اسماني رنگـه جينـز پتلـون او اېـل اېـل ډولـه بوټـانو د ده چاپېره افغاني جنگيا ليو څخه هغه بېلوه. آر جـې، بـاب اوفرانـک چـې دواړو ده تـه ورتـه سـمبال وو اوهغـه تـه ورتـه لبـاس يـې درلـود. مخ يـې ورواړوه او ويـې ويـل انډيوالانوتاسې چمتو يې؟فرانک خپل سر وښوروه. هـو پـه اسـونوسـپرو پـوځ كـې، دا دی يوه بله ورځ! جگړن اکرم دکتار مشرتوب پيل او دوی هم د دوستم اودهغه دافسرانو په لورې چې دجگړې د ډگر په لورې خوځېدل. وځاره. اېـم30 ډولـه درانـه توپ د ډز زورور غړ مځکه ولړزوله. اودځوځانيو په ځنډ سره بله مرمی هـم ورانـدې پـه هـدف بانـدې د لگېـدلو لـه املـه وچاودېدلـه. آر جـې وليـدل چـې دلمبو،خاورو، لوگيـو غوټـه راپورتـه او هـر ډولـه ټـوټې دقيقـاً د طالبـانو د کرښـو دمينـځ پـه سـر اسمان لورې ته والوتلې. جگړه پيـل شـوه. د دوسـتم دټولوکرښـوله خـوا ډزې پيـل شوې.14.5 ملي متره ماشين گڼو د دښمن په ګڅ لورې دگوليوباران پيل کړ. اېم-30ډولـه توپونو(دوسـتم څلـوردانې درلـودل. ليكـوال)درنې بمبـاری تـه چـې ډېـره دقيقه وه،دوام ورکړ. درانه روسي جوړ هوانونـو غړمبهـار پيـل او د غونـډی هاخوا ډډه يې په نښه کړله. آر جې گولی په داسې حال کې چې هـدف يـې پـه نښـه کاوه، وځارله اوله دقت څخه يې متاثره و. مرمی که څه هم چې دجسامت په لحاظ ډېرې ځواکمنې نه وې، خودقيقاً په نښه غورځېدلې. دغـه وسـلې د دوسـتم د ډېروخوښـواو پـه تجروبـوکې پـوخ شـوي د روسـانو لـه خـوا روزل شـوي ملېشـه ځواکونـه چـې دجهـاد پـه لومړيوكلونـوکې يـې پـه شـمالي افغانسـتان كـې وېـره اچولې وه ،زيات رسوا اوپه ناوړه نوم مشهورو،کاروله. په اسـونو سـپاره دوه ډلـې دغونډی دشا څخه راوخوځيدلې اوپه چټکې سره يوتربله څنگ پـه څنـگ چـې د ټولومخونـه د دښـمن پـه لـورې وو،کتـارجوړکړ. دغـه ډول جوړښـت دبريـد لپـاره يواصلي او تازه جوړښت و. آر جې د سرتېروپه منظم اوډيسپلين سره خوځښت له امله اغېزمن اولېواله و. دسرتېروسل کسيزه ډله دځوځانيوځنډ څخه وروسته دطالبانودکرښوپه ورانـدې په کراره ډول سره وروخوځېدلـه. دوهمـې سـل کسيزې ډلې لومړی ډلې ته ورته په احتياط اومنظمه توگه خوځښت وکړ. آر جې پوهېـده چـې دبريـد لپـاره دغه ډول کلاسيک ډول و ددې لپاره چې ځـای پـه ځـای شـوي دښمن باندې لويه راغونډه شوي لړزه وارده کړي. سره له دې هغه پوهېده چې ددغه اغيزې ترلاسه کول ناشوني ول ځکه چې هر سرتېری بـه ددښـمن پـه لـورې دسپارلی پـه مهـال بېلابېـل غبرگـون ښـوده، ځينـوزړه ورويـا بـې ځايـه زړه وروبـه ددوی اسـونه پـه پـوره چټکیسره پـه دښـمن ورځغلـول اوځينونوروبـه هڅـه كولـه څودوروستی زورسره يوځای پاتې شي. حيواناتوبه هم شور،حيرانتيا،لوگي او دوړو ته غبرگون ښوده. ځينـې بـه دبريـد لپـاره ورانـدې تلـل او نـورو بـه هڅـه كولـه چـې دگوليودلگېـدلوځای څخه ځانونـه وژغـوري. ديـوه اوږده واټـن څخـه وروسـته بـه پـه

اسونوسپور پوځ خواره واره شوواو د دښمن دموقیعتونوپه وړاندې به دبريد لړزه
لړه شوله نوځکه دوستم بريد په هغه ډول چې چمتو شوی و، مخته بېوه.
شپېړسوه کسيزه ډله به دسلوکسانوپه ليکه کې بريد ته برابرېدل او په لومړۍ
څپه به يې دهدف په مرکز باندې وردانګل. دوهمه ډله به دلومړۍ ډلې څخه
يوڅه کېڼې خواته وردانګي څو د بريد اغېزه زياته اولړزه يې بهر لورې ته خواره
شي. دريمه ډله به دوو ډلوڅخه ښۍ خوا او د لومړۍ ډلې له څنګه تېرېدله
اوراتلونکودريوډلوبه په خپل نوښت سره دغه مرحله تکرارولـه. په دې ډول به
دښمن داوړدې مودې په بهير کې په خپل موقيعتونوباندې دتکراري بريدونو سره
مخامخ کېده څو د يو لوی بريد جبران ترې واخلي. ددښمن دکرښوڅخه ډزې
سپکې وې ځکه چې دتوپ اودرنوماشين ګڼو د ګوليو باران طالبان د دوی په
سطحي غارونوکې پټېدلو ته مجبورکړي ول. اوس دتوپ ډزې په پای ته رسېدو
وې اودهاوان ډزې هم کمېدلې ځکه چې دبريد لپاره دلومړنيومرستندويه
ډزولپاره په کافي اندازه مهمات نه ول. ارجې پوهېده چې دوستم دوه ټي-55
ډوله ټانکونه ذخيره درلودل اودبريد دسختېدا په صورت کې دکارولولپاره
راوباسل ځوزيډ اېس يو-23 توپونه په نښه کړي. خوترهغې د ډزو لاندې په
پرانيستی ډګر کې اوږده سپارلي پاتې وه. کله چې ددوستم دځای په ځای شوي
پلي پوځ ترڅنګ د زيډ اېس يو-23 دتوپ مرمۍ ولګېدله، دراروانومرميو غږپه
لوړيدوشو. دتوپ اوددرنوماشين ګڼوډزې دپلي پوځونودموقيعتونوترڅنګ يوازې
څوسړې ګولی د دوی ترشا دسپرو پوځونوپه خواکې ولګېدلې. اس سپرو
پوځونوپه مساوي ډول په کراره شواو ار جې وليدل چې ځينوکسانوخپلې وسلې
بدلولې. کلاشينکوفونه يې داستعمال لپاره په داسې حال کې چې سپارلي يې
کوله، برابر کړل. کله چې په اسونوسوارو کسان دپلي پوځ کرښې ته وروسيدل
.دډلې په منځ کې يوافسر په خپلورکابونوباندې ودرېده اوتوره يې راوباسله. د
ډزوسره سم په لوړغږامرترغوږونوشواوداسونوکتار وړاندې په بيړه اوزور سره رسۍ
لکه يواس، په خوځښت شو. څوګامه وروسته اسونه جوړه جوړه شول. په
اسونوسپاره کسانوداسونوورمېږونوچې هغوی يې ګرنديتوب ته هڅول، کاږه
شول. آر جې هم په بدن باندې دخوښۍ څپه احساس کړله. دسوارو دوهمه ډله د
کوزېدلو نقطې ته د رسېدلووروسته جوړښت غوره کړ. کتار يې جوړاوبيا دبريد
لپاره خواره واره شول. طالبانوهم اوسمهال دکرښې له هرې خواډزې پيل کړې
وې اوار جې باور درلود چې که چېرې دطالبانوپه ضد دبريد په پيل کې دتوپ
ډزې نه وای شوي، ددوی له خوا اوسنۍ ډزې به ډېرې ځواکمنې وای. زيډ اېس
يو-23 ډوله توپونو اوس په زغرده سره ډزې کولې او زوروړې ګولی د انسانانو او
اسونو غوښې پرې کولې. پلی پوځ چې د وچې ويالې په سيمه کې ځای په ځای

شوی و،پاڅېدل او ددښمن د ګڅ لورې په خوا په کراره وخوځېدل. دوی په ملا کې تېټ او هغه ځانګړې منډه چې خلک یې په هغوی باندې د ډزو پر مهال غوره ګڼې،داسې لکه سړی چې تیز باران ته په منډه سره ورننوځې، کوله. دا د ښې او پولادې رهبری ننبه وه. د آر جې تر شا د لورې څخه ټانک ډز وکړ او آر جې د هغه په سر د ګولۍ د تېرېدا له امله د مځکې لړزه احساس کړله ، له دې سره هغه د خپل اس اړخونو ته څنډ ورکړ او د جګړی په لورې چې د هغه په تر مخ په تیزی سره روانه وه، وخوځېد. چاودنه د دښمن د ښي اړخ څخه په لوړه سیمه کې وشوله. د دوستم ټانکستانو زیډ اېس یو-۲۳ توپ په ننبه کړی و. د ننبې د له منځه وړلو د ډاډه کولو لپاره یې دوه ګولۍ هم اور کړې. آر جې په یوه کوچني ټېنډي (غونډۍ غونډې) د دوستم او د هغه د افسرانو سره یو ځای کېناست. دوستم او د هغه ټول افسران دوربین ته ورټیټ شول څو د جګړې پرمختګ څرنګوالی وګوري. داسونو د پښو دربولو سیمه چې له لا مځکې نه دتوپ دګولیودچاودلوله امله تته شوې وه، نوره هم دلیدلو لپاره خړه پړه کړله. دجګړې غږ د هغه (دوستم)لپاره د یوغټ روغبړ په مانا و. هغه هډوکوپه فعالیت پیل وکړ. هغه اوس ډېر متمرکز او چمتو و. په اسونوسوارو پنځم کتارهم دسیمې په لنډو وخوځېد اووروستنی کتارهم له اسانوڅخه دکوزیداسیمې ته ورنږدې کېده. دوستم خپل اس دهغوی په لورې وروګرځاوه. خپل لاس یې پورته کړاودجګړې په لورې یې اشاره وکړه. راځی ملګرو، راځی چې جګړه وڅارو. موږله دغه ځایه څه نه شو لیدلی اوله دې سره هغه دخپل اس اړخونو ته څنډ ورکړاودجګړې په لورې چې دهغه په مځکې په چټکۍ سره روانه وه،ورغی. باب په داسې حال کې چې اس مځکې تګ ته وهڅوه،وویل:کثافت زه پوهېږم چې هغه به همدا وویل:ار جې او فرانک څخه یې اس مځکې کړاوګړندی یې کړ څو له جنرال سره یوځای شي. لوګی اودوړې په کمېدو وې ،آر جې ولیدل چې په اسونوسپاره دطالبانوکرښې ته ورنږدې کېدل. ددوی شاوخوا سیمه د ټپي انسانانواواسونوڅخه ډکه وه. ددوی مځکې صحنې چې په وحشیانه ډول په ډلو ډلوانسانان وژل شوي وو،له درد اووېرې ډکې صحنې وې.زیډ اېس یو-23 ډوله توپ ګولیوپه انسانانوباندې دلګېدلوله امله ډېر زیات اړولی و. بدنونه یې چاودلي، ټوټې ټوټې،ورنونه دلته اوهلته پراته چې ځښتن یې په شلیدلواوپه وینولړلوجاموکې چې نعوښتل شوي به وو، لادرکه پراته و. دوستم په لوړغږ یوځه وویل: اوسني ګامونه یې په پوره چټکۍ بدل کړ. آر جې د اس رکابونه راکش کړل اواس ګړندی شو. آر جې خبر وچې فرانک دهغه ګڅ لورې ته اوباب یې دښي لورې وروستنی برخه کې دی. پرته دفکرکړلوڅخه آر جې یوه شوچې خپله براونینګ توپانچه یې د بند څخه راوباسلې او په داسې حال کې چې دښی پښې سره یې توپانچه په لاس کې

ټيټه نيولي وه،سپارلی کوله. ډزودوام کاوه او ددوی په وړاندې په سپاروبريد کوونکوباندې متمرکزو. ډزې په هوا کې ددوی په سرونو تېرېدلې او د دوی خوا اوشا لګېدلې او آر جې د هغه نښې غوږ خواته دمرمۍ د تېريدا سرعت احساس کړ. طالبانوپه وړاندې په اسونوسپاره پوځ اغېزه باندې پوهېدل. دخوشېبو لپاره دسلګونوپه اسونوسپاروکسانوپه يوځای چيغې حتی د وسلو د غرځخه هم لوړې شوې. اوس هغوی دطالبانوپه کرښوباندې ورختل اوپه سلګونوکسانواودهغوی اسونود دود، دوړو،شور او وارخطايي سره هځه کوله اوپه خوځښت کې اله ګوله رامنځ ته شوه. دوستم ددښمن ښي اړخ ته پام واړوه. آر جې وليدل چې داپه مخکې موقيعتونه زيات خالي اود کرښې ها خوا سيمې د وېرېدل شويوکسانوچې د منډې په حال کې و،څخه ډکې وې. طالبانوته ماتې ورواوښتله. دوی ددې دپاره چې داسونوځواکمنتيا وساتي، حرکت په کراره کړ. آر جې ښي خوا څخه يوځواښنا کسان راپورته شول اوپه تېزۍ سره وپېژندل شول چې هغوی طالب جنګيالي دي. له سرونوسترې توري پګړۍ اوپه عجب ډول جوړې شوې ګيرې، اسانه نښې وې. سره له دې چې ار جې د هغوی په لوړې توپانچه وروا،ړوله. هغه دمخ اوشا او خوا څخه د ډزوغږ واورېده اودګروپ نوروغړودطالبانودجنګيالوپه وړاندې ډزې وکړې. ار جې په يوه کس دوه ځلې ډزې وکړې چې دغه کس شاته په ټوپونو ولوېد اوبيا مخکې ته راوغورځېده. ار جې له دغه ګونځې شوي جسم څخه په داسې حال کې چې دهغه په ويشتلواوس هم داړه نه و،تېر شو. فرانک د ار جې تر څنګ و. تقريبا دڅلور يا پنځه فوټوپه واټن ليرې سپارلي يې کوله. دتښتېدونکوطالبانوله ډلې څخه يوتن راوګرځېد څوله دوی سره مخامخ شي اوکلا شنکوف يې اوچت کړ. فرانک په همغه باندې ډزې وکړې. آر جې وليدل چې مرمۍ د سړي په سينه اوسرباندې ولګېدې. ټنډه يې دوينې اوهډوکوسره ټوټې او وشيندل شوه. پګړۍ يې له سر لوړه شوه اوبدن يې په خړاونصواري رنګه مځکه باندې راوغورځېد. ار جې وليدل چې دوستم په يوه څنګ کې ولاړواوکوښښ يې کاوه چې خپل افسران سره راټول کړي. ددوی وړاندې دغونډۍ په ډډه باندې چې له هغه ځايه دجګړې ډګر ښکارېده. يوزيډ اېس يو۲۳ - ډوله توپ واودوستم کوښښ کاوه چې په هغه موقيعت باندې بريد ترتيب کړي. هغه خپل توکي ښکته کړل اوديوه کس څخه کلاشنکوف ، دوه شاجورې يې واخيستې اوپه خپل درانه جاکټ کې يې ځای په ځای کړې. ار جې هغه څه چې دوستم ويل،نه اورېدل خوحقيقت واضح ودوستم دبريد مشري په غاړه واخيستله. دوستم ته کسان راغونډ شول اوکله چې دوستم په غونډۍ باندې ورختل پيل کړل،دشلوڅخه زياتو کسانو په شمول دهغه لوړپوړي افسران له ده څخه راتاو شول،دوی يوه پراخه کرښه جوړکړه او په لوړې غونډۍ يې ختل پيل

کړل. جګړن اکرم خپل لاس وڅرخاوه او ار جې ته یې غږوکړ.له هغه یې وغوښتل چې خپل کسان پلي کړي اودلته یودفاعي موقیعت جوړکړي څو ددوستم له شا څخه چې هغه د برید رهبري کوي ،ساتنه وکړي. له دې سره هغه له خپل اس څخه ښکته شواونږدې سرتېرو ته یې چیغې کړې څوهغوی راغونډ کړي او د رتبې مطابق نظم رامنځته کړي. آر جې دخپلواسونوکنټرول یوه ځوان افغان جنګیالي ته چې له سیمې څخه یې اسونه لیرې لېږدول، ورکړاوبیا دباب اوفرانک سره یوځای شو. دوی ځانونه برابرکړل اوکلاشینکوفونه یې له بندونوخلاص اوقیدونه یې هم خلاص کړل. افغان ځواکونوهم داسونوڅخه ښکته اونیمه کړی دفاعي موقیعت یې جوړکړ. ددښمن دکرښې په ګڅ لوري باندې درنه جګړه روانه وه اوپه اسونوسپاره پوځیان په هغه طالبانوپسې چې دکرښې څخه تقریبا دوه سوه متره لیرې په یوه تنګه لاره باندې تېښتېدل، اسونه ځغلول. ار جې مخ ته وکتل څو دوستم دزیډ اېس یو-23 موقیعت ته ورنږدې کېدونکوکسانو کې په ګوته کړي. دوی ټولو کلاشینکوفونه په اتومات حالت کې چلول او د ټوپکو ډزو غږ لوړ او ټیټ کیده. په ډزو کې د شاجورو د خالي کېدلو له امله لږ ځنډ راغی او ارجې د دوستم غږ چې کسانو ته یې په دري ژبه د پرمختګ غږونه کول،واورېد. ډزونه په اتومات حالت کې پیل شول. د ډزو غږ لوړ او ټیټیده. په ډزه کې بیا ځنډ راغی او د خوښۍ ناڅاپي چیغې پورته شوې. دوی د توپ د سنګر څنډې ته وررسېدلې او د طالبانو د جنګیالو په منځ کې و. د څو ښېبو وروسته ډزې ودرېدلې او یو ځوان افغان جنګیالي د زیډ اېس یو-۲۳ توپ د موقیعت په څنډه باندې چې د جګړې ډګر ښکته لورې ته وربرابره وه، ودرېد! دواړه لاسونه یې د اسمان په لورې اوچت کړل. کلاشنکوف یې په ښي لاس او د یوه طالب د بدن څخه پرې شوی سر چې له وېښتانو یې نیولی واو په روڼ او انګازې کوونکې غږ باندې یې د الله اکبر(الله ستر دی) چیغې وهلې. جګړه پای ته ورسېده. د جګړې په ډګر باندې ډزې په کراره شوې. خال خال ډزې دلته او هلته وشولې ،بیا ودرېدلې. په ډګر باندې چوپتیا راغله او کسانو د فکرونو ړنولو لپاره ځانونه وځنل. دوی شاوخوا خپلو ملګرو ته چې په یو ډول په خلاص ډګر د سپارلۍ کولو څخه ژوندي راوتلي وو، وکتل. لکه اشاره چې ورته وشي، په وینو لړلي ډګر باندې ټولو ولاړو کسانو د بري لورې چیغې پیل کړې. الله اکبر[1] تکرارً ویل کېده!ارجې په همدغه شېبه فکر وکړ چې سره له دې چې د طالبانو په وړاندې جګړه د پای ته رسېدلو څخه ډېره لیرې ده،د جګړې پایله ښکاره ده: طالبان به له منځه ځي!

---

[1] دوستم یانو هم د الله اکبر نارې وهلې هغه هم د امریکایانو تر څنګ. ژباړن

## پـنځه دېـرشم څپرکـی

دڅلرويشتم اکتوبر پر سهار مختلف خبرونه رارسېدلي وو. د ځانګړو ځواکونو د دوه اضافه ګروپونو د راتګ دځنډولو په اړه مو قرارګاه ته خبر نه و ورکړای. نو په دې اساس په راغلو تلګرافونو کې هغې موضوع ته کوم غبرګون نه وښودل شوای.

د مزار شريف په سوېل کې د الفا ګروپ تېر ماسپښين د طالبانو په وړاندې د دوستم د ځواکونو په واسطه د بريالی جګړې د پای ته رسېدلو خبر راکړ.

الفا ګروپ په راتګ او د عطا سره د وروستي اوربند څخه وروسته ددوستم د ځواکونو د مزار شريف په سوېل کې په جګړه بوخت دي. دوی په کراره سره طالبان د خپلو دفاعي موقيعتونو څخه په شا او د شمال خوا د مزار شريف په لورې وځغلول. د هوا په ځانګړي حالت کې په اسونو سپاره شپږ سوه پوځيان چې د جنرال دوستم لخوا رهبري کېدل، په سپين ږګر باندې د طالبانو په دفاعي کرښو باندې نيغ په نيغه ورودانګل. دا د جګړې يو کلاسيک او پخوانی لويديځواله ډول و خو توپير يې په دې کې و چې په دې جګړه کې چا ترومپېت (د ساز هغه اله چې پوځونو ته د امر ورکولو لپاره کارول کېږي. ژباړن) نه غږول کېده.

دوستم د مزار له سوېل څخه يوازې پنځه دېرش ميله ليرې و. د سي ای اې ګروپ چې اوسمهال د قوماندان عطا سره و او د براوو په نوم يادېده، خبر را کړ چې د عطا کسان هم په مساوي ډول بريالي وو. د الفا (د سي ای اې هغه ساحوي ګروپ چې په مزار کې د دوستم سره مېشت و او د طالبانو په وړاندې په جګړه کې د امرېکې هوايي ځواکونوته د بمبارۍ لپاره طالبان په نښه کول. ژباړن) ګروپ سره د يوځای کېدلو لپاره د څليرويشتم اکتوبر په ماښام ټاسک فورس ډاګر هوايي اډې مشرانو غوښتل چې د ځانګړو ځواکونو يو ګروپ ددې لپاره چې هغوی د لايزر په واسطه د هدف په نښه کولو توان درلود اود مزار په سوېل او ختيځ کې به د شمالي ټلوالې لپاره په جګړه کې برې نور هم زيات کړي، د دندې په موخه راننابسي.

دترويزم په وړاندې له مرکز څخه د هانک د ليک مطابق دغه بريالیتوبونه د اېن اېس سي (د ملي امنيت شورا) سره د غونډې پر مهال وڅېړل شول او په پای کې د بهرنيو چارو وزارت د مزار سره د لومړيو کرښو په وړاندې د هوايي بريدونو د زياتېدلو غوښتونکی شو.

هانک وويل چې هغه له دې چې بمباري بايد د کابل سره په لومړی کرښه باندې راغونډه شي، بحث وکړ او د او ډي اې 555 (د ځانګړو ځواکونو هغه ګروپ چې د کابل پر لومړی کرښه باندې شمالي ټلوالې د ځواکونو سره د طالبانو په

وړاندې د هـوايي بمبارى د هـدايت لپـاره پراتـه وو. ژبـاړن) ګـروپ خپـل کسـان د طالبانو سره په پنځه سوه مترى کې درلـودل او که چېرې د بمبارى تمرکز هلته واى، ښايي چې بريا او بريا مو ترلاسه کړې واى.

برسېره پـردې هانـک ليکلـي و چـې د مېز شاوخوا نارضايتي وه او ويـل کېدل چې جنرال فهيم ځان سپموي. خوځښت نـه کـوي او انتظـار باسـي ځـو ټـول کـار د متحده ايا لاتو بمباري تر سره کړي.

موږ ځو ځلې خبـر ورکړى و چـې شـمالي ټلوالـه د متحـده ايالاتو د بمبـارى د مرستې پرته دومره ځـواکمن نـه دي چـې د طالبـانو ځواکونـه چـې د کابـل او تخار سره ددوى په وړاندې راغونډ شوي دي،له منځه يوسي. د ټولو رپوټونـو او دلتـه پـه شمال کې د حالاتو د تحليلي رپوټونو سره سره بيا هم په واشنګټن کې د کړنلارې د ټولنې په منځ کې حيرانتيا وه.

ريک له براډ سره په خواجه بهاوالدين کې اړيکه ونيوه . ځو هلته د پرمختګ پـه ځرنګوالي پوه شي. جنرال فهيم د جنرال بريالي خان سره د سهار د سـپيده چـاود په مهال د ځانګړو ځواکونو د ګروپونو د راتګ لپاره بـل هـوايي ډګر ولټوي،ليدنـه کړې وه. دغه نوى ځاى د اوسني ځاى ځخه اووه يا اته ميله واټن درلود. براډ ريک ته په همغه سهار د نوي ځاى د سروې د اجرا کېدلو ډاډ ورکړ. مـوږ ټاسـک فـورس ډاګرهوايي ډګر ته د دغه مالوماتو له امله خبر ورکړ. دهغه ماښام لپاره د هـوا د حالاتو وړاندوينه ښه نه وه خو موږ د دعا لپاره خپل لاسونه پورته نيولي و.

موږ اوس يوازې د براډ رپوټ ته په انتظار و. عـارف سـهار وختـي راغـى. هغـه مثبت و او د تېر ماښام ستونزې يې په ګوته کړلې. هغه وويل چې نوى ډګر غوره ځاى او د ځانګړو ځواکونو دوه ګروپونه کوربه کولاى شي.

له چاى مې غوړپ وکړ او بيا د عارف په لورې په چوکۍ کې ورمخکې شوم. اجازه راکړه چې رښتينى وغږېږم. تېره شپه موږ تـه وويـل شـول چـې د کوزيـدلو ځاى جوت او خلک يې په اسانۍ سره ليدلاى شي. دا خو عجيبـه وه ځکـه مـوږ خـو هغه ډګر د چورلکې د کېناستلو لپاره د ورځـې لـه خـوا هـم کـاروه. د جنـرال فهيم لخوا ددغه ماموريت د ځنډولو اصلى دليل څه و؟

عارف مخکې له دې چې ځـواب ورکـړي خبـرې وځنـډولې: ښـاغلى ګيـري لکه ځنګـه چـې تاسـې پـوهيږې جنـرال فهـيم لـه دې املـه چـې د امريکـې د ځـانګړو ځواکونو د شتون له امله خلک خبريږي، اندېښنه لري.

پروفيسور رباني زموږ اوږد مهالـه سياسـي رهبـر تېـر ماښـام پـه ناځـاپي ډول د خواجه بهاوالـدين څخه ليدنـه کولـه. طبعاً کله چـې هغـه پـه سيمه کـې د جنـرال فهيم د راتګ څخه خبر شوى دى،هغه د جنرال فهيم سره په سيمه د ليدنې لپاره تاکيد کړى و.

جنرال فهيم له دې امله چې رباني به د امريکې د ځواکونو د راتګ څخه خبر شي. اندېښنه درلوده او ځکه يې نوموړی ماموريت وځنډاوه. د څو شېبو لپاره مې پرې فکر وکړ او له هغه مې وپوښتل: نو بيا فهيم ولې د ځانګړو ځواکونو د راتګ سره د رباني د خبرېدلو له امله اندېښمن دی؟

دا مالومات خو به بې له شکه ډېر ژر د عامه خلکو د پوهاوي سبب وګرځي. عارف غلی شو او بيا مې وويل: او يا ايا جنرال فهيم له دې امله چې رباني به د ځواکونو د راتګ څخه خبر شي او بيا به رباني افغانستان ته د امريکايانو د راوستنې لپاره عامه امتياز واخلي،اندېښنه درلوده؟[1]

عارف وړه خندا وکړه او مټونه يې وښورول:هغه دتاجکانواودرباني اوفهيم ترمنځ په شوني سياسي موضوع باندې نه غوښتل چې تبصره وکړي. ما ورته وويل:هرڅه دليل چې وي داپېښه تکرارېدلی نه شي. په هوايي ډګر کې دامنيتي دلايلو لپاره موږکولای شو چې ماموريت وځنډوو خودشمالي ټلوالې په منځ کې دسياسي موضوعاتو په اساس نشوکولای چې ماموريت وځنډوو. عارف موضوع بدله کړه اودشلټرونوموسسې زندانيانو موضوع يې راپورته کړله.

هغه نوي لاره پيداکړې وه. د هغه کسانوپه زندان کې ديوه ساتونکي سره اړيکه نيولې وه اوهغه ويلي وچې دی اودهغه اووه انډيولان غواړي چې بنديان دشپې پرمهال دکابل سره نږدې له مخکې ترتيب شوي ځای ته ولېږدوي. دوی هر يوه يومليون ډالرپه دې شرط چې کورنۍ يې بايد دعملياتوڅخه وړاندې په پنجشېر کې خوندي ځای ته ولېږدول شي، غوښتنه وکړه.

زما لپاره دغه پلان کمزوری ښکاره شوه. دعملياتودامنيت ساتنې لپاره ډېر کسان شامل وو. دعملياتوڅخه وړاندې اتـه کـورنۍ دطالبانودکرښوڅخه د راړولوڅخه به طبعاً طالبان خبر شي. ما عارف ته هدايت وکړچې دساتونکي سره اړيکو ته دوام ورکړي خوڅرګنده مې کړه چې دغه کار هيله مند نه ښکاري اوفکر کوم کابل کې دطالبانوداستخباراتوله لوړپوړي چارواکي سره پخوانۍ معامله چې دهغې له مخې يې زندانيان دشمالي ټلوالې کرښو ته لېږدول،ډېره حقيقي ښکارېدله.

دعارف دتګ وروسته ما اوريک د ځنډول شوي ماموريت په اړه دهغه په تبصرو باندې خبرې اترې وکړې. زما په باوردا موضوع دشمالي ټلوالې په کورني سياست باندې اړه لرله. پروفيسرزرباني يو پخوانی ساتونکی و د تاجک واکمنه ډلې جميعت اسلامي ريس او وروستنی ناکامه ولس مشرو چې د۱۹۹۲ او۱۹۹۶ کلونوپه بهير کې يې هڅه وکړه چې په افغانستان باندې واکمني وکړي. دطالبانوپه واسطه دکابل څخه درباني د حکومت دشړلوڅخه په

[1] د شرم ځای دی چې دا ډول خاينان او هېواد پلورونکي اوس هم په واک کې دي. ژباړن

وروستیوکلونوکې مسعود د رباني او د هغه د جمیعت اسلامي گوند څخه دلیرې کېدلو په خاطرڅان گوښه کړ.

مسعود دهغه قوماندانانواوسیاسي رهبرانوسره چې دطالبانواو د رباني له ډلې څخه نه وي دافغانستان دژغورنې لپاره متحده اسلامي جبهې یا (FSAIU) سره مخالفت درلود، پراخه نږدېوالی اواړیکې درلودې.

دافغانستان دژغورنې لپاره متحده اسلامي جبهې انگېرل چې دمسعود دمړینې سره یې دسیاسي ډلې ملکېت ترلاسه کړ. که چېرې مسعود ژوندی وای اوطالبانوماتې خوړلي وای زه ډاډه یم چې مسعود به متحده اسلامي جبهه (FSAIU)دطالبانوڅخه په وروستنې افغانستان کې دخپلوسیاسي اهدافودلاسته راوړلولپاره دسیاسي متحد په توگه په داسې حال کې چې رباني به یې له صحنې جلا کړي وای، کارولې وای.

په همغه ماسپښین تقریبا په یوه بجه براډ د خواجه بها ودین څخه اړیکه ونیوه اوبدخبر یې درلود. نوی وړاندیز شوی ډگر په حقیقت کې هم داوسني ځای څخه اته میله په واټن کې پروت وخوله بده مرغه جنرال بريالي خان له دې چې سړک دزیات شمېر ملکې خلکوله خواکارول کېده اود څولویوکلیو ترمنځ تېر و،یا دول هېرکړي و. د شپې له خوا په سړک باندې غیرمعمولي سفر کړل به بې له شکه دخلکوپام راواړوي. له دې مهمه خوداوه چې دکوزیدلو دغه ډگر دسیند په پورې غاړې پروت و او ورپورې کېدل د بېړۍ په ذریعه شونی و. دسیند دواړو غاړوته موټر شتون درلود،سره له دې چې جنرال بريالي خان دکاروان مشري په غاړه درلوده،دسروې گروپ په سیند پورې کېدلولپاره شل دقیقې انتظار و. موږله براډ وغوښتل چې جنرال بريالی خان ته ووایي چې موږبه دکوزیدلودهغه ډگر چې څه وخت راهیسې یې کاروو، مشوره ورکوو.

موږډگروال مل هولانډ ته ټلیفون وکړڅوموضوع وڅېړو. ریک حالات اوپه وروستنی شیبه کې دتېرې شپې دماموریت د ځنډولوترشا حقیقت تشریح کړ. موږمل هولانډ ته وویل چې دجنرال فهیم له خوا نوی وړاندیز شوی هوایي ډگرد امنیتي پېښې په وخت کې د د فاع لپاره کمزوری دی اوموږ به داوسني ډگرپه کارولوباندې تاکېد وکړو. ډگروال هوکړه وکړه، ویې ویل چې د ځانگړو ځواکونو ددوه گروپونو راتگ به دراتلونکي ماښام پنځه ویشتم اکتوبر پورې وځنډوي. دالوتکې هغه کاري ډله چې تېره شپه یې په هوا کې ډېر ساعتونه تېرکړي ول، کولای شي یوڅه ارام وکړي. ریک ملهولنډ ته ډاډ ورکړچې موږبه دانجینر عارف اوداړتیا په وخت کې دجنرال فهیم سره له خبرو اترو وروسته حل کړو اوده ته به یې تفصیلات په راتلونکې سهار ورکړو.

دماښام نوره برخه موقرارگاه ته دلیکونوپه لیکلوچې دتېرو څلرویشتو ساعتونو

پېښې اودراتلونکې ورځې لپاره زموږدپلانونو څرنګوالی په کې و، تېره کړه.

## شپږ دېرشم څپرکی

د اکتوبر په پنځه ویشتم سهار په داسې حال کې چې د څو اوونیو په تېرېدلو سره مې ډېر ښه احساس کاوه. ددفتر ساحې ته وخوځېدلم. وزن مې نور هم په لږېدو و او پتلون مې په ملا کې ازاد شو. لږترلږه هغه څه چې ما وزغمل یو څه مثبتې پایلې یې لرلې. (لیکوال دلته د وزن د کموالې له امله خوښي څرګنده کوي. ژباړن) د تشناب سیمه اوس هم د حد څخه زیاته کارول کېدله او د ککړتیا ویرې لا اوس هم شتون درلودخو داچې د څناورو(لیکوال د ګروپ د غړو څخه هدف دی. ژباړن) د سهار د لېدنې څخه ورمخکې کېدلم، یو څه مرستندویه تمامېدله. برښنایي بخاری (لیکوال حلقه غوندې تاو شوې منقل څخه هدف دی. ژباړن) له برکته مو د شاور دپاره تودې اوبه درلودلې خو زموږ کوټې لا تر اوسه هم ډیرې سړې وې.

ددې لپاره چې د سهار د سپیدې چاود سره له خوبه پاڅېدلم، زیات وخت مخکې له دې چې بل څوک ګډوډې وکړي ماکولای شول چې شاور واخلم او د مینځلو د ښانک د اینې سره د د ډیرې د خریلو لپاره پینځه دقیقې ولګوم.

سره له دې چې د تودوخې درجه لوېدله، کرېس اوس هم په انګړ کې د خوب په چپریکې کې ویده کېده. زما په باور د هغه لپاره دغه ماموریت د یادولو وړ پېښه وه او هغه دلته د هرې دقیقې څخه خوند اخېست. د استخباراتو دفتر یې هم په جوش کې و او د ورځې یې په منځني ډول لس استخباراتي رپوټونه چمتو کول.

د پخلنځي کارکونکې اوس خپلې ورځنی دندې چې د راتلونکې سهار لپاره دوه چاینکه کافي تیارول و، پای ته رسولې وې. د ګروپ څخه چې هر یو لومړی پاڅېده،باید ګازي بخاری لمړی چالان او بیا یې د ګروپ سره د سهاري سترې مه شي لپاره کافي تیاره جوړه کړې وای. ددغه ماموریت څخه وړاندې مې د ستار بکس کافي سره دومره علاقه نه درلوده خو د اوونیو په تېرېدو سره د انستانټ(هغه کافي چې تیاره جوړه وي او په پاکټو کې بند وي. ژباړن) کافي د دوام داره څښلو له امله اوس ددغه کافي لومړی تودې پیالې ته په خوند سره په انتظار وم.زه به د خپلې کافي سره په انګړ کې کېناستلم او د غونډیو په سر د د لمر راختلو چې دره به یې رڼا کوله،څخه ډېر خوند اخېست.

زما لپاره د ورځې دغه ځانګړی وخت ډېر بهترین وخت و. د پرون ورځې په پېښو به مې بیا فکر کاوه او د راتلونکې ورځې د فعالیتونو لپاره به مې پلان

جوړاوه.

هروخت به مې ددې لپاره چې څه نوې حيرانتياوې به مې انتظار کوي،فکر کاوه. يو پرمختګ چې ما له ځان سره وڅېړه هغه د هانک هغه پلان چې له مخې يې درې ته زما او ريک ځايناستي افسران د لسو ورځو په بهير کې راتلل، و.

هانک وويل چې کوفر بلاک ډاډه و چې زموږ ورتګ به په هغه پوځي او سياسي ستراتېژيو په بحثونو باندې چې په واشنګټن کې سره څکول کېږي،ربښتينې اغېزه ولرو. مه هم ګډوډ احساسات درلودل. ما غوښتل چې پاتې شم او شمالي ټلواله په داسې حال کې چې د خپلو ليکو څخه خلاصيږي او کابل نيسي،وګورم.

هغه بحث چې د کابل سره د شمالي ټلوالې سره بايد پوره مرسته وشي او کنه، په واشنګټن ډې سي کې زما شتون اړين و ، د سي ای اې د هغه افسر په توګه چا چې د شمالي ټلوالې مشران پېژندل او کولای شول چې حالت په واضح ډول تشريح کړي، ښايي د بم غورځونې د ستراتيژۍ د بدلولو او د شمالي ټلوالې د ځواکونو د خلاصون سبب وګرځي، ورته اړينې سپارښتنې ورکړم. کله چې ممتاز له خوبه پاڅېده او تيار شو، ما هغه د لنډو خو د مهمو خبرو دپاره ګوښه کړ. ما ورته وويل چې د جنرال فهيم په لخوا نوی وړانديز شوی هوايي ډګر د منلو وړ نه دی او د هغه لوی شمېر ستونزې مې ورته په ګوته کړلې. ما له هغه وغوښتل چې له عارف سره اړيکه ونيسي او که چېرې هوا سمه وي نو نن ماښام به ګروپونه اصلي ډګر کې ښکته شي. ممتاز د عارف سره له ليدنې راستون شو او خبر يې راکړ چې عارف به په همغه سهار د ليدنې لپاره دلته راشي.

ممتاز ارام ښکارېده او له همدې له امله زه پوهېدلم چې راتلونکې ليدنه به له شخړې ډکه نه وي. کله چې د انجينر عارف سره ما د جنرال فهيم لخوا د وړانديز شوي ډګر ستونزې وڅېړل،هغه د پخواني ډګر په کارولو هيڅ نيوکه و نه کړه. هغه غوښتل چې يوه مشوره راکړي. هغه وويل چې په هغه ماښام د راتلونکو ځانګړو ځواکونو د ګروپونو له ډلې څخه به يو د جنرال بريالي خان سره يوځای او بل يې دلته په دره کې د بارک په کلي کې ځای په ځای شي.

دغه دواړه سيمې د جنرال فهيم له نيغې ولکې لاندې دي. عارف وويل چې جنرال له تاسې څخه هيله لري چې ټول هغه نور ځانګړو ځواکونو ګروپونه چې تاسې غواړی چې په هېواد کې پراته قوماندانانو ته چې د فهيم له نېغ کنټرول څخه ليرې دي، وليږی. لومړی پنجشېر ته راشی او بيا که شرايط برابر ول دغه ګروپونه په شمال کې د شمالي ټلوالې د نورو قوماندانانو سره يو ځای کېدلو لپاره ولېږل شي.

هغه وويل چې په دې ډول به د شمالي ټلوالې لپاره د قوماندې او کنټرول

لپاره جوړښت ساده کړي او د نورو شمالي ټلوالې اړوند قوماندانانو ته به دا واضح کړي چې په عمومي ډول دغه هڅه د شمالي ټلوالې سره له نږدې همغږۍ شوې او د شمالي ټلوالې د جګپوړو لخوا ورسره په پوره ډول هوکړه شوې ده.

ما هڅه وکړه څو موسکی نه شم. ما دومره فکر کاوه چې فهیم هیڅ غاړه نه ایږدي. ما ورته وویل چې زه له دې چې جنرال غواړي چې په خپلو قوماندانو پوره ولکه ولري مننډوی یم او زه په دې هم پوهېږم چې جنرال هڅه کوي چې د هر ځانګړي قوماندان سره د ځانګړو ځواکونو د هرګروپ د موظف کېدلو په صورت کې تر زیاتې اندازې پورې ګټه ترلاسه کړي خو بیا هم که چېرې هر نوی ګروپ لومړی درې ته الوتنه وکړي او بیا له درې څخه د خپل هدف په لورې ولاړ شي، دا به د راتلونکي ماموریتونو د ترتیب او کنټرول لپاره ډېره بې اغېزې لار وي.

دهندوکش د غرونو په سرالوتنه حتی که هوا ښه هم وي، له خطره خالي نه وي او دا چې ژمی یو نابېره راغی نوموړې هڅه به نوره هم له خطر سره مخامخ کړي. ما ورته وویل چې موږ به د سي ای اې ګروپونه د ازبکستان څخه نیغ په نیغه بېلابېلو قوماندانانو ته د دندې لپاره ورلیږو خو له جنرال فهیم سره به یې مخکې له مخکې همغږي کوو څو هغه له قوماندانانو سره اړیکه ونیسي او ددغه ماموریت په اړه د فهیم هوکړه ډاډ کړي!

دا به دقومندان له خوا دپوښتنې په وخت دفهیم امتیاز ډاډه کړي. داهغه ځواب و چې عارف ورته سترګې په لارو. هغه وویل چې زما ځواب به جنرال فهم ته ورسوي.

دشلټرونوموسسې دزندانیانوپه حالات باندې بیا وغږیدو. دعارف افسر په کابل کې دطالبانو له جګپوړي استخباراتي مامورسره د څوځله لیدلوڅخه وروسته راستون شوی و. ددوی غونډه دعارف له خولې دساده پلان په جوړولوچې په لاندې ډول و،پای ته رسېدلی و. لومړی به دطالبانو یو یا دوه افسران د طالبانوله کرښوتېراوچاریکاروته ورسېږي. هلته به دعارف له کسانوسره لیدنه کوي. وروسته له دې چې هغوی ته څلور ملیونه ډالر انعام وښودل شي. دوی به دطالبانوافسر سره په کابل کې دمخابرې له لارې دپیسودشتون تصدیق ورکوي.

دطالبانوافسر به بیا زندانیان خلاصوي اوهغوی به په دوه موټروکې دکابل څخه دشمال په لورې په نوي سړک باندې چې دطالبانوافسر به په لومړي موټر کې وي څودطالبانوله پاټکونوڅخه په اسانۍ سره تېرشي، لېږدوي. دطالبانودلومړیوکرښوسره نږدې به هغوی عمومي سړک پرېږدي اود وچې ویالې په واسطه به یوه کوچني کلي ته چې دشمالي ټلوالې له لومړیوکرښوسره نږدې و،ورسیږي. دشمالي ټلوالې دلومړیوکرښوسره نږدې هوکړه شوې ځای ته به پلي

ځي اوهلته به دشمالي ټلوالې ځواکونه ددغې ډلې سره ويني. دعارف افسر به هلته شتون ولري څود زندانيانواوطالبانوله جګپوړي افسر سره اړيکه ټينګه کړي. وروسته له دې چې دزندانيانو لېږد ترسره شي، په چاريکاروکې دعارف کسانو سره به دمخابرې له لارې اړيکه ونيول شي اودطالبانود افسر دوه کسانوته به پيسې ورکړل شي. هو زما په فکر دايوساده پلان دی پرته له دې چې په نوي سړک باندې دډېراووړده مزل څخه چې لږ ترلږه دېرش ميله واټن واوڅوک خبر چې له څومره پټکونو او څو زره عرب اوطالب جنګيالوڅخه به ددوی موټرتېرېدل، بيا به په دښته کې چېرې چې انسانان نه وي دغه پنځلس کسيزه ډله چې له دې ډلې څخه اته کسان به ويرول شوي ملکې کسان وي چې دشمالي ټلوالې دپذيرايي ګروپ دپيداکولوهڅه او هغوی سره به بيا اړيکه نيسي!هو فکر کوم دايوساده پلان دی! ما عارف ته وويل چې زه د زندانيانو د کابل څخه دشمال په لورې د لېږدولود څرنګوالي په اړه اضافه مالومات غواړم. دطالبانوافسر دپاټکونوڅخه دتېرېدلولپاره څه ډاډګېرنه او ويسا لري په ځانګړي ډول که ننګوونکې وي. واشنګټن خو واضح دغه پلان چې موړاوس واورېد،نه مني. ريک د ډګروال مل هولانډ سره دمخابرې له لارې اړيکه ونيوه څوپه همغه شپه دځانګړو ځواکونو د ګروپونونه ايستنه تصديق کړي. دښکته کېدلو ډګر ته دهغوی رارسېدل به دنيمې شپې څخه لږوروسته وي او ريک وويل چې هغه به په هوايي ډګر کې موجود وي څواو ډي اې-585 ګروپ اوډګرمن اېچ اود SOCCE (د ځانګړو عملياتو د کنټرول او قوماندې عناصر) ګروپ ته سټرې مه شې اوښه راغلاست ووايي. مل هولنډ ريک ته وويل چې د ځانګړو عملياتو د کنټرول او قوماندې د غړو ګروپ سره به د ډلټا ځواک (يو ډول ځنګړی ځواک. ژباړن) دری سرتېري هم يو ځای وي څو د شلټر نو موسسې د زندانيانو د خلاصون لپاره د ژغورنې شونی پلان جوړ کړي. ريک بيا مخابره زموږ پيلوټانو ته ورکړه او هغوی د ننه ايستنې د سر پيلوټ سره ډګر ته د رسېدلواود ښې لارې د مشورې لپاره لس دقيقې خبرې وکړې. ريک ماسپښين په درې بجې خواجه بهاوالدين ته ولاړ. موږ ټول انتظار و او لاسونو مو د ښې هـوا د دوام په خاطر د دعا لپاره پورته کړل.

## اوه دېرشم څپرکی

پاتې نور ماښام هم په ارام سره تېر شو. د ماښام د ډوډی خوړلو وروسته موږ ټول د دفتر ساحې ته ولاړو څو راغلي ليکونه ولولو . ما هانک ته چې د تروريزم په وړاندې مرکز په کار ځای کې و، ټليفون وکړ. هغه وويل چې رسنۍ هغه تبصرې چې ګواکې د طالبانو په وړاندې د امريکې د بمباری ستراتيژي ناکامه ده،

پیل کړي دي. د کابل سره د جبهې څخه رپوټونه هم د شمالي ټلوالې د پوځي قوماندانانو څخه هم دې ته ورته د ناهیلۍ تبصرې خپروي. هغه وویل چې که څه هم چې د پي سي (د مشرانو کمېټۍ) کمېټۍ ددغه موضوع په سر سره بیله شوې ده، د ملي امنیت شورا غواړي چې په افغانستان کې د امریکایي ځواکونو شمېر زیات کړي.

اصلي ستونزه د امریکې د پوځ له خوا د ځانګړو ځواکونو په لیږلو کې کمزوری پرمختګ و. هانک وویل چې که چېری د ځانګړو ځواکونو دوه ګروپونه چې د ماموریت لپاره انتخاب شوي، لیږل په بریل سره ترسره شول،نو د امریکې پوځ به په سیمه کې یوازې د ځانګړو ځواکونو دوه ګروپونه اویوه ډله د ځانګړو عملیاتو د قوماندې او کنټرول غړي په سیمه کې ولري.

د پوځ په ستراتیژی کې د شمالی ټلوالې سره د کابل د معاملې د څرنګوالي د بنې ورځایول اوس هم ربړینه موضوع ده. هانک له هغوی سره زما ناامیدي هم شریکه کړې وه خو ما پرته له دې چې موضوع ع ته نوره ټیله هم ورکړم، څو پرېکړه اخستونکې په سیمه کې په حالاتو باندې په پوره ډول پوه کړو نور هیڅ هم له وسه پوره نه و.

کله چې د ګروپ غړي خوب ته ولاړ، ما هم ځان ته د پیسو پربکسونو نیالي جوړه او پرې وغزیدم . د ځانګړو ځواکونو د ننه ایستنې ماموریت د پایلې لپاره د ریک له خوا ټلیفون ته په انتظار وم. پاپي تر اوسه هم د راتلونکو پیغامونو په ترلاسه کولو بوخت و. د پاپي له خوا ځینې وخت د ګاز د خلاصولو څخه پرته نوره کراره کراري وه. ما هم هلته سترګې پټې کړې او د لسو ملیونو ډالرو پر سر پروت وم. د سهار په تقریبا لس نیمو بجو باندې په مخابرې ټکار(لکه لرګي چې سوځي. ژباړن) وکړ او د ریک غږ پاک او روڼ راغی. پاپي له توشکې په بیړه راپورته شو او ځواب یې ورکړ.

د ګروپونو د ننه ایستنې ماموریت بې له ستونزې بشپړ شوی و. دواړه ګروپونه په خوندي ډول ښکته او اوسمهال د جنرال بریالي خان سره مېلمانه وو. ډګروال ایچ او(دشخص نوم. ژباړن)SOCCE یا دځانګړوځواکونودقوماندې اوکنټرول غړو او د ډلټا ځواک درې سرتېري دریک اوزموږپیلوټانوسره دښکته کېدلوډګر ترځنګ په کوچني کورکې ویده شول. د اې ګروپ یا او ډي اې-585 لږوروسته په همغه سهارچېرې چې جنرال بریالي غوښتل ، دلومړی کرښې سره دکار ترسه کولو په موخه وخوځېدل. موږددوی سره د ایچ سي ای اې یوه ارتباطي افسرته اړتیا درلوده اوبراډ ددغه کار لپاره بهترین انتخاب و. زه دفتر ته دسهارد اوو بجوڅخه لږ وروسته راغلم څودسهار پیغامونه ولولم او لیکونو ته یې ځواب ورکړم.

پاپي دبگرام هوايي اډې ته دستان اومېوري په اړيکيزو(ارتباتي) توکو باندې دکارکولو لپاره روان و. دوی دمالوماتودلېږلوسره ستونزې درلودل. پاپي غوښتل چې دهغوی (سيستم)کې ځينې برخې بدلې کړي.

کريس هم غوښتل دهغه سره يوځای لاړشي ځودستان سره دځارګره مالوماتودغوندولوپه پروسه باندې چې دجنرال بسم الله خان له کسانو سره و،مشوره اوپه همغه ماسپښن دبگرام څخه دراګرځېدنې پرمهال په ګلبهارکې له پروفيسورسياف سره غونډه وکړي. کريس اوس هم کوښښ کاوه چې پروفيسورسياف وهڅوي چې داسامه بن لادن يوجګپوړی چارواکی يوداسې ځای ته چې هغه په کې يا ژوندی ونيول شي اويا ووژل شي، خوښ کړي. زما په باوردايو ناهيلی ماموريت وخودکريس زياتې علاقې له امله مې هغه وستايله. ده اوپاپي بارک کلي ته دبېرته راتګ وخت دماښام شپږبجې ټاکلی و. په لس نيمو بجودخواجه بها ودين څخه چورلکه راوګرځېده. موږدګروال اېچ اودهغه کسان په هغه کورکې چې د او ډي اې-555 ګروپ له خوا کارول کېده، ځای په ځای کړل.

او ډي اې – 585 ګروپ هيله درلوده چې ماسپښين مهال به په کار پيل وکړي. داپه زړه پورې خبر وڅکه چې موږهېله مند وچې ډګروال اېچ به نسبت او ډي اې-555 ته زياتوهوايي بريدونودغوښتنې توان ولري. دامريکې ددولت په چوکاټ کې د(ښه)تلګرافي پيغامونه دسمدستي توب په مطابق په نښه کېږي چې عادي، لومړيتوب ورکوونکې. ژراوپړک (ډېرعاجل. ژباړن)په ډول وي چې ترلاسه کوونکې افسرته اجازه ورکوي ځوعاجل تلګراف ته به لومړيتوب ورکولوکې ژرپرېکړه وکړي. دپړکې دود درښتني عاجل وخت دپاره کارول کېږي. زما په سي ای اې کې تقريبا دوه دېرشوکلونوپه دوره کې مې دلسو تلګرافونوڅخه زيات نه دي ليدلي چې دپړکې په واسطه نښان شوي وي. دغرمې څخه لږوراندې موږداسلام اباد څخه تلګراف چې په پړکه نښان شوی و، ترلاسه کړاوپکې ليکلي وچې دافغان مجاهدينوپخوانی قومندان عبدالحق اودهغه دهمکارانويوګروپ دجلال اباد څخه شمال لورې ته دڅوميله په واټن کې دطالبانوله خوا ځارل شوي دي. ظاهراً په همغه سهار دسپيده چاود په وخت عبدالحق اودهغه کوچنی ډلې دپېښور له لارې افغانستان ته راننوتلې وه اودښار شمال اوختيځ ته چېرې چې هغوی هيله لرله چې دعملياتومرکزتاسيس کړي. اسلام اباد له دې چې عبدالحق په پېښور کې و،خبر درلود خوددغه عملياتوپه پلان کولوکې يې لاس درلود.

عبدالحق ددوو افغاني ـ امريکايي مشهورو سوداګرو له خوا چې سره ورونه واوهغوی باور درلود چې دپخواني قومندان په توګه عبدالحق کولای شي چې دطالبانوپه وړاندې په مبارزه کې اغېزمن رول ولري، ښه باور وخودا دوه ورونوپه

افغانستان کې دسیاسي اوپوځي حالاتوڅخه په ډاروونکې توګه دنا پوهی سره سره له عبدالحق څخه ملاتړاوهغه یې خپلوهیلوته وهڅاوه. دغه دوه ورونه چې په پېښورکې په هوټل کې په ارامه پراته ول، دعبدالحق سره دمخابرې له لارې اړیکه درلوده. دوی اسلام اباد ته په ډار سره ټلیفون کړی اوله هغه یې دعبدالحق اودهغه کسانودژغورلولپاره څوک چې دمحاصره کېدلواودطالبانوله خوا دنیول کېدلوله خطرسره مخامخ و. دامریکې دپوځ دمرستې غوښتنه کړې وه. دځو اونیولپاره چې نا ارامي هم په کې زیاتېدله، ما د دې لپاره دامریکې دمتحده ایالاتومرستې ډاډه کړم،د دغه دوه ورونو هلې ځلې څارلې. ما عبدالحق دجهاد له وختونوښه پیژانده. دجګړې په وخت کې هغه یوفعال اواغېزمن قومندان وچې دکابل په ختیځ اوسوېل کې یې ځواکونه اداره کول. وروسته له دې چې هغه پرماین باندې دختلوله امله یوپښه له لاسه ورکړله، دامریکې دولت هغه متحده ایالاتو ته راوست اوهلته یې یوه باکیفیته مصنوعي پښه ترلاسه کړله په هر ترتیب، وروسته له دې چې هغه افغانستان ته راوګرځېد، دجګړې په ډګر باندې ځان دخطرسره دمخامخ کولوسره یې لېوالتیا لږه شوه اوپرځای یې په پېښورکې دمطبوعاتوسره لوبې پیل کړې. هغه یوفصیحه وینا وال شواومطبوعاتوله هغه سره مینه پیداشوه.

په سي ای اې کې دننه هغه دهالي ووډ عبدالحق په نوم شهرت وموند اوله هغه ځایه یې په خوله جګړه پیل کړله. د 1996 څخه تر 1992 په بهیر کې دمجاهدینوله خوا درامنځ ته شوي حکومت کې یې هیڅ رول ونه لوباوه نوځکه ما فکرکاوه چې هغه هلې ځلې چې له هغه څخه یوداسې سیاسي شخصیت جوړکړي چې وکولای شي دطالبانوحکومت وننګوي، هسې دوخت ضایع کول وو.

عبدالحق داسې قبیلوي اوقومي مرستې مرکز لکه حامد کرزي چې دکندهار په شمال په ترینکوټ کې ځواکمن قومي ملاتړ ترلاسه کړ، نه درلوده.

ما د دې وړاندوینه چې که چېرې عبدالحق د دغه ډول قومي مرستې دمرکز دجوړېدلوپرته دجلال اباد سیمې ته وردننه شي هغه به دطالبانوله خوا ووژل شي،کړې وه!! اوس دفلم دغه کېسه په یوه وژونکي حقیقت بدله شوې وه. دقرارګاه څخه دځودقیقوپه بهیر کې یوتلګراف راغی. دپېښورپه سیمه باندې داړونکې څناور الوتکه (بې پیلوټه الوتکه چې پرمختللي وسله باندې مجهزه وي. ژباړن) چې ددوزخ اورپه مېزایلوباندې سمبال وه په سیمه کې الوتنې کولې. د پېښور څخه د جلالاباد په لورې د عبدالحق او د هغه د ګروپ د پیداکولو او په سیمه کې د حالاتو د ډاډه کولو لپاره له پولې څخه ورواړول شوه. یو ساعت وروسته د قرارګاه څخه یو تلګراف راغی او په کې لیکل شوي و چې پرېډیټر الوتکې په ربښتیا هم عبدالحق او د هغه ګروپ چې پوره کلابند شوي وو، پیداکړي

ول. د ترويزم په وړاندې رياست خبر ترلاسه کړی و چې پرېډيټر الوتکې د طالبانو ځو سرف ډوله جيپونو په ضد توغندي توغولي وو او د هغوی په له منځه وړلو کې بريالۍ شوې وه خو دغه کار هم طالبان د هغوی په ځارلو کې ځنډمن نه کړل.

داسې ښکارېدله چې د طالبانو لخوا د عبدالحق نيول يو حتمي حقيقت و. د ورځې په پای کې د انجينر عارف د مخابرې د کنټرول ګروپ د طالبانو ترمنځ په مخابرو کې د خبرو کولو پر مهال غوږ نيولی و او خبر شول چې عبدالحق او د هغه شل کسيزه ګروپ د طالبانو لخوا ونيول شو. په سيمه کې د طالبانو مسول افسر په کابل کې د مشرانو څخه د زندانيانو سره د معاملې د څرنګوالې د امر غوښتنه کړې وه.

په پای کې عبدالحق او د هغه يو خپل بايد محاکمه او بيا د ويشتونکې ډلګی له خوا وژل شوي وای. دهغه د ګروپ پاتې غړي بايد د همغه ورځې په پای کې راځوړند شوي وای. سيمه ييزه طالبانو ته ويل شوي و چې دا ټول کسان د وژلو وړاندې بايد سخت شکنجه شي. دا پرېکړه په همغه ماسپښين ترسره شوله. دا هم د طالبانو د سختې بې رحمۍ يوه بله يادونه وه؟[1]

د عبدالحق د مړينې له امله په شمالي ټلواله باندې منفي اغېزه خپره شوله. د مطبوعاتو په واسطه د ناسمو رپوټونو چې ګواکې امريکايي چورلکو د عبدالحق د ژغورنې لپاره پوره هڅه ونه کړه ،دا ډول ګونګوسې نورې هم زياتې کړې او زموږ شمالي ټلوالې ته د عبدالحق راننه ايستلو له امله د سي ای اې د لخوا د يو اړخيزه عملياتو يوه بله بيلګه وبلله.

وروسته انجينر عارف وويل چې که چېرې موږ دغه هڅه د هغوی سره شريکه کړې وای هغه کولا ی شول چې په سيمه کې د شمالي ټلوالې طرفداره قوماندان د عبدالحق او د هغه ګروپ ته ورپېژندلای وای. ما له دې امله چې عارف ډېر مودب خو څه يې نه اورېدل،ونه شو کولای چې د سي ای اې لاس لرل رد کړم.

دغه هڅه د سي ای اې لخوا د شمالي ټلوالې له پامه غورځولو او په خپل سر د تېروتنو د رامنځ ته کول يو بل روڼ مثال و. په پنځه نيمو بجو مې د هانک سره خبرې وکړې او د عبدالحق په مرګ باندې هم وغږېدلو ، په دې چې بې تجربه کسان په استخباراتي فعاليتونو کې ځانونه ښکېل کړي څه پېښېږي، محاوره پای ته ورسوله. هغه دوه افغاني الاصله امريکايان چې د ادارې له ډلې سره يې

[1] د ابوغريب په زندان کې د جنګياليو سره د شوي ظلم او سپکاوي په پرتله د عبدالحق وژلو ته بې رحمي ويل مناسب نه ده، د جګړې په مهال د مخالف لوري ګېله کول ماشومانه باور دی ژباړن

نړدې او ځواکمنه اړیکه درلوده د دې لامل شول چې ځانونو ته د عبدالحق نامناسبه پاملرنه ورواړوي چې بدبختانه د هغه ناسم گمان چې گواکې دی په افغاني کېسې کې لاتراوسه یو لوبغاړی دی،نور هم تغذیه کړ. ددغه کار پایلې ویرجنې او غمجنې وې.

هانک د شمالي ټلوالې سره د معاملې د څرنگوالی په سر د کرنلارې هغه مباحثې ته چې په واشنگټن کې یې دوام درلود، اشاره وکړله. موږ د افسرانو یوه ډله چې د الفا او د براوو گروپونو سره د گروپونو د بشپړیدلو او ځواکمن کولو،په سویل کې د کرزي سره د یوځای کېدلو په خاطر د یوه گروپ د تیارولو لپاره،دندې ته د تگ لپاره چمتو درلوده.

کرزي ځان هغه یوازینی پښتون چې په سویل کې د ویرووونکې دندې لپاره چې د طالبانو په وړاندې د مقاومت رامنځ ته کول و، لاسونه راونغاړل. سره له دې چې هغه یو نظامي قوماندان نه و، کرزی یو غوره سیاسي رهبر و او هغه څو کاله وړاندې د طالبانو لخوا په کوټه کې د هغه د مړینې وروسته د هغه د رهبری مېراث واخېست. هانک مشوره راکړه څو په شمال کې په حالاتو باندې یو بل سیمه ییزه او د حلاتو د ارزښت ټاکنې یو بل رپوټ ولیکم. هغه وویل چې د سي ای اې او زموږ د پرمختگ له امله ولس مشر خوښ دی او د امریکې د پوځ د بمباري د ستراتیژي د بدلېدا په صورت کې په شمال کې د حالاتو د بدلېدا او له فکره ډک وړاندیز به په سپینه ماڼۍ کې د موضوعاتو په بدلولو کې مرسته وکړي.

ما ورسره په همغه ماښام د رپوټ د لیکلو وعده وکړه څو راتلونکی سهار د هانک د وظیفې سره سم یې هغه په دفتر کې تیار ولري. د هانک سره د خبرو کړلو وروسته د ټلیفون ترمخې کېناستلو او د امریکې د حکومت او د هغه په جگپوړو په هغه ناپوهي چې نه شي کولای دلته په افغانستان کې اساسي نظامي حالات درک کړي، فکر کاوه.

ښایي زه په هغه کچه د هغه څه په اړه چې زما په باور ساده و، هومره روڼ او واضح خبر نه وم.د طالبانو د نظامي ځواک زیاته برخه او د هغوی د بهرني ملگري گروپونه د القاعده په گډون د احمد شاه مسعود د شمالي ټلوالې په وړاندې دلته راغونډ شوي ول. د لته په شمال او په سویل کې د طالبانو د کرښوترشا په اسانتیاوو باندې د بمبارۍ کولو د طالبانو په پوځې ځواک باندې د جگړې کولو په توان او خوښۍ باندې ډېر لږ او حتی هیڅ اغېز نه درلود.

کوم معمولي پوځ شتون نه درلود او واضح زموږ بمباري اغېزناکه نه وه. دا باید په ډانگ پېیلی حقیقت وي چې دلته یوازینی پوځي ځواک چې غواړي او کولای شي د طالبانو په وړاندې اغېزناکه جگړه وکړي، هغه د مسعود شمالي

ټلواله ده خو بیا هم د متحده ایالاتو د پوځ د مرستې او د درنې بمبارۍ پرته هغوی دومره ځواکمن نه و چې د طالبانو کرښې ماتې کړي. موږ باید د بمبارۍ د کرنلارې ته بدلون ورکړی وای او د کابل او دتخار سره په لومړیو کرښو باندې مو متمرکزه کړې وای. په مزار کې د دوستم د ځواکونو لخوا بری به په شمال کې د طالبانو مقاومت له منځه یونسي. دغه هدف ته د ورسېدلو اصلي کیلي د جنرال فهیم د ځواکونو سره وه.

تر څو چې د جنرال فهیم ځواکونه ساکن او بې اغېزې وي ترهغې به طالبان د هېواد په کچه واکمن وي. د کابل په لورې کرښو ماتې،د لویدیځ او کندوز په خوا د جنرال بریالي خان اوپه مزار شریف کې د دوستم د ځواکونو برې به په سوېل کې د طالبانو په رهبري باندې د پام وړ اغېزه ولري. په سوېل کې ناخوښ قومي مشران به د طالبانو په وړاندې د وسلو اخیستلو ته وهڅوي. په سوېل کې جګړه لږه ډاډمنه او ښايي د څو میاشتو لپاره وغزول شي خو په شمال کې د طالبانو د ځواکونو ماتې به په سویل کې د طالبانو په وړاندې بریا حتمي کړي.

ځینې وخت به حیران شوم چې که چېري په واشنګټن کې وای په ځانګړی ډول په روانوخبرو اترو کې ښايي ددغه ټکو په راوړلو کې له اوسه ډېر اغېزمن نه وای.

دلته په پنجشیر کې داسې ښکارېدله لکه زه چې په تور او ژور سوري کې ناړې وهم. ناوخت ماښام مې د ارزښت ټاکنې رپوټ ولیکه او خپل فکر مې په هغه څه چې ورته مې د یوه لنډ،موجز او منطقي وړاندیز فکر کاوه، راونغوښت. د نیمې شپې څخه لږ وړاندې مې رپوټ وروليږه. ډ ماښام په اووه بجې عارف راغی څو ما اوریک د ډاکټر عبدالله سره د غونډې لپاره ولېږي.

د بې بې سي پر ټلویزیون مې ډاکټر عبدالله ډېر لیده او هغه د شمالي ټلوالې لپاره ځان یو بااستدلاله او فصیحه ویناوال ثبوت کړ. په انګلیسي ژبه د غه پوره مهارت او د ښکلي لویدځ ډوله لباس د تلویزیون د خبریالانو په منځ کې چې د لومړی کرښې څخه لویه شمېره دیخوا راوښتل،یو مشهور شخصیت وګرځاوه.

د عبدالله سره زموږ لیدنه بیا هم په استنه کې د هغه په کوچنی بانډه کې ترسره شوله. په زړه پورې لیدنه وه او په دره کې ددومره لنډ وخت چې ما له هغه سره لیدلې او کتلي و، ما هغه ډېر خوښ شو. ډاکټر عبدالله په همغه شپه ډېر ارام او خوښ و. هغه له کېنې پرته د بهرنیو چارو وزارت هغه پرېکړه چې امریکې ته یې دهغه د لیدنې څخه ملاتړ ونکړ،په بهرنیو چارو وزارت باندې د ناکامی پړه ورواچوله او ویې ویل چې یوازې وخت به دا څرګنده کړی چې د بهرنیو چارو وزارت دغه پرېکړه یوه سهوه وه.

موږ د کابل په اړه د پریکړې لپاره د اوسنی هڅې په اړه هم خبرې اترې

وکړې.هغه وويل چې په واشنګټن کې د ځينو کړيو په شمالي ټلواله باندې د بې باورۍ له امله هم خبر لري. ما ډاکټر عبدالله او عارف ته وويل چې زما او ريک او د ګروپ ځينو نورو غړو ته ځايناستي په نږدې وخت کې راروان دي . څو زه هلته په روان کړنلارې جوړونکي بحث کې ګډون وکړم. عارف له دغه پريکړې سره خوښ نه و خو عبدالله وويل چې د شمالي ټلوالې څخه په واشنګټن کې زما له شتون څخه هرکلی کوي. ددغه کار د ترسره کېدلو لپاره تر اوسه کوم ثابت پلان نه و رامنځ ته شوی او په پای کې ښايي دا کار هيڅ ترسره هم نه شي.

څو ک خبر و ښايي کړنلاره او ستراتژي د منطق د ځواکمنيدلو او دلته په حقيقتونو باندې د پوهېدلو په صورت کې بدلون ومومي ، ښايي موږ ټول د يوې اوونۍ په موده کې کابل ته ورسيږو. انشاالله مو ورسره وويلې! کريس او پاپي زموږ تر راتګ وړاندې رارسېدلي وو. کريس زما او ريک دپاره يو کېسی چې د ځانګړو ځواکونولخوا ورته ويل شوې وه، درلوده.دوه ورځې وړاندې د تنکی غرمې پر مهال د قوماندې برج د طالبانو لخوا د ۴۱. ۵ ملي متري توپک په واسطه د مستقيمو ډزو لاندې راغی. د بدلون او حيرانتيا لپاره داخل د هغوی ننبه برابره وه او ګولۍ د دېوال په بهرنۍ برخه او ځينې يې د کړکۍ څخه دننه راننوتلې.

له مېوري څخه پرته نور ټول په مځکه راپرېوتل. ميوري چې په مېز يې خپلې پښې ايښې او خپل چاقو يې تېره کاوه. يو چا پرې غږ وکړ چې ځان پټ کړي. هغه موسکی شو ويې ويل:د طالبانو ډزې خو ډېرې سپېرنې او بې ننښې وې. که چېرې هغوی ما په دومره واټن کې په ننښه کولای شي، هغوی د دې مستحق دي چې ما ووژني. هغه په اوسپنه باندې د چاقو تېره کولو او تيغ کشولو راکشولو ته په داسې حال کې چې مرمېو د کانکرېټ ټوټې او دوړې راپورته کولې،دوام ورکړ. ما او ريک دغه کيسی ته په ډار غوږ نيولی و. ما فکر وکړ چې مېوري بايد دلته راولېږدوو. زړه ورتوب خو يو ډول وي خو داخو بېخي بل څه وو! ما له ريک وغوښتل چې مېوري ته ټليفون وکړي او هغه ته د بيرته راتګ امر ورکړي . ما د ارزښت ټاکنې رپوټ پر ليکنه پيل وکړ.

## پـنځمه بـرخه

## سوېـل

## د کـنـدهـار پـه شـمـال کـې جګـړه

## اتـه دېـرشم څـپـرکـی

د جيپونو او پيک اپ موټرو وړوکی کاروان په هغه کوچني سړک چې د موټرو ټايرونو پکې لښتي او ويالې جوړې کړې وې او د يوې کوچنۍ غونډۍ په سر د

کلاگانو یوې ډلې ته چې دېوالونه یې له خټو جوړ شوي وو، ورروان و. کریګ د ایکو ګروپ چې په سویلي افغانستان کې د سي ای اې لومړني عملیاتي ګروپ و، مشر و.

هغه د کاروان په لومړي موټر کې و او له ځان سره یې لنډی ټوپک درلود. فرانک چې د ځانګړو فعالیتونو پخوانی استخباراتي افسر و، د کرګ د مرستیال په توګه دنده ترسره کوله او له ځان سره په کرار ډول په داسې حال کې چې په سړک کې یې د لوړو او ژورو او بربنډو تیږو څخه موټر خطا کاوه، ښکنځلې کولې.

کریګ فرانک ته وروکتل ، موسکی شو ویې ویل: فرانک که چېرې موټر په کراره ونه چلوې،هرې لوړې او ژورې ته د ښکنځلو کړلو له امله به د ښکنځلو کلمې هم درخلاصې شي.

فرانک و خندل او بیا یې د موټر شترینګ کڅ او ښی لورې ته په زوره سره تاو راتاو کړ خو موټر د خاورو په سړک کې د راوتلې تیږې څخه وژغوري خو ناکام شو. هغه په سیټ کې پورته او سر یې په چت باندې ولګېدوسره سم وویل: نه مشره ځکه چې که چېرې په انګلیسي ژبه کې د ښکنځلو کلمې راخلاصې شي نو بیا روسي ژبې ته اوښتی شم. روسي داسې یوه ژبه ده چې سړی په رښتیا هم په کې ښکنځلې کولی شي.

کریګ وخندل او سر یې وښوراوه. دا سړک یا هغه څه چې د سړک په نوم یادیږي، ملا هم ښکنځلو او لعنت ویلو ته اړ کولا شي! کریګ دکورونو هغه ډلې ته چې ددوی په مخ کې و،وروکتل .فکر یې هغه ملاقات ته چې په راتلونکو څو دقیقو کې یې درلود، ورواوښت.

حامد کرزی یو نا اشنا شخصیت درلود. منځنی ونه او ډګر بدن درلود. هروخت به یې ښایسته جامې په تن کولې حتی په بیدیا کې هم! هغه رښتینی ښاغلی او ښه سړی و. هغه ډنګربدن ، لنډه وهل شوې او خړ رنګه ږیرې د پوهنتون د پروفیسور په ډول ښکاروه نه یو افغان قومی مشر چې د طالبان په وړاندې یې خلک راپورته کول.

سربیره پردې هغه د چاخبره کرزی د اوسپنې سخت منځ و. سرتمبه زړور و حتی تر بې پروایی پورې زړور و! په سویل کې د پښتنو په منځ کې د طالبانو په وړاندې د وسلوال مقاومت په رامنځ ته کولو کې کرزی یوازینې پښتون رهبر و چې د امریکې دولت سره یې په خپله خوښه مرستې ته راودانګل!

هغه د سپټمبر د یوولسمې څخه څو ورځې وروسته په اسلام اباد کې د امریکې په سفارت کې د متحده ایالاتو دولتي چارواکو او د سي ای اې افسرانو سره لیدلي و. کرزی یو مشهور شخصیت و. هغه د روسانو په وړاندې د جهاد پرمهال یو فعال کس و او د خپل پلار سره چې په کندهار کې یو مشهور پښتون

قومي رهبر و، د سیاسي مشاور په توګه کار کړی و. د ۱۹۹۰ کال په وروستیو کې د طالبانو په واسطه د حامد کرزي د پلار د وژنې له امله د کرزي کورنۍ مخالفت د طالبانو په وړاندې سخت او ښکاره شو.

حامد کرزي د خپل پلار د مقام د ساتلو لپاره ګام واخېست. د هغه خاموش وقار، په انګلیسي ژبه پوره حاکمیت او سیاسي مهارت ، نوموړی پاکستان ته د تښتېدلې افغاني ټولنې په منځ کې په یوه سیاسي څېره مشهور کړ.

په پاکستان کې د لومړیو لیدنو پرمهال کرزي افغانستان ته په بیا راتګ ټینګار وکړ . څو د کندهار په شمال په خپل قومي ټاټوبې ترینکوټ کې د طالبانو په وړاندې وسلوال ګروپونه رامنځ ته کړي. کرزي ته د سي ای اې وړاندیز دا و چې تر هغې چې د امریکې حکومت په سیمه کې توکي او شته ځای په ځای کړي، څو وکولای شي د کرزي او دهغه ملګرو لپاره د توکیو، وسلې، مهماتو او جګړې لپاره هوایي مرسته برابر کړي، انتظار وباسي. کرزي انتظار ونه کړ.

د سویلي لویدځ پاکستان، کوېټې څخه چې یوازې دری کسان ورسره وو،لومړی د بار وړونکې موټر په شا او بیا د موټر سایکل په واسطه د طالبانو د ولکې لاندې سیمې څخه تېر او د ترینکوټ شاوخوا زیړو غرونو ته یې ځان ورساوه.

زیات شمېر قومي مشران د هغه سره یوځای شول خو د وسلې او د مهماتو نشتوالي او همدارنګه د یوه داسې مېکانیزم نشتوالي چې له مخې یې له بهر څخه مرسته ترلاسه کړې وای، د کرزي هڅې له پیل څخه دخنډونه سره مخامخ کړې وې.

په سیمه کې د طالبانو همکارانو په کندهار کې د هغوی مشران ژر خبر کړل او د هغوی غبرګون هم ګړندی او څرګند و. د کرزي او د هغه د همکارانو د پیداکولو او له منځه وړلو لپاره ستر نظامي عملیات پیل شول. په کمه وسله مجهز، خواره واره او په پراخه ډول وېشل شویو همکارانو له امله کرزی له سیمې څخه منډې ته اړ شو. کرزي او د هغه کوچنی ګروپ چې د ترینکوټ په لیرې پرتو غرونو کې کلابند ول، پاکستان ته په خوځېدو شول. د شپې او ورځې د ګرځېدلو په بهیر کې په پوله باندې د تېرېدلو لار پیداکړله. کرزي هم د عبدالحق د تقدیر څخه ایله بیله ځان خلاص کړ.

کریګ د لومړی ځل لپاره د اکتوبر په وروستیو کې په کوټه کې د کرزی سره وروسته له دې چې سویل افغانستان ته یې د ایکو ګروپ د رهبري کول په غاړه واخیستل،ولیدل.

ایکو ګروپ د کرزي سره د کار کړلو او په سیمه کې د هغه د راګرځېدلو لپاره د مرستې د مرکز جوړولو او همدارنګه د هغه همکارانو ته د هوا له لارې د وسلې

غورځولو د چمتو کولو دنده په غاړه وه.
کریګ او کرزي سمدستي په کار باندې پیل وکړ. کریګ د ځانګړو فعالیتونو د فرقې یو باتجربه افسر دی چې د سي ای اې سره یې د نړۍ په کچه په ځانګړو عملیاتو کې تقریبا شل کاله تجربه لري. هغه یو عادي انسان نه دی!
شپږ فوټه قد، ږنګر او سخت ځان لري. کریګ ترټولو ښه ساحوي افسر دی. فرانک د خاورو له سړک څخه د یوې ډبرینې او شډلې ساحې په لورې چې د ختو د کورونو په خوا غزیدلی و، موټر وروګرځاوه او نور کاروان هم دده په څار روان و.کریګ په داسې حال کې چې په سړک کې د لوړو او ژور د شتو له کبله ښکته او پورته غورځېده، ښې لورې ته ځیر ځیر وروکتل. هغه د کرزي د جنګیالو یو ګروپ چې د او ډي اې -۵۷۴ ګروپ څخه را چاپیر و، تر سترګو شو.
څو موټر ولاړ وو اود سهار د اکملاتو له ډلې څخه صندوقونه د موټرو دننه او شا تـه دلـی ول. کریـګ ولیـدل چـې مخـابروي تـوکي یېچمتـو ول او د ځـانګړو ځواکونـو ځینـې سـرتېري ښـکارېدل چـې د مخـابرې لـه لارې (د مخـابرې شـفر یـې ټکساس ۱۲ و. لیکوال) د طالبانو د هغه موقیعتونو په وړاندې چې په تنګي کې د لـوړو ونـو د یـوه اورده کتـار سـره چـې تقریبـا زر متـره واټـن یـې درلـود، د هـوایي بریدونو غوښتنه کوله. ګروپ د تیرو څخه جوړې شوې ټیټه کلا کې ځای په ځای شوی و او د هغه ځای څخه چې کریګ د کرزي سره په کې لیدنه کوله، تقریبا ۲۵۰ متره لیرې واټن درلود.
کله چې کریګ د سرف موټر څخه ښکته شو. دټکساس ۱۲اګروپ دمشرپه لورې لاس وښـوراوه اوهغـه هـم ورتـه لاس وښـوراوه. ګریـګ فرانـک تـه وویل:داسـې ښکاري چې زمورډځانګړوځواکونودوستانوهغه توکي چې تېره شپه راغلي،خلاص کړي دي.زموږمجاهدین هلته ولېږه څو خپله برخه اکمالات ترې رابارکړي اوبیا هلته دکرزي ځای ته راشي. فرانک موسکی شو، دښې ادارې لپاره خوښـي درتـه غـواړم! دسټار بکس کـافي خـوهرومرو بایـد پـه اکمالاتوکې وي. ژامـي مـاتوونکې ګـروپ دسټاربکس کافي دراغوښتلوپرېکړه بې ځایه نه وه. هېله مند یم چې ټکساس ۱۲اګروپ دازېرى چې کافي په اکمالاتوکې نه ده راغلي، رانه کړي. فرانک د نورو موټرو په لورې وروګرځېد او خړ او نصواري رنګه دوړې چې دوی جوړې کړې وې،په داسې حال کې چې دګروپ په لورې ور روان و، وخوځېدلې. فرانک هم له ځان سره وژومېده اوګرېک داسې یوڅه ترغوږونوشول که چېرې کافي ونه لري نوله شور اوجنجال ډکه ورځ به وي. ګرېک په داسې حال کې چې فرانک ځوان افغان ته چې دګروپ دژباړن په توګه یې کارکاوه، خبرې کولې، ور وکتل. بیا راوګرځېد اوپه راتلونکې لیدنه بانـدې یـې فکر وکړ. هغه دبل مـوټر غړوواورېـده اوددوی په لورې خوځېده،اومخ یې وراړوه. هغه دکرزي ابې رنګه سرف موټرچې ددوی په

خوا تېز روان و،دلکی په ځار یې دوړې روانې وې،ولیده. گرېک د ودانۍ لویې دروازې ته ور روان شو. دموټر تررسېدااانتظارشو. موټر هم رانږدې کېده له ځان سره یې موسکا کوله .دکرزي سره دلیدنې لپاره خوښ و. هغه دکرزي سره کارکړلوځخه دومره خوښ اودهغه یې دومره درناوی وکړچې تردې وړاندې یې له هیچا سره د کار کړلو په مهال په دې کچه درناوی په یاد هم نه و.

په کوټه کې یوه ارامه سوفه (یوډول عصري چوکۍ. ژباړن)اویوه بله چوکۍ چې یوسپرینگ هم ترې راوتلی و،له توکو ډکه وه .یوکوچنی د لرگي مېز او ورسره څودانې نورې چوکۍ اویوچپرکټ چې چوکاټ یې له لرگي جوړاو په پلن پړي پیرل شوي رسی دتوشکې په توگه کارول کېده. کړکۍ ټولې خالي ځلورکونجه مربع وې حتی دکړکیولرگین چوکاټ یې هم لوټ شوې وې. دا دسیمې هغه خلک وچې دبې وزلۍ ښکار شوي ول. په سوفه باندې کېناستل. دگرم چای پلاستیکې پیالې یې ددوی ترمنځ دچوکۍ په بالښت باندې کېښودلې .کرزی لږ رامخکې شواوپه غلي غږ یې خبرې پیل کړې. گریک:ووایه دهېوادځخه څه خبر لرو؟جگړه څنگه پرمختگ کوي؟

صاحب که رښتیا ووایم حالت ښه پرمختگ کوي. گریگ په ملا کې کوږشواوپه مځکه پروت پاکټ یې راواخیست. هغه وویل:دانقشه ده ،کولای شوچې پرمختگ په کې په گوته کړو.

دټکساس ۱۲ گروپ نوي راغلي (تکتیکې)ظابط دمخابرې له لارې دیوې بي-52 بم غورځوونکې الوتکې سره دطالبانوهغه موقیعت چې همدا اوس تصدیق شواوپه دره کې تقریبا زر متر لرې واټن لري دهوایي برید لپاره په اړیکه کې دی. خور دظابط د ځانگړو جغرافیاوي کواردیناټو باندې د برید کولولپاره په لازمي مرحله باندې کارکوي. هغه یوه کوچنی خویوه جدي سهوه وکړه. هغه په دې ونه پوهېده چې هغه کواردیناټو چې هغه یې په هوا کې د ځرخیدونکې بي- 52 الوتکې لپاره لوستلې،هغه کواردیناټ په دره کې دطالبانودموقیعت نه بلکې دخپل گروپ دموقیعت کواردیناټ دي! بمبار کوونکې افسر دکواردیناتودتصدیق غوښتنه وکړه اوځوان خور ظابط هغه ته ډاډ ورکړچې نوموړي کواردینات هغه موقیعت دی چې دی یې غواړي چې هوایي برید پرې ترسره شي. بي-52 الوتکې یودانه او بي یو-31 ډوله بم چې دوه زره پونډه وزن لري اودټکساس ۱۲ گروپ له خوا په ورکړل شوي کواردیناتوپه سمون(مطابق) پروگرام شوی و، را وغورځاوه. بم دهغې ارتفاع ځخه چې راخلاصېږي تقریبا نیمه دقیقه نیسي څوپه هدف باندې ولگېږي.

گریک دچای له کرسۍ ځخه پیالې لیرې کړې وې اوددوی ترمنځ یې دافغانستان نقشه غوړولي وه. هغه دختیځه ولایتونوپه لورې اشاره وکړه اوکرزي

ته یې دتښتېدونکوطالبانوخبرې کولې چې په دې وخت کې دهوا یوه ډېره ځواکمنه څپه ودانۍ ته راننوتله چې دېوالونه اوچت یې ټوټې ټوټې اوګریک یې په کرزي ورونښلوه .دواړه یې په کوټه کې دشلیدلولنځکوپه ډول سرکونډی اوپه بل مخ واړول. د چاودنې زور دوی راپورته او مخ لورې ته یې وغورځول . زور یې ددوی د سږو څخه هوا په زوره راوباسله. بیا د فشار او زور څپه تېره شوه. یوه ارامه او بې حسه چوپتیا یې پرېښودله. کریګ په هوښ کې و، سره له دې چې ټول بدن یې خوږ و خو دا خوږ د یوه ژور ټپ خوږ نه ول. داسې و لکه یو ځل چې هغه د د سیند په څپو باندې لوبه کوله او د یوې سترې څپې سره مخامخ شو چې لاندې یې ډوب کړ او تقریبا نیمه دقیقه یې د سیند په تل کې پرمځکه وواهه.

هوا د دوړو او لوګي څخه ډکه وه. کریګ شاوخوا وکتل، ویې لیدل چې د ودانۍ وروستنۍ دېوال او د چت اړوند برخه له منځه تللي وو.

کرزی د ده څخه څو فوټه لیرې پروت و. په ګڅ لورې راغښتل شوی ، جامې یې شلیدلې او ککړې شوې وې. کریګ کرزي ته په خېړو ورغی او هغه یې په مخ راواړوه بیا کریګ خپل بدن ورمخکې کړ څو د ګڼ شمېر راغورځېدونکو ټوټو څخه یې وژغوري. کریګ خپل غومبوري د کرزي پر مخ کېښودل او د هغه ساهو ایېستل یې احساس کړل.

هغه له کرزي راپورته شو او د هغه پر بدن یې لاس راتېر کړ څو مات شوي هډوکي او نور ښکاره غوڅ ځایونه وګوري. پر مخ یې څو عادي زخمونه ول او د هغه پرټنډه خو سربیرن زخمونه لا له ورانډې راجوتېدل خو کریګ کوم ګوابنووونکې او جدي ټپونه پیدا نه کړل. هغه د کرزي ترڅنګ کېناست او خپل ځان یې وکوت. هغه په شا باندې څو ځایه سره خالونه درلودل خو ښایي چې ددېوال د ړنګېدلو پر مهال پرې څه شی راپریوتی او د هغه په ډډه لګېدلی وي. د ورمېږ او د سر په شا څو ځایه غوڅ شوی و. هغه داسې احساسوله لکه هغه چې موټر وهلی وي. ټول ځان یې درد او مېږي مېږي کېده. غوږونه یې ترنګېدل او داسې ښکارېدل لکه غږ چې له لیرې ځای څخه راځي. هغه د پېښې پر څرنګوالي نه پوهېده خو دومره پوهېده چې ترڅنګ یې یوه لویه چاودنه شوې ده. هغه چې شاوخوا ورانۍ او ویجاړتیا ته وکتل ،پوه شو چه هغه له دې چې کرزی ژوندی پاتې دی، ډېر بختور دی. بم کټ مټ په هدف باندې ولګېد اوله تیروجوړه هغې چاردېوالي چې ترشا یې دګروپ زیاته برخه یا په کاربوخت واو یا ولاړ ول، په لس متری کې ولګېد. دکرزي دری سرتیري چې په دېوال باندې ناست ول، ارام یې کاوه اود د دې ځایه یې په لنډو دطالبانودموقیعتونو په منظم ډول درنګېدلوانتظار کاوه، هواته پورته اوبدنونه یې ټوټې ټوټې شول.

دځانګړوځواکونودرى تنه سرتېري هم په کې مړه شول.پاتې نوريې برسيرن اوځينې يې ژور ټپيان شول. ځينې سرتيري چې په سيمه کې يې اکمالات لېږدول، هم ټپي شول. ايکو ګروپ افسر فرانک چې دخاوروکورسره نږدې چې لېدنه ترسره کېدله، هم غورځولي اوبې هوښه کړي وخودعادي ګرږلو اوسربيرن ټپونو پرته هغه روغ رمټ و. همغه ماسپښن ډېر وروسته ګريک دفرانک سره يوځای په همغه سيمه وګرځېدخوهغه بشپړه ګډوډي چې دجغرافيايي کوارډيناتوپه لوستلوکې ديوې کوچنۍ تېروتنې څخه رامنځ ته شوي وه، وګوري. که چېرې بم لس متره نورهم نږدې لګېدلی وای اويا دتيږوددېوال په هغه خوا چې ګروپ کارکاوه لويدلی وای، ښايي د لېدنې په کوټه کې ټول وژل شوي او همدارنګه يوځواکمن ملي رهبر به موله لاسه ورکړی وای!

## نـهـه دېـرشم څـپـرکـی

ګريک دموټر په بانټ باندې د دوربين د ليد ثابتولولپاره اودمخامخ غونډۍ په څيرکتلولپاره ورکوږشو. هغه شپيته تنه سرتېري جنګيالي چې تېره شپه دغونډيو د خوندي کولولپاره ليږلي و،ځای په ځای شوي ول.هغه و ليدل چې دا کسان د سهار په سړه هوا کې په سيمه کې خوځښت کاوه. څوځايه کوچني اورونه بليدل اوشنه اسمان په لوړې ترې سپين لوګي پورته کېدل.د هر اورڅخه درې يا څلورتنه دسهار دچای لپاره د اوبو د ايشيدلوپه هيله ترې راچاپېرول.

ګريک دغه ليکې ته په غور سره وکتل اوويې ليدل چې جنګيالوتېره شپه لږ دفاعي موقيعتونه جوړ اودهغوی توکي د هر دفاعي موقيعت څخه چاپېره پراته ول.

کمزوری ديسپلين يې درلود خودغه کسان با تجربه سرتېري نه ول. د سيمه ييزه کليو کسان ول. ځينوخو د 1990کال يا دروسانواويا افغان کمونسټ رژيم په وړاندې دجګړې تجربه درلوده خوحتی دغه کسان هم اوس دوکاندران اويا بزګران و.دکلي په هوسا ژوند کې يې وخت تېرکړی و.ګريک د غونډۍ د تېرې څوکې څخه چې ده ځارله يوازې درې سوه فوټه ترې لرې و. هغه پوهېده چې تقريبا اته سوه متره وړاندې په غونډيوباندې دطالبانوڅوسوه کسيزه ځواک شته.

دتېروځلـورو ورځوپه بهيـر کـې دکـرزي ځواکونـودامريکې دهـوايي ځـواک پـه مرستې طالبان دسويل په لـوړې په يـوه ثابت ګام بانـدې وتښـتول. دطالبـانو پـه منځ کې مرګ اوژوبله درنه وه چې دوی بـه هرځـل ددفـاع لپـاره کوښښ وکړ لـه اسمانه به دبمونوباران پرې پيل شواوددوی ترځنګ به يې مرګ او ويجاړتيا رامنځ ته کوله. دا دشک خبره نه وه چې دکرز ي کسان په غونډی بانـدې ارام اوپـه ډاډه

زړه پراته ول. ددغه اوږدې اوکراره جگړې پای ډاډمن و. طالبانوماتې خوړلي وه خوهغوی تراوسه په دغه حقیقت نه پوهېدل. گریک خپل چار چاپیره وکتل اودخپلې کرښې توپیر ته یې موسکا وکړه. هغه دفاعي موقیعتونه چې افغان ځواکونووبرابرکړي وو په ښه ډول جوړشوي وو چې ژور غارونه اوپه سریې دخاوروڅلي اوغټې تیرې یې پرې ایښې وې.

توکي ټول په منظم ډول ایښودل شوي و او په هر موقیعت کې یوکس وحتی دځای خوړلواود وریږو دتیارولوپرمهال هم یوکس په هر دفاعي موقیعت کې شتون درلود. د ایکو گروپ[1] درې غړو دگریک سره د جیپ موټروسره نږدې کار کاوه اودکمپ په کوچنی بخاری باندې یې کافي تیاروله .راکې چې دگروپ ارتباطي افسر و،خپل توکي برابرول ځودقرارگاه څخه دسهار دمالوماتوراکړه ورکړه ترسره کړي.

فرانک چې دگریک دویم کس ودځانگړوفعالیتونودفرقې له غړي جوز سره یې دسیمې نقشه لوستله. ددوی وسلې او دساحې توکي دوی ته نږدې ایښي ول. ټولود اېل بین اېل (یو ډول شنه کاوبي ته ورته پتلونونه. ژباړن) ډوله دساحې جامې اوبوټان په پښواودامریکې دپوځ دتوکو بندونه چې له کلک ټوکر څخه جوړشوي،دتوپانچو نظامي بندونه اودمهماتوکڅوړې چې په افغانستان کې د سي ای اې ټولوغړوانتخاب و، لرل. ددوی څخه یوازې شل گزه لیرې د ځانگړو ځواکونو د او ډي اې -74 گروپ شپږغړي دسهار په دندو بوخت وو، چې مهمه یې دکافی جوړول اودوډۍ لپاره یې نور توکي برابرول و.گریک فرانک ته لاس وښوراوه اودځانگړو ځواکونودسرتېروسره دستړي مه شي اودوډۍ دبمبارۍ په اړه دمالوماتواخیستلو لپاره ورغلل.

دهوایي ځواک تکتیکې افسر گریک ته وویل چې هغه یوه بي-52 ددوی موقیعت ته راغوښتي اوددېرشو دقیقو په بهیر کې به راورسیږي. دهمدغه سهار نورې هوایي بمباریو ته لومړیتوب ورکول کېده خودوډۍ په بهیر کې به هغوی په زیاته کچه دهوایي بمبارۍ غوښتنه کوي. له دې سره گریک اوفرانک په غونډۍ پرتو افغانانوته خطر وگاله .دمعاینه کولولپاره یې دتگ زړه وکړاوهغوی درې ته دیوې تنگې لارې چې تقریبا سل گزه ښکته وه، لاړل.

ښایسته شین اسمان و یوازې دسویل په لورې ځای ځای سپینې ډېلې وریځې لیدل کېدلې. هوا یوڅه سړه وه خوپه ماسپښین کې د تودوخې درجه څلویښتوته رسېدله. گریک وویل:په طالبانو باندې دبمونودغورځولواودهغوی له ژړا او بخښنې ډکې (کونو) ته د سړا دورکولوله پاره غوره ورځ ده. په داسې حال کې

[1] د نظامي قطعاتو د یو او بل څخه د اسانه توپیر لپاره د امریکا پوځ د انگلیسي ژبې د حروفو د اوازونو لکه (A)، الفا (E) ایکو کاروي. ژباړن

چې هغوی قدم واهه اودسهار یې خوند اخیست، گریک فرانک ته وویل چې هغه غواړي راتلونکې شپه اې سي ۱۳۰ A-C توپ لرونکې الوتکه دطالبانوپرموقیعتونوبمباري وکړي او په متواتر ډول بمباري به دهغوی دمورال په ما تولو کې مرسته وکړي. اې سي-130 الوتکه چې 105ملي متري او 40 ملي متري توپ اودڅومېله لرونکې توپک به په طالبانوشپه پر یوه ژوندي دوزخ بدله کړي. کسان بلې غونډۍ تېرې څوکې ته ورپورته شول اودخوردظابط حیدر له خوا چې د څوباتجربه سرتېرو له ډلې څخه و اود کرزي دجنگیالودهمدغه گروپ سره یوځای جنگېده، ورته هرکلی وویل شو.

کرزي تقریبا څلور سوه جنگیالي راغونډ کړي واود دغسې یوه کس لرل هم دحیرانتیا خبره نه وه. حیدر ډېره لږه انگلیسي ژبه زده وه خو ده اوگریک پرې مفاهمه کولای شوه. گریک په سیمه کې یوه گډ وډ دفاعي موقیعت ته اشاره وکړه اوحیدر په ماته اوگوډه انگلیسي وویل:هو ښه نه دی جوړشوی. زما کسان ستړي دي. دوی وایي چې دښمن په منډه دی. د اندیښنې وړنه ده! گریک وویل: هو دښمن په منډه دی خوهغه بیا هم سړی ویشتلی شي! هغه لاسونه پورته کړل اوتوپک دنیولوپېښې یې وکړې. ظابط حیدره باید څواکمن واوسي. خپل لاس یې کوږ کړاوتور غړي ته یې اشاره وکړه او ویې ویل چې څواکمن څواکمن!هغه وگرځېد اوسریې وښوراوه. شاوخوا یې وکتل فرانک او کریگ ته یې اشاره وکړله او ویې ویل: چای مو خوښېږي؟حیدر هغه اورته چې څو فوټه لیرې بلېده او تور شوی چاینک چې بخار ترې راپورته کېده، اشاره وکړه. دوی د اور په لورې وروان شول او د مخامخ غونډۍ څخه پرې دز وشو څو نورې پرلپسې ډزې هم وشوې او سهار په سړه هوا او تنگي کې یې غږ په کراره انگازې کولې.

دوی ټول د درې په هاخوا د طالبانو موقیعت ته د کتلو لپاره ورودرېدل. افغانانو هم خپل موقیعتونه باندې ولاړ شول او ټولو د درې په ها خوا دډزوځای ته په ځیرځیر سره کتل. دغونډۍ په سر خوځېدنه وه .گریک لومړی دوه بیا درې کسان چې تورې جامې یې اغوستې وې دغونډۍ دهغې تېرې څوکې چې گریک اودهغه کسانوته نږدې وه، ولیدل. نوموړو دریو کسانو یوه کرښه جوړه کړله. لاسونه یې دخپلو سرونوپورته دهر یوه سره یو یو کلاشینکوف اوچپغې یې وهلې غږ د دوی په لوري په کراره رسېده. غړیې بې سیکه اوگډ وډ اوڅوک پرې نه پوهېدل. بیا دغه دریوکسانومخکې گامونه واخیستل او دغونډۍ په ډډه ښکته لورې د دوی په خوا ور روان شول. گریک خپل دوربین راواخیست څودا درې کسان په کې له نږدې وگوري.دوی په غور سره خوځېدل. په کراره سره یې چټکتیا زیاتېېدله.دغونډۍ په ښکته لوري په یوه عامه لار باندې روان ول. دوی ازادې تور رنگه جامې اوتورې پگړۍ په سرونووې .په سینوباندې یې دتوکو لپاره له کلک

ټوکر جوړشوي بندونه اودمهماتولپاره يې په کې کڅوړې هم درلودلې. ګريک فرانک اوحيدر ته وويل داچې دوی دکوم هېواد دي، وړاندوينه يې سخته ده خو دومره پوهېږم چې سيمه ييزې جامې يې په تن نه دي. نوموړي درې کسان د درې تل ته ورسېدل او اوس يې اورده ګامونه نور هم ګړندي کړل بيا يې منډه پيل کړه. په داسې حال کې چې ګريک اوفرانک ورته په حيرانتيا سره کتل، نېغ دغونډۍ په لور ور روان وو. دا درې کسان څه هوډ لري؟

دوی پرته له ستونزې په خوځښت کې دي.ديوبل څخه درې يا څلور فوټه په اندازه ليرې روان ول. کرښه يې جوړه کړې اودهغه ځای په لورې چې ګريک اودهغه افغان ملګري انتظارکوي، ورګوري. بيا دکرښې له لاندې برخې يوه افغان چې دغه درې کسان يې په داسې حال کې چې په تدريجي ډول له ډګرڅخه راتېرشول، چېغه کړله. دوی دچيچنيادي، چيچنيا! نورو افغانانو هم دغه کړيکه پيل کړله. دغونډۍ په سر دافغانانوپه منځ کې د ډار يوه داسې سخته څپه راغله چې ما په اسانۍ سره احساس کړله. دهرې جګړې په مهال دطالبانوسره د چيچنايانوديوه ګروپ دشتون ګونګوسې او رپوټونه شته ول. دوی سخت دريځه،ځواکمن جنګيالي، ښه روزل شوي اودخپلو وسلوسره دپوره مهارت په لرلو مشهور وو. څو ورځې وړاندې ديوې ځانګړي اوسختې جګړې وروسته دکرزي په ځواکونوکې دوژل شويوله ډلې څخه يې يوشمېرپه سرونوکې په يوه يوه ګولۍ لګېدلي او وژل شوي ول. دا دافغانانولپاره ډېره لويه خبره وه ځکه چې دوی اصلاً توپک ښه نه برابروي او پرځای يې په الله باورکوي چې هغه به ګوندې ښښه وربرابره کړي. دوی فکر کاوه چې دغه ډول دقيق ډز کول دچيچنايانوکاردی. ګريک په حيرانتيا سره دافغانانولاندينۍ اوپورتنۍکرښوته وروکتل هغه ليدل چې پردوی وېره کېناستله. شپېته وسلوال کسان د دريوکسانوڅخه چې ددوی په لورې دمنډې په حال کې دي، ډارېږي!

هغه ضابط حيدر راونيوه اوله هغه يې وغوښتل چې خپلو کسانوته دويشتلوامر ورکړي. هغه ورته دوسلې نيول اوپرهغې د ډزې کولوپېښې وکړې. حيدر وګرځېد اوخپلو کسانوته يې دډزوکړلو امرورکړ. په دوی اوس وېره راغلې وه اودکلاشينکوفونودراخيستلو لپاره خواره واره شول. په داسې حال کې هغوی شاجورې ورواچولې اومرمۍ يې په ټوپکوټېرې کړې، دشور يوڅپه خواره شوه. حيدرخپل کلاشينکوف تيارکړاودغونډۍ څوکې ته ورغی اوهغه دريو کسانوته چې تورې جامې يې اغوستې وې اود دوی په لورې په بې رحمانه ډول په منډې وهلې، وروکتل. هغه بل امر ورکړ. خپل توپک يې اوچت او ډزې يې پيل کړې. توپک پې مټ ته جټکه ورکړه. بيا يې په ماشه ګوته ټينګه کړله او درې يا څلور ډزې يې په وار خلاصولې.

نور يې اوړده فايرونه کول ، توپک يې بې ولکې د اسمان په لورې جګ او ټيټ کېدل او په دوامداره توګه يې مټونو ته جټکه ورکوله چې دا د ډزو په مهال د ويرې اغېز وي. څو ثانيې وروسته ډزې پای ته ورسېدلې او کريګ په حيرانتيا سره وکتل چې تر اوسته هم نوموړی درې کسان په داسې حال کې چې شاوخوا مځکه يې لړزيدله،زموږ په وړاندې د منډې په حال کې و.

پرمځکه باندې د ډز لګېدلو له امله مځکه چاوده او لوټې او کاڼې يې د اسمان په لورې الوځول. نوموړو دريو کسانو خپلو اوږدو ګامونو ته دوام ورکړ. کرښه يې ماته نه کړه او په تدريجي ډول يې منډې ته دوام ورکاوه. افغانانو خپلې دېرش ډزې شاجورې خلاصې کړې او ډزې د څو شېبو لپاره و ځنډيدلې. دادرى کسان هيڅ ونه لګېدل او کريګ له حيدر څخه وغوښتل چې کسانو ته د ډزو د دوام امر ورکړي. د ډزو زيږ غږ په داسې حال کې چې ډار شويو لاسونو ډکې شاجورې توپکو ته ورواچولې، راغی. د ډزو غږ د کرښې په لاندې برخه کې نور هم لوړ شو.

سړی يې تقريباً کوڼاوه ، کريګ په غوږونو کې د شهادت ګوتې ونيوې څو غږ بند کړي خو بيا هم دا دريو جنګيالو روغ رمټ منډې ته دوام ورکړ. دوی اوس د غونډۍ بېخ ته رانږدې شوي وو. کله چې د کسانو په منځ کې چوپيتا خپره شوله، دوی د راروانو کسانو چې الله اکبر نعرې يې وهلې، واورېد.

دوی د منډې پـه حـال کـې تکـراراً د الله اکبـر چيغـې وهلـې. دا د افغانـانو د حوصلې دپاره ډېر څه و او د چيچنايانو غږ خو لاتردې هم ناوړه و! لکه اشاره چې شوې وي دغه شپيته کسيزه ډلې مخونه واړول او د خپلـو موقيعتونو څخه په منډه شول! کريګ هغوی ته د درېدلو چيغې وهلې. دده خواته نږدې کس يې له مټه راونيو خو هغه ځان ته ټکان ورکړ. کوږ وږ ولاړ او د غونډۍ په ډډه کې د نورو ملګرو سره په داسې حال کې چې هغوی هم د بيړې منډه کوله، يو ځای شول.

کريګ او فرانک د غونډۍ په ډډه کې دريو چيچنايانو ته وروکتل او هغوی هم اوسمهال دوی ته ورنږدې کېدل. فرانـک وويـل چـې دا درى هغـه زړور کسان دي چې ما په خپل ټول ژوند کې نه وليدلي او يـا خـو لېـوني موركوسي دي! (دا هغه ژباړن) په هرصـورت زه نـه غـواړم چـې دلتـه پـاتې شـم او لـه هغـوى سره ووينم! کريګ ستا څنګه خوښه ده؟

کريګ وګرځېد او ويې ويل: راځه چې لـه ورايـه ورتـه ځانونـه وروپيژنو! هغه د غونډۍ په ښکته لورې منـډه پيـل او ورسره فرانـک هـم يوځـای شـو بيا يـې چټکه منډه پيل کړله څو د تښتېدونکو افغان څواکونو سره يو ځای شو. کريګ او فرانک د ځانګړو ځواکونـو د او ډي اې -۵۷۴ ګـروپ سـره يـو ځـای شـول او د هغـه دريـو چيچنايانو ته چې اوسمهال ددوی لخوا په خالی شـوي موقيعتونـو بانـدې ولاړ وو،

په هک پکتیا سره ورکتل.
کریګ د هوايي ګروپ تکتیکي پازوال افسر ته ورغږ کړ او له هغه یې وپوښتل: ایا هغه بي -۵۲ ډوله الوتکه اوس هم زموږ په سرونو الوتنه کوي؟هو صاحب هغه زموږ په سرونو ګرځي او د هدف لپاره د جغرافیایي کوارډیناتو منتظر دي. کریګ په داسې حال کې هغه دریو چیچنایانو ته چې اوسمهال یې د تښتېدلو افغانانو د توکو پلټنه کوله، ورکتل ویې ویل: راځئ چې د همغې غونډۍ د سر جغرافیاوي کوارډینات ورکړو. هغه دریو واړو ته به د بلنې یو کارت ورولیږو! کله چې د مخابرې له لارې د برید غوښتنه په بهیر کې وه، کریګ هغه دریو کسانو ته ورکتل او هغوی اوس هم چېغې چې واضحاً ښکنځلې وې،وهلې!
د نوموړو دریو کسانو څخه یوه کس خپل لینګي خواره کړل او په دواړو لاسونو یې خښتګ ونیو څو په ښکنځلو ټینګار و کړي. یو بل ته یې کوناټې ورواړول. ویې ښورول او بیا وګرځېدل او په خندا شول. (فکر کوم په لویدیځه ټولنه کې دغسې یو څه د ښکنځلو او د پیغور په مانا دي. ژباړن)هوايي تکتیکي افسر خبرې پیل کړې: یو دوه زره پاونده بم....بیا یې خبرې وځنډولې او بیا یې دوام ورکړ: یو دوه زره پاونډ ه بم راروان دی. په ښه باندې د لګېدلو پورې پینځه ویشت ثانیې وشمېرې. کریګ ولاړ شو او دده مخامخ دریو کسانو ته یې وروکتل: دا د زړه ورتوب هغه بهترینه منظره وه چې ده تر اوسه لیدلې او یا په حقیقت یې تراوسه ترې اورېدلي هم نه ووا یوازې درې کسان چې په شپږ یا اووه سوه متره پراخ او خلاص ډګر باندې په شپېتو کسانو چې هغوی پرې ډزې کولې او تر پایه یې یوګام هم ځنډمن نه کړل. هغوی اوس ولاړ دي او پر هغه کسانو چې دوی سپکاوی ور واړوه ،مسخره کوي.
کریګ له هغه څه چې دوی ته (منظور یې چیچنایان دي. ژباړن) ورپېښدل زړه خوړېده خو دده کسان باید بېرته ډاډه شي او هغه وقار او حیثیت چې دوی له لاسه ورکړی و، یو څه برخه یې بېرته لاس ته راوړې وای. کریګ باوري و چې ده او کریګ کولای شول چې نوموړي درې کسان په داسې حال کې چې په غونډۍ راپورته کېدل، وژلي وای خو د افغانانو له ډلې څخه هیڅ یوه هم نشو لیدلی او ښايي په دغه کار سره د فرانک او کریګ په لورې د افغانانو له امله یو څه کینه له دې امله چې د هغوی وقار ټیټ شوی و، راپارېدلی وای(لیکوال زما په باور هڅه کوي څو خپل کسان د افغانانو له شپیته کسیزې ډلې څخه ډېر زړور معرفي کړي .ژباړن) او په دې ډول به ټوکه پر چیچنایانو تمامېږي! کریګ ساعت ته ورکتل. شل ثانیې پاتې وې. هغه لږ مخکې شو او ښی لاس یې د دریو کسانو په لورې پورته کړ او په کراره یې د نیمې دایرې په ډول ورانډې او وروسته کړ. د چیچنیانو څخه یوه کس خپل لاس پورته او منځنی ګوته یې د سلام په توګه ونیوله. (په لویدځ

کلتور کې دا ډول حرکت د ښکنځل مانا لري. ژباړن). جي بي يو-۳۱ ډوله بم د هغه چیچنايي ترخنګ چې په وياړ سره ولاړ ول، د يوه فوټ په واټن کې ولګېد. د غونډۍ سر د لويې چاودنې له امله په اور او لوګي کې پټ شو. د کريګ شاوخوا افغانانو باندې د خوشالۍ څپه راغله. د يوې شېبې لپاره کريګ فکر وکړ چې هغه د پرکنده چاودنې په زړه کې د انسان ځېره وليدله خو هغه دومره په چټکۍ سره تېره شوه چې فکر يې وکړ چې هغه يوازې يو تصور کړی دی![1]

## څلوېښتم څپرکی

داکتوبر اووه ویشتم سهارمود یوشمېر جالبه تلګرافونوپه رارسېدلوپيل کړ. يوتلګراف دامريکې دپوځ مرکزي امريت سينټ کام جنرال ټامې فرانک اوجنرال فهيم ترمنځ په دوشنبه کې د ليدنې وړانديز شوی و. دفهيم لپاره به دا ښه فرصت وي څوخپله قضيه باندې دجنرال ټامي فرانک سره نېغ په نېغه وغږېږي اوفهيم ته په کابل باندې دبريد پلان ته دبيا کتلواجازه ورکړي.

د تروريزم په وړاندې مرکز کې له جنرال فرانك څخه پرته هانک د سمندري ځواکونوقومندان اوکولانډ د مرکزي امريت د ځانګړوعملياتومشر چې په افغانستان کې په عملياتوبوختوځانګړوځواکونومشري په غاړه لري، هم شتون ولري. داچې جنرال فهيم له وړاندې په دوشنبه کې و، اوعارف غوښتل چې دګډون لپاره هلته ورشي، غوره فرصت و. زه ددممتاز سره يوځای په استانه کې هوايي ډګرته په موټرکې لاړم څوعارف د اته نيمو بجو الوتنې څخه وړاندې له نږدې وګورم. عارف دغه ليدنې ته سترګې په لار و.هغه وويل چې دی به له ممتاز وغواړي چې د وړانديز مالومات بايد جنرال فهم ته دوشنبې ته د هغه دچورلکې د رسېدلو وړاندې دمخابرې له لارې وررسوي. عارف په ليدنه کې زما ګډون وپوښت. ښه نظر وما هم هوکړه وکړه چې د ګډون هڅه به وکړم.زه دخړ نصواري دوړوچې دچورلکې دپورته کېدلوله امله تا ويدلې اوتلونکي چورلکې ته يې خدای پاماني ويله،ليرې ودرېدلم اوله ځان سره مې ددې دپاره چې هرڅه څومره په بيړه سره ترسره کېږي، فکريووړم. دسهارتلګرافونوداهم ويل چې زما دګروپ لپاره څلورځايناستي تېره ورځ تاشکند ته رارسېدلي دي. زما ځايناستي زما يوپخوانی دوست اود زما هم نومی، ګيري نومېده. دويم ګروپ (لومړی ګيري لقب مې ځان ته کېښود. ليکوال)هانک سره دوشنبه ته يوځای په سفر راته. ما فکر وکړ چې زه اوريک هم بايد دوشنبه ته دجنرال فهيم اوجنرال فرانک سره په ليدنه کې دګډون اوزمورځايناستوته دکوتک

[1] ښايي دغه يوه معجزه وه چې د نوموړي امريکايي په سترګو کې يې د بم په لمبو کې د انسان ځېره جوړه کړې وي. ژباړن



په وردګو کې ځانګړي امریکاي ځواکونه چې عام افغانان یې ځورول



د کندهار په شمال کې کرزی د سي ای ای اې سره



جنګي کلا مزار شریف سي ای اې د دوستم یانو سره



په شبرغان کې طالب زندانیان

دورسپارلولپاره سفرورکړو. کریک اومېوري هم باید دوشنبه ته دخپل نوبت دبدلون
دپاره له مورسره تللي واى. کله چې زه خپل دفتر ته راوګرځېدلم. میوري هم هلته
وخوهغه خپه و. هغه له دې چې دی دبګرام څخه ولې ایستل شوی و،
دتشریحاتوغوښتونکی و.دده له خولې دځانګړوځواکونوکسانودده له لاسه هرڅه
خوړل اوهرڅه ښه روان و. ماورته وویل چې قرارګاه زموږدګروپ دځینوکسانولپاره
ځایناستي رالیږي. دی اوکریس هم قرارګاه ته دورګرځېدلولپاره خوښ شوي دي
نودتګ لپاره دتیاری نیولوپه خاطرهغه ته دلته اړتیا وه. زه ددغه حالت څخه
مایوسه شوم. ما مېوري ډېر خوښېده زه پوهېدم چې هغه احساسوه چې دی ډېر
ارزښتمن کارترسره کوي خودده هغه کېسې چې ددښمن دډزو دخطریې بې باکه
ګڼلی و، زه ځورولم اوما دهغه دخوندیتوب په اړه اندېښنه درلوده. هیڅا تراوسه
ونه ویل چې امر ورکول اسان کار دی. په همغه سهارپه نهو نیمو بجو باندې
دچورلکې څخه دمخابرې په واسطه خبر راکړچې چورلکه دچټکو بادونو،
درنودوروسره مخامخ ده اودځوزره فوټه لاندې ارتفاع څخه لیدل تقریبا نا شوني ول.
ایړ وویل چې په دوشنبه کې دکنټرول برج هم په مساوي ډول دخرابې هوا رپوټ
ورکړاوهغه وویل چې دځودقیقو په بهیر کې به ددوړودتوپان ترورکېدلوپورې
دهوایي عملیاتوددرولولپاره پرېکړه ونیول شي. یویا ځودقیقې وروسته ایړ بیا
دمخابرې له لارې خبر راکړچې هغه پنجشېر ته راګرځي. دهوا حالات دومره
ترینګلي وو چې دبل هوایي ډګر لیدل هم سخت وو. تر دوشنبه خوسفرکړل له
لیرې خبره وه. ریک اوزه چورلکې ته دلېږد لپاره دکوزیدلو ډګر ته ولاړو. چورلکه په
خوندي ډول راوګرځېده. عارف دبک په څار له چورلکې راښکته شواوسره له دې
چې هغه موسکا کوله،عارف ټکان هم خوړلی و. هغه وویل کله چې دوی
لوړوبادونوته ورسېدل، الوتنه نوره هم ستونزمنه شوه اودچورلکې په منځ کې هوا
په دوړوککړه شوه. هغه دکړکۍ څخه بهردنصواري رنګه تا ویدونکودوړوپرته بل
هیڅ شی هم نه شولیدلای. عارف وروسته وویل چې هغه له دې امله چې درې ته
په خوندي ډول راستون شو،خوښ دی. هغه وویل چې که چېرې هغه دشمالي
ټلوالې په کومه چورلکه وای، هغه به ژوندی نه وای راوتلی. ځکه چې هغه چورلکې
دومره ناوړه تحنیکي ترمېم لري چې په هغه حالاتوکې به یې هره یوه په ډاډ سره
راغورځېدلې وای. موږدهوا دحالاتوداجازې په صورت کې راتلونکې ورځ دهغه په
همدغه ډول سفر باندې بحث وکړاوپه حیرانتیا سره عارف وویل چې هغه به په
خوشالی سره سبا ته یوځل بیا دتګ کوښښ وکړي.

## شپږمه برخه
## دبګرام په هوایي اډه کې ژامې

# ماتوونکې او ۵۵۵ ګروپ د اکتوبر وروستۍ ـ ۲۰۰۱ یو څلوېښتم څپرکی د ورځې جګړه

ستېان په لاس باندې ساعت ته وروکتل ،تقریبا لس بجې وې. سهار تېر شوی و. هغه دجنرال بسم الله دجي ۲ـ (استخبارات. لیکوال) مرکز سره په تېرو څلورویشتوساعتونوکې دطالبانودخوځښت په اړه داستخباراتي مالوماتو دراغونډولو لپاره دسهار وخته لیدنه کړې وه. هغه ته جګړن نان الله هم دهغه د دفتر په شاوخوا کې دطالبانوپه هدفونوباندې دامریکې دبمبارۍ نشتوالي له امله دشکایت اوږده کېسه واوروله. ستېان خپل دفتر ته ولاړڅولیکلي رپوټونه قرارګاه ته ولیږي خوویې نه کړای شو چې د قرارګا سره اړیکه ونیسي. پاپي باور درلود چې هغه په ستونزه باندې پوهېږي او له ستېان سره یې د راتلونکې ورځې لپاره وعده وکړه چې هغه به له بګرام څخه پخپله لیدنه کوي څو له ځان سره کیبل او اړیکه جوړونکې اله وروړي او ستونزه حل کړي. یوازې د همدغه کار لپاره پاپي هوایي ډګر د ۵۵۵ ګروپ موقیعت ته په موټر کې ولاړ. کله چې د هغه ټویټا موټر په موړ باندې تاو شو، په ګڼو ونو کې یې د کنټرول پخوانی برج ترسترګو شو. موټر د ودانۍ ترڅنګ ودراوه. د شمالي ټلوالې دری یا څلور سرتېري د ودانۍ ترڅنګ ولاړ وو. ستېان پوه شو چې هغه زموږ ساتونکي دي او د طالبانو د ځواکونو لخوا په دغه موقیعت باندې د نیغ برید خطر نه بلکې د اوږده واټن څخه د درنو ماشین ګڼو او د هاوانونو د برید خطر و. دغه ډول برید ددومره وخت په بهیر کې تکرارېدلې چې ټول یې بیدار اوسېدلو ته اړ باسل. په دغه ډول بریدونو کې تراوسه څوک ژوبل شوی نه وو خو ترشا د کانکرېټ په دېوال باندې د هغه زرګونو خلکولپاره چې مرګ ته لېواله وي، د ۱۴.۵ ملي متري ټکار او لګېدل څه د ټوکو او غیر مستقیمه یادونه نه وه.

ستېان د هغه موټر چلوونکي څخه چې یو ویرووونکی سرتېری و، د مخ په ښۍ خوا د بمي پرچو/ټوټو له امله داغونه،ښۍ سترګه د شیدو ته ورته رنګه دایره ښکارېدله، له هغه څخه یې مننه وکړه او په لاس یې هغه ته تر بېرته راتګه پورې د انتظار اشاره وکړه. د موټر څخه په ښکته کیدا سره ، ستېان د افغان خوردظابط سره چې د سیمې مسول و، په روسي ژبه ټوکه وکړله. د داسې ډول خلکو سره چې په برج باندې د برید پروخت به هغوی جګړه کوي، خواخوږي او د هغوی په ذوق برابرېدل یو ښه نظر و. د ودانۍ په دېوالونو باندې د جګړې نښې وې. د بم توټو او په زرګونه مرمیو د لګېدلو له امله خال خال وه. ودانۍ د ننوتلو په لاره

کې دروازه او چوکټ نه وو. یو دهلیز یې درلود او د برج سیمې ته یوه کانکریټي زینه تللې وه. حتې د ودانۍ ننیي دېوالونه هم د مرمیو د لګېدلو له امله داغ داغ شوي وو.ستاسو له دې امله چې ودانۍ د دومره زیان د رسېدا سره سره بیا هم ولاړه او کار ترې اخېستل کېږي، حیران و. د ناپاکه زینو څخه رنګ د ډېر وخت رهیسې له منځه تللی و او د زینې د پوړونو په منځ باندې د ختلو پروخت د زرګونو ګامونو د ایښودلو له امله د هر پوړ منځ وران شوی و. مرکزي کوټې ته د ننوتلو لار په چت کې د مربع شکل غونډې غار و او ددغه غار په دریو غاړو کې د اوسپنې کټاره له پخوا څخه پاتې وه. د شنه اسمان له امله کوټه رڼا وه او د کړکیودشیشو څخه بهر منظره ډېره په زړه پورې وه. خودا چې په زرګونوطالبان د ودانۍ سویل لورې ته دکرښې مخامخ پراته ول، ستاسو په دغه ودانۍ کې ځان بربنډ اوددښمن برید ته جوړ احساساوه. دکوټې په منځ کې له لرګي جوړشوي دوه مېزونه دنقشوپه واسطه پوښل شوي اود او ډي اې دګروپ دغړودشخصي توکو سرونه اوبیخونه پرې پراته وو. څودانې ایم-4 ټوپک اودپخواني ایم-16 ډوله توپکونوي لنډ شوي ډولونه او ور سره دنظامي لوړوفریکویسني لرونکې مخابرې، داوبوبوتلې،دتیاروجوړشوي خوړوبکسونه اودشپې څو دانې دوربینونه هم پرمېز پراته ول. په کوټه کې داته چوکیو له ډلې څخه څلورفعلاً 555 ګروپ دغړوپه واسطه کارول کېدلې اوهغوی ددوه سترګو ددوربین اود نښې کولوپاره لوی دوربین دهغه کړکیوپاره چې دښمن ته ورمخامخ وې، برابرول. مېوري اویو خور دظابط یومېز ته چې دخور دظابط دکتابچې څخه یې دطالبانودهغه نوي موقیعت جغرافیاوي کوارډینات چې نن سهار لیدل شوي و، رانقلول. مېوري اونومورې خوردظابط سره روغبړ وکړ،ستان چوکۍورنږدې کړله. مېوري ترې دکارجریان وپوښت. دظابطانوعمومي مشرچې دخلیج جګړې څخه یې هم تجربه لرله،دمېوري ملګری شوي و، خپل سرېې په کراره وښوراوه اوله حیرنتیا اومایوسی ډکه موسکا یې وکړه ویې ویل بس د معمول په څېردی!دسپي په بدن کې دسپېروڅخه دلته هدفونه ډېردي اوکه چېرې دوه یادرې چورلکې زموږدغوښتنوپه اساس هوایي برید وکړي، موږبه ځانونه بختور وبولو. مېوري وویل هود هوایي بریدونودپاره نن ورځ پنځه شپیته الوتکې په دند ه ګمارل شوي څوپه کندهار،مزار،اوجلال ابادکې هدفونه په نښه کړي. دبریدونولومړیتوب دټانکونودبیا جوړولووړکشاپونه اوپه سویل کې دتوکو دساتلوځایونه، په دوهم مقام کې دځواکونوقرارګاه اودکابل په سویل کې داکمالاتودډیپوبمبارول دي. که نوموړوهدفونود بریدونو وروسته الوتکې نورڅه ولري، بیا به زموږحق وي. ستان سر وښوراوه.زه په دغه ستراتیژۍ باندې نه پوهېږم ددښمن په سلګونو، زرګونوطالبان اوعرب جنګیالي یوازې د دغه کړکۍ څخه بهر پراته دي. موږ دټانک

اودځواکونودراتاوليدلو،توپچي او يو د الوتکو ضد توپ موقيعتونه دبريدونولپاره په نښــه کــړي دي .بمبــاري پــه گداموتو،راغونـــډه ده. نـــابېره دکړکــی ســـره ناستوکسانوترمنځ يودم دخوښی خبرې پيل اودکړکی څخه يې سويلي ختيځ لورې ته اشارې کولې. ستاڼ اومېوري هم دهغوی شاته دکېناستلولپاره وروخوځېدل. دهوايي ځواکونو دځانگړوتا کتيکونوماهر چې د او ډي اې او د امريکې هوايي ځواک په هوا کې دالوتونکي الوتکې ترمنځ يې اړيکې اداره کولې، دطالبانود موټرو يوکاروان چې تقريبا يوسلواوپنځوس طالبان يې يوه گډ مرکز ته چې دځواکونودراغونډېدلو دځای په توگه پېژندل شوی و،د ځوځښت په مهال په نښه کړي ول. داغوره نښه وه. قبل الوتکې ته امرورکړه، داهدف بايد دويشتلو پاتې نه شي. د او ډې اې دگروپ دوهمه درجه امنيتي افسر ډي ورڅخه نوموړې غوښتنه وکړله. ستاڼ يودانه اضافه پروت دوربين راواخيست اودکړکی په لورې وخوځېد. ستاڼ دکاروان ترشا په دوړو چې تقريبا شپېږيا اووه درنه روسي جوړدټرانسپورت موټرې وې، تمرکز وکړ. ستاڼ په موټروکسان ليدل چې څوک ناست اوځينې يې ولاړاودټايرونوڅخه دوړې د دوی په شاوخوا کې راتاوېدلې. ستاڼ له ځان سره په زوره وويل:دوی فکرکوي چې موږيې نه شوژوبلولی!د خونديتوب افسر ډي ستاڼ ته مخ ورواړوه او ويې ويل:که چېرې موږ اواکس[1] هوايي خبردار اواداري سيستم د دغه بريد لپاره وهڅووچې يوه بي-52 راوليږي،څو دې حراميانوته وښيوچې موږدوی ته څومره ژوبله وراړولی شو. قبل د اواکس دغه الوتکې سره چې په سيمه کې يې دهمغه سهار دبمبارۍدماموريت دکنټرول لپاره گرځېدله، دمخابرې له لارې اړيکه ټينگه کړله. داټايگر ون (لومړی پړانگ. ژباړن)دی:دالوتکې څخه ددښمن له خوا په درنه اشغال شوي ځای باندې چې زما د اوسني موقيعت څخه سويل لورې ته 1. 5 کېلومتره واټن لري. د لومړي يرغل غوښتنه کېږي. په نوموړي موقيعت کې دد ښمن يو سلو پنځوس سرتېري، اووه لوی موټراوددښمن نا مالوم شمېر نورجنگيالي هم شته!لړځنډ وشو، بيا په مخابره کې لکه لرگي چې وسوځي، غژهار اوبيا غږ راغی. ټايگرون داکنټرول دی.ستا غوښتنې ته ځواب منفي دی ځکه دنن ورځې دهدفونوگېډۍ ته دبريد په ورکولوکې لومړيتوب ورکول کېږي. په انتظار اوسه،ښايي دسهار په وروستيوکې ځوالوتکې په واک کې درکړو. موږبه حالت ترڅارنې لاندې ونيسوکنټرول مرکز به له ټايگرون سره دالوتکې دشتون اودهغه وخت دځرنگوالي په صورت کې اړيکه ټينگه کړي. کنټرول مرکز اوس له اړيکې خارجېږي!دکړکی سره دولاړگروپ په منځ کې دمايوسی زگېروي پيل شو. داد حکومت له خوا هغوی ته بله مايوسي اودپامه غورځول و! دوی ته ښايي يواېف-16 الوتکه اويا که د دې څخه نورهم بختور

---

[1] (Awacs) د هوايي خبرداري اړوند ځانگه ده. ژباړن

شول، ورته کومه بي-52 چې یوبم ولري اودگوتوپه شمېر طالبان ووژني په واک کې ورکړي نه داسې بي-52 چې کولای شي طالبانوته سترزیان ورواړوي. که دکوم کوچني برید وروسته دجنرال بسم الله دمخابرې گروپ به په مخابروکې دطالبانودقوماندانانوخبرې چې ویل به یې امریکایان څومره کمزوري اوبې اغېزې دي ،هغوی د یویا دوه بمونوپه غورځولو څومره لږ زیان اړولی شي،ثبتولې. داخبر زړه ماتوونکې وه. ستان دوربین کېښوداو میوري ته یې مخ ورواړوه زه غواړم دفترته لاړشم اودنوموړي حالت په اړه ژامې ماتونکی گروپ اوقرارگاه ته پیغام ولیکم. ښایي چې دغه پیغام بدلون رانه وړي خوغواړم چې دیادونې لپاره یې ورولیږم. هغه وگرځېد څوولاړشي. مېوري وویل:راځه چې نن شپه کار وکړو. زه غواړم دبدلون لپاره له نږدې کار وکړم. تېره شپه موبخت کار وکړاوالوتکې موترلاسه کړې. ښايي چې نن شپه موبخت بیا کاروکړي. ښه خبره ده زما هم خوښه ده!

## د شپې جگړه

ستان دخپلې نسواري رنگه له بخمل جوړشوې سپورتي کورتۍ په ځای دشمالي ټلوالې شین باله پوښ واغوست او د وسلې او مهماتو د کځورو خلاصې خنډې ټینگې کړې. هغه سره بې غږه،کنداغ لرونکی کلاشینکوف اونهه ملي متره براونینگ اتومات توپانچې دهرافغان سرتېري بخل راپاروه!
هغه له توروورېوجوړه شوي خولۍ پرسر وه اوپه مخ باندې دچاپیریال تطابق (چاپېریال ورته والي) لپاره دومره رنگ وهلی وچې په شپه کې دریا په مقابل کې خپله څېره پټولی شوله. دشپې دوربین یې په غاړه کې پروت و. دکوټې دروازه یې خلاصه شوه اودمېوری (پسمې)ته ورته څېره ښکاره شوه. ستان لس بجې دي اودتگ وخت دی. موټردلته دي اود ٥٥٥ گروپ غړي خپل زینونه چمتو کړي دي. ستان دریا ځراغ چې دچت څخه دیوه برېښنايي تارپه واسطه راځوړندو، بند اودکوټې څخه راووت. مېوري یې ترمنځ و، اودپیک اپ موټرپه لورې ورروان و. ستان ولیدل چې د ٥٥٥ گروپ غړي ددواړه پیک اپ موټروشاته توکي ورغوځوي.ستان هم خپل کوچنی بکس دلومړي موټرشا ته چې نورله کلک ترپل جوړشوی بکسونه پکې هم په کې پراته ول، ورواچوه.
جگتورن آر چې د او ډي اې دگروپ سرگروپ و، ټول راوغوښتل ویې ویل:ایا ټول چمتو یی؟
راځی چې په موټرونوکې سپاره شو. ستان خپل ځان ورځای کړ اودتوکو په بکسونوېې تکېه وکړله بیایې زنگونونه دزنې په لور راوکاږل اوخپل کلاشینکوف یې دپښوپه منځ کې چې د چې خولې یې داسمان په لورې وه،کېښودل.

دموټرانجن چلان شواودموټردکنټرول برج په لورې وخوځېد. دا د عملیاتوهغه مرحله وه چې دستان ډېره خوښېدله. نوموړي کسانودکنټرول برج سره له موټروښکته کېدلو وروسته دشمالي ټلوالې هغه موقیعتونوپه خوا چې دطالبانوسره مخامخ پراته وو، په نښه شوې لارې څخه په احتیاط سره ورتلل.

گروپ دشپې عملیاتولپاره څوداسې موقیعتونه چې له ټولوڅخه یې ددوی په وړاندې ددښمن دهوایي بریدپه وخت کې ښه ترصد کولای شو، کارول. دشپې دوربین ددې لپاره چې نوموړې لار د داسې سیمې ترمنځ چې مځکنی ماینونه اونوراچاوده مهمات په کې وو، شکمنه وه اوموقیعت ته تررسېدلو وروسته به دوی ددښمن سره په نږدې واټن کې پراته وي. دلومړیو شپوپرمهال هغوی دکار لپاره یوه نقطه چې دطالبانوڅخه یوازې پنځه یا شپږسوه متره لیرې وه، خوښه کړې وه. دوی دطالبانوموقیعتونوته دومره ورنږدې شوي وو چې طالبانود هوایي تکتیکي افسر ټیټ غږ یې اورېده اودوی طالبانوته دومره ورنږدې وو چې دشپې په چوپتیا کې په داسې حال کې هغوی دتکتیکې افسردخبروغږچې د دښمن دموقیعتونوجغرافیاوي کوارډینات یې رپوټول اورېده، دزې وکړې. ستان اومیوري دواړه په دغه ماموریتونوباندې دتگ لپاره اړ نه وو. دلایزرپه واسطه دهدف په نښه کول د اې گروپ دنده وه خودادگروپ گډه هڅه وه ،دا د یوه گروپ په توگه دخطر شریکولوپه مانا هم وه. له دې پرته د لومړی کرښې په دغه برخه کې دوی د ورځې په نسبت دشپې پرمهال دالوتکوپه راغوښتلوکې ښه بحث درلود اوداسې عملیات چې پر دښمن باندې اور او ویجاړتیا ور واړوي، سړی اړ کاوه چې روسي نظامي کنډ کپر شوې الوتکې په کې هرې خواته پرتې وې. د دوی راتاو شوي،سوځیدلي اومات شوي فرېمونه د دغه هوایي ډگردکنټرول لپاره په کلونو د بې رحمانه جگړې یو ثبوت و.

روسي اېم ۱۶ ډوله جنگي الوتکه. یوه اې اېن ۱۲ ټرانسپورټ الوتکه یوه زړه شوې دوه وزره الوتکه چې دگروپ هیڅ غړي نه پېژندله، څودانې لوېې ای اېل۷۶ ډوله باروړونکې الوتکې چې خنداور جوړښت یې درلود،اوپه قطارونو وران او ویجاړشوي چاودېدلي لوی فرېمونه پراته وو. ستان به په دغه ویجاړې شویوالوتکوکې دگرځېدلوڅخه ډېرخوند اخیستی وای خوهغه پوهېده چې مځکه په نا چاوده مهماتو ډکه او دغه الوتکې دپرېښودلووروسته تکراراً دالوتکواوتوپونو له خوابمبارشوې وې. دوژل شویوالوتکودسیمې څخه تېراودونیوه کتار ته دپټیدلولپاره ښه ځایونه لرل. دنن شپې دعملیاتولپاره دخاوروهغه لوړځلی چې دښمن ورته مخامخ و، خوښ شوی و. دمخابرې توکي دخاورې دځلي دبیخ سره

ددې لپاره چې دهوايي تکتيکې افسراودسامان الاتوغېزراونغاړي،کېښودل شو.

د اې گـروپ دريوکسـانوځانونه دځلـي پـه سـردهغه خاوروبوجيوترشـا چـې ځوورځې وړاندې يې ايښې وې، ځاى په ځاى کړل. ستاڼ اومېوري هـم دهغوى سره په هغه موقيعت کې چې اوس يې معمول گرځېدلی ددوى سره يوځاى شول. وسلې يې له غاړې ليرې کړې ،لاس رسي ته نږدې يې کېښودلې او د سوفلام SOFLAM [1]توکي دکار لپاره تيارشول. دورځې په پيل کې په نښه کېدونکې هدفونه څېړل شوي وو او د هدفونو لړليک جوړشوى و. نومـوړي لست يوپراخه لست نه و.دوى ددريوالوتکوځخه دزياتوالوتکوهيله نه درلوده اوداسې ښکارېده چې دغه الوتکې دامريکې دسمندري ځواک الـوتکې وې اولـه دې امله چې دوى الوتکې وړونکې بېړی څخه ترهدف پورې اوږد واټن طی کوي، پـه هـوا کې په هدف بانـدې دلږ وخت لپاره گرځي. ستاڼ دهغه دموقيعت او ددښمن ترمنځ خلاصې سيمې ته وکتل. دطالبانوترټولونږدې موقيعت تقريبا پينځه سوه گـــزه ليـــرې و. هغـــه ډاډمـــن و چـــې دښـــمن دگـــروپ دکـــار اودهدفونودپېژنـدلودځرنگوالي څخه نـاخبره وو. دشـپې ددوربين دنـه درلودلوله امله، طالبان دشپې پرمهال ړانده وو. ستاڼ پوهېده چې دی اودگروپ نـورغړي دښمن ته نه ښکاري خوبيا هم په خلاص ډگر کې ددښمن دتوپک خولوته پريوتل قهرمـاني وه. دشـپې پـه يـوولس بجـې اوځلويښـت دقيقـې دهـوايي تکتيکـې افسرجگتورن آر د پښې په بنگړي وټپاوه اوپه غوږکې يې په کراره وويل چې دسـمندري ځـواک دوه ايـف اې/ 18 ډولـه غومبســې(الوتکې. ژباړن)پـه شلودقيقوکې دلتـه رارسېدونکې دي. هـرې يـوې دوه دانې پنځـه سـوه پاونـډه رهبري کېدونکي بمونه لېږدوي. دهدفونوجغرافياوي کوارډيناټوغوښتنه يې وکړه. غومبسـې بـه دځلورهدفونوويشتلوهڅه وکړي. جگتـورن آر دخـاورو د ځلـي سره خپلوکسانوته ورنږدې شوځودالوتکې دبريد لپاره دهدفونوښه سلسله خوښه کړي. لومړی هدف چې دورځې په پيل کې کشف شوی و،دختيوه چاردېوالي وه چې د ځواکونودراغونډيدلوپـه توگـه کـارول کېدلـه. دماښـام څخـه لـږ وړانــدې دموټرويودوهم کتارهم نوموړي ځاى ته راغلی و يوټي ۵۵ ‎T-‎ او زيډ ايس يو-۲۳ تـوپ راتلـونکي هدفونـه وو. دغـه هدفونـه تقريبـا يـوه اونـۍ دگروپ پـه نظرکـې واودهغوى په مخکې په يوه ځرگنده ځاى کې پراته ول چې هغوى ددوى ليدل نورنشوزغملی.

دطالبانودامريت د پوستې د بام په سر دځوانټنونواو ودانۍ ته د ورختونکواو راوتونکوکسانو د درنې گڼه گونې لـه املـه پېژنـدل کېده. ددفاع په خاطرځوداني

[1] يو ډول روسي جوړ د الوتکې ضد توپ چې دوه جوړه خولې لري، او د روسي پوځونو پاتي شوني دي. ژباړن

اېـم 14.5 ملـي متـره درنـې ماشـين ګنـې اېښـودل شـوې وې. هيلـه داوه چـې دبمبارۍ پروخت به د دغه برخې مسول جګپورۍ افسر ويده وي.

څلورم هدف د اېم۳۰ ډوله توپ يونټ او دوه درنه توپونه چې دلومړۍ کرښې څخه تقريبا يوميل وروسته ځای په ځای شوي وو، و. دغـه توپخانې تازه جوړې شوې وې واضحً دکومې ژر پېښـېدونکې پېښـې پـه وړانـدې ددفـاع دزياتولوپـه خاطر! د سوفلام(SOFLAM) لايزر چې بربنډ و پـه سترګونه ليدل کېږي. د ودانۍ يوې ډلې ته چې لومړۍ هدف و، وروړسېد. هوايي تکتيکې ماهر اوس د راروانې اېـف اې/18 ډولـه الـوتکې لـه پيلـوټ سـره دمخـابرې لـه لارې پـه اړيکـه کـې وه. دالـوتکې غـږ يوناڅاپـه لوړشـو. کـوچنی څنـډ شـو، بيـا دهـوايي تکتيکـې افسـر وويل:خپـل دوربينونـه مـوليرې کړی!هريـوه دشـپې دوربينونـه غيرفعـال کړل. پـه همدې شېبه کې ورانوونکې رڼا پړک اولړزونکي غږ د جګړې په ډګرتېرشو. داوړد نـارنجي اوســور رنګـه تـوپ اسـمان تـه پورتــه اود ځــان ســره يــې خــاورې، اوسپنې،جســدونه پورتــه اوديوشــمېرطالب جنګيــاليودخوب ځــای چــې اوس پرکنډواله بدل و،څخه خوځېدونکې لوګي داسمان په لورې پورته کېدل. دلږځنډ وروسته دسوفلام لايزرپه دوهم باندې وربرابر کړ. دوهمه اېـف ای اې-18 ډوله الوتکه راروانه اونښه يـې تصديق کړه. بيا هـم دغبرګوانجنونـوغږ غږمبهارکاوه او يوبل توپ هوا ته پورته شو. سټان داخل وليده چـې د ټـي-55 پـه سرکوچنی برج په هـوا کـې تاوېـده اودموقيعـت څخـه دو يلـې شـوي اوسـپنې پړکـې،تـورې دوړې، دلرګيواونورو اوسپنوټوټې داسمان په لورې پورتـه شـول. لـومړۍ الـوتکې يوپراخه څرخ وکړاو دوهمه هغه يې د بريد دپاره راروانه وه. سوفلام لايزر دطالبانوپوسته په نښه او پيلوټ هدف تصديق کړ. بم په همدغه ودانـۍ نـه بلکـه ترڅنګ پـه بلـه ودانـۍ وغورځېـده خوچاودنـه دومـره ځـواکمنـه وه چـې د ودانـۍ منځ داور تـوپ روښانه اود ودانۍ کړکۍ چې دخښتوپه واسطه بندې شوې وې، والوځولې. پـه لومړۍ کرښې باندې بې سده شوي ټولوطالبانوپه ډزوپيل وکړ. زيډ اېس يـو-23 دالوتکوضد توپ يې اسمان ته په هر لورې په دې هيلـه چـې نـا ليدلې الوتکه بـه ولګيږي،و ډزولې. کلاشينکوفونه، درنې ماشين ګنې اوحتی توپـانچې يـې هـم پـه هر لوري ډزېدلې. د سټان په سربانډې يـوه ګـولۍ تېـره شـوه اوڅوګـولۍ ددوی ترمنځ دخاوروپه څلي کې ولګېدلې. سټان خپل ځان ټيټ کړاو يـوازې سر يـې د خاوروڅلي څخه ددې دپاره چې څلورم هدف دبمبارپه وخـت کـې وګـوري، راوتلـی و.

څلـورم پينځـه سـوه پاونـډه وزن لرونکـی بـم د دوو اېـم-30 ډولـه توپونـوترمنځ وچاودېــده اوچــاودنې هواتــه پورتــه اوپــه بــدرنګ شــکل يــې واړول. بيــا دټوپکودمرمېوټيټې چـاودنې پيل شـوې اود اوبـه شـوي اوسـپنې پړکـې اوتالنده

چاودنې اسمان ته پورته شولې. دطالبانودکرښوسره نږدې ژرودرېدلې اوکسان ټول دراغورځېدونکودېبرواوداوسپنې له ټوټوځخه په غاړه کې پټ شول. هوايي تکتيکې افسر له دې امله چې نوموړودوه پيلوټانوښه دنده اجرا کړله،مننه وکړله. دخاورودځلي ترشا کسانوديوله بل سره په خوښۍ سره لاسونه ورکړل. تردغه مهاله نوموړي بريد ترټولوغوره بريد و چې دوی دغوښتنې سره سم ترسره شو. سبا سهار به دبدلون لپاره جنرال بسم الله خان خوشاله وي. سټان ددې دپاره چې دتروريزم په ضد رياست ته ددغه بريا په اړه رپوټ وليکي اوهغوی ته هغه پيغام چې که چېرې الوتکه دهغوی په واک کې ورکړل شي په دغه لومړۍ کرښه کې به بمباري ځومره اغېزمنه اوځومره ويجاړتيا منځ ته راوړي، ورسوي. دکابل سره په لومړۍ کرښه په همغه شپه نورې الوتکې دبمبارۍ لپاره را ونه لېږل شوې.

## دوه ځلوېښتم څپرکی

داکتوبرپه اته ويشتمه په دره کې هوا سره،اسمان پاک واودغرونواودانجمن په سر دهوا دحالاتوکتونکي د الوتنې اجازه ورکړله. زموږپيلوټان دوشنبې ته د عارف دلېږلواو له هغې خوا د ګروپ ځايناستو او د اکمالاتو راوړلو لپاره چمتو وو.

د الوتکې انجينران په همغه سهار د چورلکې په معاينه کولو باندې د تېرې ورځې د دوړو د توپان سره د مخامخ کېدلو زيات وخت ولګاوه څو پاتې ستونزې له منځه يوسي. ممتاز انجينر عارف هوايي ډګر ته د الوتنې لپاره د مهالوېش څخه نيم ساعت وړاندې ولېرداوه. ما له عارف سره د جنرال فرانک د ليدنې په اړه خبرې اترې وکړې.

اړتيا نه وه چې ما عارف ته له دې چې راتلونکې ليدنه د جنرال فهيم او د شمالي ټلوالې لپاره ځومره ارزښت لري، يادونه وکړم. خو ما ورته يادونه وکړله چې دنوموړې ليدنې لپاره بايد جنرال فهيم ښه چمتو وي ځکه جنرال فرانک غواړي چې د جنرال فهيم د ځواکونو د کچې او تشکېل او په کابل باندې د بريد پلان،د تخار سره په لومړۍ کرښه باندې د بريد او په پايله کې د تالقانو په ښار باندې د فشار راوړلو د څرنګوالي په اړه به د مالوماتو غوښتنه کوي.

په ورته وخت کې بايد جنرال فهيم د جنرال فرانک څخه د راتلونکې جګړې لپاره د هوايي بمبارۍ د مرستې او هر هغه اړين اکمالاتو او توکو چې د جګړې لپاره د سرتېرو د پوره چمتووالي لپاره کار وي، واضحٌ غوښتنه وکړي.

همدارنګه جنرال به دا پوښتنه چې ولې جنرال فهيم په طالبانو باندې تراوسه بريد نه دی کړی، په داسې حال کې چې جنرال دوستم او عطا دواړه د مزارشريف په سيمه کې د بريد په حال کې په کراره خو ثابت پرمختګ کوي، مطرح کوي. ما ددې دپاره چې جنرال فهيم او په خپلو ځوابونو کې سېده او

ربنتينی وي، ټينګه سپارښتنه وکړله. جنرال فرانک ددغه ليدنې وروسته پرجنرال فهيم او د هغه په توان باندې چې وکولی شي په بريا سره يو پلان شوی بريد پرمخ بوځي، بايد ډاډمن ولاړ شي.

زما جيپ موټر د پنجشير د سيند په نيمايې کې د اوبو شړېهار او د باسکټبال توپ په اندازه په غټو تيرو باندې د ختلو له امله ښکته او پورته کېده. چورلکه هم هوا ته پورته او د هوا په لورې والوتله. ما چورلکه ترهغې چې په اسمان کې په يوه وړه نقطه بدله شوله کتله او ددې هيله مند وم چې جنرال فهيم د مېز په هاخوا د زورور امريکايي افسرانو سره د کېناستلو پرمهال پرځان باوري واوسي.

يو ساعت وروسته زه، ريک او کريس د کار مېز سره د سهار دتلګرافونو د لوستلو لپاره ناست و او له چورلکې مخابره وشوه. ګريګ په ټليفون باندې خبرې کولې او خبر يې راکړ چې د تيلو پايپ خراب او فلترې يې بندې دي. دوی غواړي د فيض اباد څخه لږ هاخوا چورلکه د جوړولو لپاره ښکته کړي.

هغه ارام ښکارېده ځکه چې په دښته کې د چورلکې بېړنی او ناڅپي ښکته کېدنه يوه ورځنی پېښه وه. هغه مخابره قطع کړه او ويې ويل چې د ستونزې دکچې د ځرنګوالي د پوهېدا په پايله کې به هغوی له مور سره اړيکه ونيسي.

د دوه ورځو په بهير کې دا د الوتکې دوهمه جدي ستونزه وه. ما د چورلکې په اړه يو ځل د خندا وړ تعريف اورېدلی و. د چورلکې د فعاليت پر مهال لس زره خوځېدونکې پرزې په خواره کلکه توګه د جلا کېدلو کوښښ کوي او دلته ستونزې په تيلو کې د خاورو شتوالی و چې مور يې کارولو ته اړ و. سيمه ييز پټرول چې مور د جنراتورونه لپاه کارول دومره خيرن ول چې ټانکی ته مو د جرابې(فلتر. ژباړن) له لارې اچول فلټر به يې بيا هم ډېر ژر خيرن کړ . کله خو به جنراټور يو ساعت وروسته هم بند شو او زمور د اړيکو افسران به يې ښکنځل او لعنت ويلو ته اړباسل. بک وويل چې په عادي ډوله هغه د تيلو فلټر په عادي ډول د هر اته ساعته سفر وروسته بدلول خو اوس اړ دی چې هر دوه يا درې ساعته وروسته سربيره پردې چې دا يو جدي حالت و ځکه چې فيض اباد د هندوکش په ليرې پرته سيمه کې دی او د کېنتاستلو لپاره ناکافي اندازه ځای پيدا کېږي.

په خپل منځ کې مو دا پوښتنه چې که چېرې په داسې حال کې چې چورلکه د غرونو په سر وای او د کېناستلو لپاره ځای هم نه وای، فلټر هم د خاورو له امله وربند وای څه به پېښ وای،مطرح نه کړله.

زه نه پوهېدم چې ددغه ناپوښتل شوي پوښتنې د ځواب سره به زه څو ورځې وروسته زه په خپله مخامخ کېږم. دېرش دقيقې وروسته ګريګ خبر راکړ چې د تيلو فلټرونه يې بدل کړل او اوس انجنونه هم نرم چلېږي. دوی دوشنبې ته بيا په خوځېدو ول. هغوی پلان درلود چې په دوشنبه کې چورلکه په احيتاط

سره معاينه او ټانکۍ يې په تېلو پرېمينځې او له پاکه تېلو يې ډکه کړي. دوی شپه په دوشنبه کې تېره کړي او راتلونکی مازديگر راگرځېدل. همغه مازديگر ما ځان بيا هم ناروغ احساس کړ. بس نو نوره مې د څه هيله کړې وای؟ زما د ناروغی نښو او نښانو د نه راتگ يوه اونۍ تېرېدله. په همغه ماښام خوب ته پرتليز ډول وختي لاړم او په لاس جوړ شوي بوتلان مې لاس رسي ته نږدې کېښودل.

## دري څلوېښتم څپرکی

راتلونکې ورځ د اکتوبر نهه ويشتمه زما لپاره د سهار په څلور بجو د طبيعت لخوا د نابېرې کړيکې سره پيل شوه. زه دې ته چې سيستم مې دومره وخت حوصله کړې وه، حيران وم. د ټگامټ(يو ډول مشروبات. ژباړن) له يوه غوړپ سره مې د سيپرو يوه ټابلېټ تېره کړله او بيا د ځان پرېمنځلو لپاره د اوبو د تودولو لپاره وخوځېدلم. هوا حالاتو هم زما حالاتو ته ورتوالی درلود. ټيټې خړې وريځې وې او د باران گواښ يې کاوه.

لږ وروسته د دوشنبې څخه تلگراف راغی او زموږ د چورلکې موقف يې تصديق کړی و. دوی پلان درلود چې د تيلو ټانکۍ په همغه سهار پرېمينځي او که هر څه سم وي نو د الوتکې ټول کارکوونکي به د سفر لپاره د راتلونکي ماسپښين په دووه بجو الوتلو ته چمتو وي.

تلگراف د تاشکند څخه دوشنبې ته زما د ځايناستي دوهم گيري سفر هم تصديق کاوه. مهالوېش سره سم به د گروپ نور دری غړي نن ماسپښين په الوتکه کې راشي خو دوهم گيري به د جنرال فرانک سره په غونډه کې د گډون لپاره په دوشنبه کې پاتې شي.

زه ددې دپاره چې دوهم گيري زما د ځايناستي په توگه خوښ شوی و، خوښ وم. کله چې زه د مسلک اړوند په شرکت کې ښوونکې وم،هغه زما شاگرد و. هغه څو کاله ايراني عمليات اداره کړي وو. سره له دې چې هغه په افغان عملياتو کې نيغه تجربه نه درلوده، د هغه پارسي ژبه زده وه او دلته په دره کې پکارېدله.

ما او ريک د ډلټا گروپ د دريو سرتېرو سره چې د ډگروال اېچ او د ځانگړو عملياتو د قوماندې او د کنټرول عناصرو دگروپ سره يو ځای راغلی وو، ليدنه وکړه.

دوی د ځانگړو ځواکونو د گروپ له ټولو سرتېرو سره چې موږ ورسره تراوسه پېژندلي وو، د عمر په لحاظ ځوانان وو او د دوی له ډلې څخه يې يو هم دلته په افغانستان کې له حالاتو څخه په پوره ډول خبر نه وو.

دهغـو ماموریـت د شـلټر نـو موسسـې د زنـدانیانو د شـوني خلاصـون او ژغورنې لپاره د لومړني پلان جوړول و نو په دې اساس تراوسه چې موږ هر څه په دې اړوند ترلاس کړی وو، هغوی ته تشریح کړل. کریس په نوبت سره ددې پلان په اړه ټـول مالومـات ورکـړل. هغـه ورتـه د طالبـانو خـوی او ځـانګړنې،د هغـوی جوړښت او د قومي او کورنیـو اړیکـو د جوړښـت په اړه د دې لپاره چې د عارف افسـر د طالبـانو د اسـتخباراتو افسـر او د زنـدان د چـارواکو تـرمنځ د زنـدانیانو د خلاصون لپاره په ترسره کېدونکو خبرو اترو باندې پـوه وي، مالومـات ورکـړل. مـوږ دوی ته د لومړیو کرښو څخه د نږدې لیدنې لپاره سپارښتنه وکړله څو د نوموړوپه دفاعي موقیعتونو باندې د زنـدانیانو د تېرولـو پرمهـال پـه شـته ربړونـو بانـدې پـوه شي.

د لومړیو کرښو د لیدنې او د څو نورو ورځو د خبرو اترو ورسته هغوی موږ تـه د جوړشوي پلان سره راغلل. دا یو بـل پخوانیـو پلـانون تـه ورتـه سـاده پلـان و! ډلټا ځواک یو غړی به د سیمه ایزو موټرو په یوه کوچني کاروان کې د شمالي ټـلوالې له کرښې تر شا کابل ته د نوي سـرک مخامخ کومې سـیمې تـه ولاړ شي. کـاروان به بیا د طالبانو ددومره زیاتو دفاعي موقیعتونو څخه تېریږي او پاټکونو څخه به د کابل پر نوي سـرک تر زندان پـورې د تېرېدلو هڅـه کـوي. دوی بـه بیـا د زنـدان لاره پیدا، زندانیان به له ځان سره را اخلـي او بیـا بـه د کابـل څخـه بهـر یـوه ټاکـل شـوي ځای ته لېږدوي او په پـای کـې بـه د امریکـې پـوځـې چـورلکـې زنـدانیان لـه سـیمې راوباسي. لازمه نه ده چې ووایم خو موږ قرارګا ته د هغوی د پاملرنې لپاره ددغه پلان په اړه هیڅ هم ونه لیکل.

زما په باور حتی سرتېري هم په دې پوهېدل چې پلان هم شونی نه دی او هـم د منلو وړ نه دی! د نوموړو سرتېرو څخه مو د ژغورنې د پلـان پـه اړه بیـا هـیڅ هـم وا نه اورېدل!

د همغه ماسپښین په څلورو بجو زموږ چورلکه په استنه کې د ګروپ د دریـو ځایناستو سره ښکته شوله. د ریک ځایناسـتی جـورج یـو کلـک او ډېـر ښـه شـهرت درلـودونکې افسـر و او د دوهـم ګیـري او جـورج پـه درلـودلـو سـره بـه ډلـه د بـاوري لاسونو په واک کې وي.

موږ دوی ته هرکلی وواېه. دا چې سټان ښکته په بګرام کې و او براد په تخار کې و، د خوب لپاره اضافه ځای هم ډېر و. د ماښام ډوډۍ څخه وروسته مـو د تشریحاتو مرحله پیل کړله چې نوموړي نوي کسان په دره کې د حالاتو خبـر کـړو. موږ هغوی ممتاز او جان محمد تـه وروپېژنـدل. بیـا مـو د ډګـروال اېـچ او د هغـه ګروپ ته د ورپېژندلو لپاره بدرګه کړل. ماجورج ته وویل چې راتلونکې سهار بـه د پیسو مسولیت ورته وسپارم دا په دې مانـا چـې پیسـې بـه پـه رسـمي ډول ګڼـل

کېږي او بيا به جورج زما د خونديتوب لپاره د پيسو رسيد پاڼه امضا کوي. مور قرارګا ته يو تلګرافو وليږه څو هغوی دې ته د ګروپ ځايناستو د رارسېدلو له امله خبر کړو. زه بيا هم په پرتليزه توګه وختي ويده شوم، ځکه اوس هم په نس کې له ګډوډۍ څخه ځوريدلم.

## څلور څلوېښتم څپرکی

زمور د پلان سره سم زه مېوري، کريس او ريک د دېرشم اکتوبر په ماسپښين بايد دوشنبې ته د جنرال فرانک او جنرال فهيم تر مېنځ په ليدنه کې د ګډون لپاره سفر کړی وای.

دا به واشنګټن ته زموږدبېرته ګرځېدلو سفر لومړی ګام وي. زه بايد له دې چې دا پلانونه شنډيږي، له لومړي سر پوهېدلای. په دره کې داکتوبردېرشم سهار په درنو او ټيټو وريځو پيل شو. دهواکتونکي په رپوټ دغرونوپه سر درنې واورې لوېدلې وې او د وړاندوينې مطابق به هوا لړترلږه د ټولې ورځې په بهير کې همدا ډول وي.

موږپه دره کې ترسبا پورې پاتې وو. زه پوهېدم چې هانک به دجنرال فهيم دشمالي ټلوالې دځواکونودملاتړپه خاطرزموږدبم غورځولودستراتيژۍ دپاره زما له تبصروڅخه ملاتړوکړي خوما غوښتل چې هلته وای څوپه دواړوخواوو معامله کې خپلې کتنې او مشاهدې وړدننه اوښايي چې دجنرال فرانک سره دپرمخ ګام اخيستلولپاره دښې پرېکړې په اخيستلوکې مرسته وکړم.

په دره او د کابل سره په لومړی کرښه باندې به دومره ګڼه ګوڼه نه وي. محدوده بمباري چې په عادي ډول ترسره کېږي هغه به هم دهوا دخرابوالي له امله په ټپه ولاړه اودانجينرعارف په نشتوالي کې به زموږ پر رواناواستخباراتي پروګرامونولکه دشلټرنودموسسې دزندانيانولپاره دپلان اويا داسامه بن لادن د لورپورو د رانيولو او د عملياتو د انسجام لپاره ډېر لږ اوپراتيفي فعاليت روان وي.

زه د جورج سره د کوټې په غولي باندې د پيسو د ګڼلو لپاره کېناستلم. پيسې مو د بنډلونو څخه په ډير پاوم سره وشمېرلې.

د پيسو يوه دلۍ به مې وګڼله. د مقدار د ليکلو لپاره به مې يو کاغذ ورباندې سرېښ او بيا به مې جورج ته ورسپارله. هغه به ګڼلې او مقدار به مو سره تصديق کاوه. د هرې دلۍ سره مو همدې ته ورته پړاو تکراروه. ما له ځان سره د پيسو دورکړې او تسليمۍ اصلي اسنادو په ګډون د هغه چې په دغه کتاب کې يادې شوې او ځينې نورې چې په دې کتاب کې نشته، درلودل!

په دره کې زموږ د دري دېرشو ورځو په بهير کې ما ۹.۴ مليونه ډالر ورکړل. جورج د لږ څه باندې اته مليونه ډالرو لپاره لاسليک وکړ او زه له دې امله چې

مسولیت هغه ته ورپه غاړه شو، خوښ وم.

ما جان محمد پیدا کړ او هغه ته مې په کلي کې د لومړني ښوونځي د بیاجوړولو او هغه ته د نویو توکو د رانیولو لپاره لس زره ډالر ورکړل. د ښوونځي دواړه ودانۍ چې یوازې د تېرو اتلسو میاشتو په بهیر کې بیا رغول شوې وې، هغه اړتیا لکه کړکۍ، دروازې، مېزونه او تورې تختې نه لرلې.

ما د پیسو ورکړې ددغه پلان څخه هغه ته له پخوا نه و ویلې هغه هک پک ولې د دغه عمل څخه خوښ و. هغه وویل چې د غرمې وروسته به ولاړ شي او له ښوونکو به وغواړي چې د مهمې بیارغونې او همدارنګه د ښوونځیو د ماشومانو اړتیاو وړ توکو لپاره یو لړلیک برابر کړي.

هغه ما ته کلکه غاړه راکړه او ویې ویل چې کلی به زموږ ګروپ هیڅ هېر نه کړي. په مخ یې اوښکې راغلې او درک مې کړه چې د ده د مېلمه پالنې او د بدرګې د مننې لپاره مې ښه عمل ترسره کړی و.

ما له هغه وغوښتل چې د کور ټول کارکوونکي په انګړ کې د غرمې لپ وړاندې راټول کړي څو زموږ ګروپ د هغوی څخه د مننې لپاره د پیسو سوغات ورکړي. هغه په خوشالۍ سره ورغی.

ما کارکونکو ته ددغه وړاندیز لپاره د ګروپ شته غړي ټول راغونډ کړل. هر یوه اشپز ته— (تر دغه مهاله مو دوه اشپزان لرل که څه هم چې له دواړو یې یو ښه اشپز هم نه جوړېده) دوه سوه ډالر ورکړل.

د کارکونکو ځوانانو هر یوه ته مو سل سل ډالر او حتی د کلي ډوډۍ پخوونکي(نانوای)ته چې تر کوره یې ډوډۍ راوړله، سل ډالر ترلاسه کړل. د کلي نایي هم د خپلو هڅو لپاره سل ډالر ترلاسه کړل.

هغه د تېرو څو اونیو پرمهال هره اونۍ زموږ دفتر ته راته او زموږ له هیڅ یوه یې پیسې نه اخیستلې. وروسته مې جان محمد را ګوښې کړ او هغه ته مې د شخصي لګښت لپاره پنځلس سوه ډالر ورکړل. هغه په دره کې زموږ د ژوند د هوسا کولو، د خوړو ښه کولو او زموږ د سالمې روغتیا لپاره دومره هڅې وکړې چې د ورکړل شویو پیسو هر واحد لیاقت یې درلود. د غرمې په مهال د افغاني کارکونکو یوه خوشاله ډله زموږ په خدمت کې وه! د قرارګاه څخه تلګرافونو یو غمجن خبر درلود.

د کابل سره پر بدبختي او د شمالي ټلوالې سره د معاملې پرځرنګوالي مناقشو دوام پیداکړی و. د بم غورځونې کمپاین ته د پاملرنې نشتوالی د اندېښنې وړ و ځکه چې تر دې مهاله زموږ هڅو د طالبانو د ځواکونو د جګړې په توان او رضایت باندې ډېره لږه اغېزه کړې وه.

ریک په خوندي ټلیفون باندې د خبرو کولو لپاره ډېروخت ولګاوه څو زموږ د

سفر پلان په هغه صورت کې چې موږ د درې څخه په وتلو بريالي شو،ترتيب کړي. هغه شمېر امريکايي نظامي او نورې الوتکې چې اوسمهال يې د واشنګټن،فرانکفورټ او د تاشکند ترمنځ الوتنې کولې، هيله مند و چې زموږ کوچنی ګروپ به د سوداګريزو الوتکو پرځای په نوموړو الوتکو کې الوتنه وکړو.
په همغه ماښام ما او ريک په انګړ کې سېګار( يو ډول سګريټ چې د عادي هغو څخه يې غټ دي. ژباړن) وڅکول. د باران له دوړو او خاخکو څخه د امن لپاره دېوال ته نېږدې ودرېدلو. زما فکرونه په دوشنبه او هلته په کېدونکې غونډه باندې راتاوېدل. ما هم د هوا په څېر ځان ګډوډ احساساوه نو ځکه بيا هم نسبتاً وختي ويده شوم.

## پنځه څلوېښتم څپرکی

د هالووين(د اکتوبر يو دېرشمه د عيسويانو مذهبي شپه. ژباړن) سهار لوند او سوړ پيل شو خو په ماسپښين کې د هوا د ماتېدلو وړاندوينه شوې وه. ما د ماسپښين پورې له دوشنبه د ليدنې د پيل په اړه د تلګراف هيله درلوده خو ما او ريک دوشنبه ته ټليفون وکړ او له هانک سره مو اړيکه ټينګه کړله.
هغه ملاتړ وښود او ويې ويل چې ليدنه ښه وه خو د ليدنې زياته مايوسونکې برخه يې د فهيم کړنه او ښودنه وه. ليدنه د جنرال فرانک په لويه نظامي سي -۱۷ ډوله الوتکه چې هغه د ګرځنده دفتر په توګه کاروله، ترسره شوې وه.
هانک باور درلود چې د ليدنې چاپېريال فهيم رالاندې کړی و ځکه چې جنرال فرانک او د هغه لوړپوړي افسران(ټول جنرالان و. ليکوال) او د سمندري ځواکونو مشر يوه پلو ته او جنرال فهيم،عارف او د يو ځوان ژباړن بل لورې ته وو.
جنرال فرانک د فهيم څخه په کابل باندې د بريد طرحه اوله هغه يې د بريد د پيل نېټې د اېښودلو لپاره فشار راوړ. په ځواب کې فهيم د کابل سره خپل موقيعت او دده په وړاندې د طالبانو او د عرب جنګيالو د دفاعي موقيعتونو زور طرح کړ.
فهيم وويل چې له هغه سره وعده شوې وه چې د ځانګړو ځواکونو شته والی به درنه بمباري منځ ته راوړي خو هغه ترسره نه شوه او د بمبارۍ محدوديت ته د اغېزې او پراختيا له پلوه دوام ورکړل شو. جنرال فرانک د هغه څخه د کابل سره په لومړۍ کړښه او همدارنګه د تخار څخه د تالقانو په لورې د بريد کولوځانګړی پلان او وخت څرګندولو لپاره ټينګار وکړ.
جنرال فهيم له دغه غوښتنې سره يو څه وارخطا شو خو بيا هم وتوانيده چې

ځو تشریح کړي چې د ده ځواکونه په یوازې ځان نه شي کولای چې د طالبانو او د عرب جنګیالو دفاعي کربښې ماتې کړي. که هغه دا ځواک لرلای نو هغه به‌۸۱ له وړاندې خپله برید ترسره کړی وای.

هغه وویل چې له ژمنې سره سم بمباري باید ترسره شي ځو طالبان کمزوري شي او که جنرال فرانک د دغه ډول همکارۍ ژمنه نه شي کولای نو فهیم به په خپله برید ترسره کړي څکه چې هغوی د غونډیو په سرونو په دفاعي موقیعتونو کې بل ژمی نه شي زغملای!

هانک وویل چې جنرال فراک د کابل سره په لومړی کرښه باندې د بمبارۍ راغونډولو ژمنه وکړله او له فهیم یې وغوښتل چې په پنجشیر کې د سي، ای، اې او ډګروال اپچ سره خپل پلانونه شریک کړي.

په عمومي ډول لیدنه بریالۍ وه، سره له دې چې جنرال فرانک له فهیم څخه په پوره ډول نه و اغېزمن شوی خو هغه باور درلود چې له فهیم سره په ګډه کار کولای شي.

په طالبانو باندې د بمبارۍ د ستراتیژۍ بدلول ربښتیا هم یو ښه خبر و. دا هغه څه وو چې مور ورته د بمبارۍ د پیل څخه چې د اکتوبر پر اوومه نېټه یانې څلرویشت ورځې وړاندې وه، په هیله وو. که چېرې د بمبارۍ ستراتیژي بدلون وموميي او مورطالبان وټکوو، زه ډاډه یم چې شمالي ټلواله به له دفاعي کربښو راووځي او د کابل ښندو ته به په دوه ورځو کې ورسیږي.

د ورځې په دولس نیمو بجو ممتاز دفتر ته راغی او ویې ویل چې د انجمن په سر هوا رڼا ده. په دره کې وریځې پورته شوې او لمر هم سر ښکاره کړی و. دوشنبې ته د سفر کولو لپاره مو پرېکړه هر څومره ژر چې ډګر او چورلکه د الوتلو لپاره چمتو شي، ونیوله.

مور ځلورو ببړنی خدای په اماني وکړه او توکي مو دباندې موټرو ته وروباسل او په استنه کې د هوايي ډګر په لورې وخوځېدلو. که څه هم چې دنده مو په نیمایې کې پرې ایښې وه، زه هیله مندوم. د دوشنبې څخه د هانک خبر مثت و. د امریکې د پوځ په مرسته به فهیم وکولای شي چې په دواړو مهمو کربښو کې په اسانی سره بریا ترلاسه کړي. په شمال کې د شمالی ټلوالې ځواکونو طالبان په کراره د مزار ښار ته ورغونډول. که څه هم چې طالبان پرې نه پوهېدل خو دا د طالبانو د حکومت د راپرځېدا پیل و! زمور ګروپ د مسلکې کسانو په لاسونو کې و. جورج هرڅه په والکه کې اخېستي وو او دوهم ګیري به یا د چورلکې سره د راګرځېدلو په مهال او یا به سبا ته راوګرځي.

مور خپل توکي ځای په ځای کړل. زه او ریک په هغه چوکي باندې چې د ښکته غبرګېدلو او د کارګو د لوېې دروازې د مخکنې غاړې سره تړلې وه،

کېناستلو. د نومړو چوکيو سره يوه کړکۍ وي او د وړاندينۍ برخې څخه ډېرې هوسا وي خو بيا هم تاوان يې دا و چې دا چوکۍ د چورلکې هغه برخه کې چې په اسانۍ سره خلاصېږي او د دوه لويو پټيو(رسۍ) سره (ما دځـواکمنې رسۍ دعا کوله. ليکوال) تړلې وي.ريک زما مخامخ چوکۍ کې کېناست او يو بل ته مو ګټې ګوتې برابرې کړې. د هميشه په څېر، چورلکه د شمال په لورې لوړې ارتفاع ته والوتله.

د کړکۍ بهر منظره د شپږويشتم سپټمبر پر مهال چې موږ پرې را تېر شوي و په پرتليز ډول زيږه او شنډه وه. تر دېرشو دقيقو پورې مو يوازې د غرونو په تېرو څوکو واوره ليدله. کله چې د ۱۴۵۰۰ فوټه لوړ د انجمن کنډو سر ته پورته شوو لاندې مو درنه واوره وليدله. نور نو د راتلونکي کال تر پيل پورې دغه کنډو د موټرو پر مخه تړل کېږي.

غونډۍ په بالغو او له تيرو ډکو غرونو باندې بدلېدله او د واورو غرونه په داسې حال کې چې چورلکه پرغرونو ورختله، له موږ ډېر لوړېدل.

بک د پيلوټ برخې ته ورغی او د ايډ او ګريګ ترڅنګ ودرېد. ما فکر وکړ چې هغه د ښې منظرې د ليدلو په هيله ولاړ خو کله چې د انجمن کنډو سر ته ورپورته شوو، زمورتر مخه په دره کې د درنو خړرنګه وريځو په ليدلو چې تړانګه يې ډکوله،هک پک کړلو.

د چورلکې دواړو غاړو ته د غرونو لوړې څوکې د واورو ډکې او راوتلې وې. نابېره د درنه باد سره مخامخ شوو. چورلکه وړاندې وروسته او ښکته او پورته ولړزيدله. موږ د راګرځېدلو په حال کې و او چورلکه بيا دلوړې ارتفاع په لورې د ختلو پيل وکړ. بک د پيلوټ له ځای څخه راغی او سر يې وښوراوه. موږ درې ته د بيا ګرځېدلو په حال کې و. د چورلکې څخه د کوزېدلو په مهال بک وويل: ياره له خطره ډکه پېښه وه! ريک وويل هو د وريځې موږه له خطره ډکه ښکارېدله. بک هم سر وښوراوه. ايډ دوشنبې ته ټليفون وکړ او هغوی هم وويل چې وريځې څو زره فوټه را ښکته شوي دي او په دغه غرونو باندې د الوتنې کول د روسې لوبې روليټ(د قيمار لپاره د څرخ ډوله تخته يا خو هغه لوبه چې په ګردی شاجوره کې يو مرمۍ اچوي او قمار ته ناست ټول کسان يې په نوبت سره په سر ايږدي او ماشه ټينګوي.ژباړن) ته ورته لوبه وي. يوازينۍ ناوړه پېښه به د تيلو د فلټر د خيرن کېدلو له امله د سره غمي بلېدل وي ځکه په هغه غرونو کې کېناستل شوني نه ول. له دې ځای څخه په هر ځل تيرېدا سره، به زه په خولو کې خيشت پيشت وم! د مازديګر پنځه بجې لکه په مهالويش چې وېشل شوي وي، په دره باندې وريځې خلاصې او شړکنده باران يې راپرېښود. مخکې هم دلته باران شوی و خو دپرخې څخه لړ ګرندی و. دلته زموږ د شتون په بهير کې دا لومړی باران و،

زه حیران وم چې زموږ د کور بام چې د لمر په واسطه د کلکې شوې (خامې) خټې څخه جوړ شوی و، څنګه ددغه اورښت مقاومت کوي؟
ما جان محمد ته د شپې د ډوډۍ د تیارولو هدایت کاوه، هغه ډاډ راکړ چې بام نه څاڅیږي. ما هڅه وکړه چې پر خبرو یې باور وکړم. ددغه ودانۍ په چتونو باندې ودانیزه کار بې جوړې و او د کار نمونه مو په بارک کلي کې زموږ د دفتر په بام باندې په خپله ولیدله. داسې ښکارېدله چې جوړونکي لومړی دېوالونه جوړ کړي او بیا یې په دېوالونو باندې د ګاډرو پرځای دولس اینچه چارتراش تېرونه چې ټولو یې په منځ کې تقریبا یو ګز واټن درلود، اچولي ول. د تېرونو په سر یې د کریټونو تختې اچولې وې. په لرګیو باندې روسي ژبې حروف اوس هم ښکارېدل. په سر یې د بوسو او خټو ګډ شوی مخلوط چې تاوده لمر د تیږي په ډولکلک کړی و،اچولی و.

بیا هم که خټه هرڅومره سخته هم شي،خټه خو خټه وي . باران هم تیز و. زه خپلې کوټې ته د شپې په اته بجو او دېرشو دقیقو راوګرځېدلم څو ارام او د بي بي سي د لسم ځل هغه تکراري خبر پرځای چې د طالبانو په وړاندې د امریکې د بمبارۍ کمپاین یې ناکام ګاڼه، کتاب ولولم. کوټې ته د دروازې د خلاصولو پرمهال د اوبو د څاڅکو د غږ له هرکلي سره مخامخ شوم. دکوټې په رڼا کې مې په دېوال د اوبو ویاله ولیدله چې په غولي باندې یې په کراره سره ډنډ جوړاوه. جان محمد کسان راغونډ کړل او په کوټه کې دننه او د کوټې شاوخوا کې یې د چېنایانو د اور ډلې په شان هاخوا دېخوا وګرځېدل. ستونزه یې پیدا کړه او د دومره شیانو له ډلې څخه یې د ټینس د لوبې یو توپ چې د بام په نالۍ کې بند شوی و، پیدا کړ. کله چې هغه لیرې او ولاړې اوبه روانې شي، بیا د اوبو د څڅېدلو بندول اسان کار و. د کوټې پاکول هم ګران کار و خو نوموړي هلکان په دغه دنده کې په تجربو کې پاخه ښکارېدل ، کوټه هم ژر منظمه شوله. زه د خوب ځای ته لاړم خو خوب په اسانۍ نه راته ځکه چې په غوږ کې مې په غولي باندې د اوبو د څڅېدلو غږ انګازې کولې. ما باید اندېښنه نه وای کړې ځکه چې چتونه هیڅکله هم نه څاڅي!

## اومه برخه
## د بمبارۍ زیاتېدنه
## ۱-۴ نومبر ۲۰۰۱
## شپږ څلوېښتم څپرکی

راتلونکی سهار چې د اکټوبر لومړۍ نېټه وه، هم دتېرې شپې په کچه لنده وه

، باران دوام وکړ. توپان نو رهم چټک شواواوسمهال دانجمن په کنډواودشمالي لوري په غرونوهم اوربښت کېده. ژمی په بيړه راښکارېده. دپينځو راتلونکي ورځولپاره هم هوا خرابه اټکل شوې وه.

ريک کوښښ کاوه چې انجمن دغرونوپه سر دالوتنې اود درې څخه دوتنې اورانونتنې لپاره بله لارولټوي. په ګل بهارکې زمورډهوايي ډګردجوړېدوکار دپای ته د رسېدلوڅخه دوه اونۍ تېرېږي ،تراوسه مو هم ترې ګټه نه وه اخستلې.

ريک فکرکاوه چې په منځنۍکچه ثابت وزرلرونکې الوتکه چې تاشکند ته په نږدې وختونوکې راغلی وه، ښايي چې دګل بهارله هوايي ډګرڅخه چې دهندوکش دغرونوپه سرالوتنې پرځای دشمال اولويديځ له لورې راننوځي،کارواخلي.

په تاشکند کې دهوايي عملياتوافسراوپيلوټان دګل بهار دهوايي ډګردکارولوسره هوکړه وکړه خولومړی بايد زمورډپيلوټانوله خوا سروې اوتصديق شوی وای. اېډ اوګريک هوکړه وکړه چې دهوا دحالاتودښه والي په پايله کې به ګل بهارته دسروې دترسره کولو لپاره الوتنه وکړي. دغرمې پرمهال له ستان سره چې په بګرام کې و، وغږيدلو،هغه وويل:چې دبمباری په سخت والي اويا چټکوالي کې هيڅ بدلون نه دی راغلی. او ډي اې-555 ګروپ اوس هم دکابل سره په لومړۍ کرښه باندې دبمبارۍ لپاره يوه الوتکه په واک کې ورکول کېدله. براډ دتخارڅخه همدې ته دورته حالت خبر راکړ. زه دهانک پرهغه خبرو چې ويل يې ددوشنبې ليدنه مثبت وه، نورهم شکمن کيدلم خوماسپښين ناوخت په بمبارۍ کې بدلون راغی ولې هغه دمزارشريف په لومړۍ کرښه باندې ترسره شوی و. دالفا ګروپ خبر راکړچې په همغه ورځ د بي٥٢ ډوله او بي١ ډوله الوتکوپه واسطه درنې بمبارۍ ترسره شوې چې دطالبانوشپږمهم موقيعتونه يې په نښه کړل. په مخابروکې دطالبانوخبرې چې شمالي ټلوالې ثبت کړې وې، څرګندوله چې طالبانوته درنه مرګ ژوبله چې شمېر يې د لوړپوړو قوماندانانو په ګډون ترذرې سوه کسانولوړېده، وراوښتی ده. شمالي ټلوالې داهم وويل چې دبمبارۍ له امله د وراوښتي ورانی اومرګ ژوبلې دپوره اندازې دڅرګندېدلو وروسته په مخابروکې دطالبانوخبرې دوبرې اوډار ډکې وې. پرته له دې دمخابروخبروداهم څرګندوله چې په کابل کې دپوځ قرارګاه په کندوز کې دطالبانوقوماندانانوته مزارشريف ته دلويو پوځي اکمالاتودورلېږلوامرکاوه.

کابل، دباميانو ولايت له لارې اووه سوه طالب جنګيالي مزارته ورلېږل خوپه سيمه کې دامريکې د درنې بمبارۍ له امله د هغوی ورتګ ستونزمن ښکارېده. دا هڅوونکی خبر وهغه څه نه وچې په دوشنبه کې يې ژمنه شوې وه خو لږ تر لږه دبمبارۍ په تمرکزکې پرمختګ و.

دمزارپه شاوخوا کې دجګړې په ډګر، دطالبانوترمنځ په مخابروکې له خبرو اترو ثرګندېده چې د درنې او دوام داره بمبارۍ اغېزې دبې تجربه طالب جنګياليوپه منځ کې ښکاره وېره اوډار رامنځ ته کړی دی. د ورځوپه موده دغه ډول فعاليت به هغه حقيقت چې طالبان رښتيا هم څومره کمزوري وو، ثبوت کړي. سره له دې ما ددغه ازميښتي دورې لپاره دکابل سره دجګړې ډګرته ترجيح ورکړې وای او د مزارسره دطالبانوماتې به داثبوت کړې وای چې د بمبارۍ دا نوی کمپاين سم کمپاين و. څو ورځې وړاندې پاپي د ډي وي ډي فلمونو يوپاکټ چې له ځان سره يې راوړی واوبيا يې هيرشوی و، پيدا کړ. هغه په بيړه سره زموږ يو سوني لپ ټاپ کمپيوټر د دفترځخه بهرپه دهليزکې برابرکړ، څو بېلابېل فلمونه مو وليدل. هغه لپ ټاپ کمپيوټر ته مو د غږ دکېفيت دښه کېدلولپاره اضافه لوډسپيکرې وروتړلې.

لـه بـده مرغـه دپـاپي دفلمونوخوښـه دومـره ښـه نـه وه. مـوږ داسـې غمي(فلمونه)لکه دلويې کوڅې دلويس دبانک غلا چې لوبغاړی يې يوځوان او ستوېم کوېن نومېده. بل فلم يې ددوزخ داتلانوځای دی ؛په نوم وچې دې فلم کې هم ستوېم کوېن رول لوبولی دی اودې ته ورته درې ياڅلورنورفلمونه هم وو.

داچې ستوېم کوېن کرداردغه دوه فلمونوورسته ځنګه ژوندی پاتې شوی، زما دفکر ليرې ځخه ليرې ده. تر ټولواوسنی فلم يې د اوستېن پاور د فلم دويمه برخه وه. زه هيڅ ونه توانيدم چې دا فلم له سره ترپايه وګورم. هرځل به چې کېناستم، يويا دوه صحنې به موکتلې. ما د فلم ځينې برخې خوښې شولې . په ځانګړي ډول د (زه کوچنی يم)له برخې ځخه تقريبا په همغه ماښام داووه نيموبجوپرمهال، دګروپ څوکسان په دهليزکې ستوېم کوېن يوفلم چې په کې ډېر المنيان يې وژل، ننداره کوله.دپيلوټانوله کوټې ځخه دغورځېدنې غږاوچېغې راغلې.

مافکروکړچې جګړه پيل شوه خوداغږدچت له امله چې سوری و، اوبه ترې رانښتلې چې دېوال ته دسرېښ شوي الماری ترشا تويدلې اوالماری يې مځکې ته راغورځولې. دچينيانوداورځخه دراتاوېدلوپه ډول ځوان افغانان دپيلوټانودکوټې په چت، د دهليزپه چت په بيړه سره ها خوا ديخوا وګرځېدل اوله کوټې ځخه يې لوند شوي توکي، لندې جامې، اوکتابونه واېستل. د ارامیتا وروسته مې يوه پياله کافي راواخيستله اودخپلې کوټې په لورې وخوځېدلم.

اوه څلوېښتم څپرکی

دتېرې ورځې دهوا وړاندوينه ناسمه وه. دنومبردوهمه ورځ سړه وه خووريځې نه وې.دهوا ناظردمخابرې له لارې خبرراکړچې دانجومن کنډودالوتنولپاره روڼ دی.
له دوشنبه سره مودمخابرې له لارې اړيکه ونيوه. هلته هم باران وخوپه هوايي ډگرکې هوايي عمليات ترسره کېدل. دتگ لپاره مې چمتووالی پيل کړ اوهغه جامې چې دتېروځوورځوپه مهال مې اغوستلې،بېرته خپل ورين (له وريوجوړ)بکس ته واچولې،داسې ښکارېدله چې دا سهاربه يوهوسا سهاروي.
خودبگرام څخه دستان په واسطه دمخابرې کړلوله امله دغه حالت بدلون وموند. د او ډي اې555 گروپ يوسرتېری دتېرودوه ورځوراهيسې ناروغ شوی و او د ځانگړو ځواکونو ډاکترنه وتوانيدلی چې دسرتېري دناروغی لامل څرگندکړي. هغه لوړه تبه اوتيزسردردي لرله چې حتی مورفين (يوډول د درد دارو. ژباړن)يې هم درد هوسا نه کړ. ډاکترورانديز وکړچې سرتېری بايد دازبکستان په کرشي خان اباد کې دځانگړوځواکونوهډې ته ولېږداوه. مورهم سمدستي غبرگون وښود. دالوتکې کارمندان چې ډاکتريې ترځنگ و، هوايي ډگرته لاړل ځوگل بهار ته الوتنه وکړي. ستان به د ۵۵۵ گروپ سره دسرتېري په لېږلو کې مرسته وکړي ځوپه گل بهارکې زمورچورلکې ته وروسپاري. بيا به له هغه ځايه استنې ته راشي ځومورځلورنفره چې دسفرپلان مودرلود،له ځان سره دوشنبې ته يوسي. ممتاز هوايي ډگرته له مورځلوروسره دمخه ښې لپاره لاړ. داځل خوزه ډاډه وم چې دوشنبې ته به ورسيږو. ما ورته وويل چې دمزارپه شاوخوا کې په بمبارۍ کې زياتوالی يوپرمختگ اوهمدارنگه دکابل اوتخارسره په لومړيوکرښوباندې د ورته بمبارۍ لپاره خبرداری دی. فکرنه کوم چې زما په خبرويې باورکړی وي خوموسکی شو اولاسونه موسره ورکړل. په نهه بجې زمورچورلکه دسويل خواڅخه يوه ناڅاپه رانوتله. موږدلاسونواوپښوپه وهلوسره وروختلواوريک اوزه بيا دکارگوپه برخه کې کېناستلو. سرتېری دچورلکې دمخکنی برخې په ښی خوا باندې پرتذکره کې واچول شو اوډاکتريې ترځنگ ناست و. زموږډاکترهم لاړځکه چې ده هم دهغوی ډاکترڅخه اضافه هڅه نشوه کولای. په نهه بجې او يوولس دقيقوموسفرپيل کړ. دانجمن کنډوپرلورې موهغه ثابت په مخ پورته ختل چې اوس مهال ورسره اشنا و،پيل کړ. سرتېري غلی و، اوله وريوجوړه شوي پيک داره خولی يې په سترگوايښې وه. ډاکتروويل چې سرتېري ښايي يوډول دمغزودپړسوب ناروغي ولري. که هغه وي، نوجدي اوبيړني طبي پاملرنې ته اړتيا لري.
هرڅه عادي اوتکراري ښکارېدل ترهغې چې بک مې يوځل بيا دپيلوټ ځای ته دخوځښت پرمهال وليد. مور يوازې دانجمن کنډوتېرې ځوکې ته وروپورته کېدلواوزما ترځنگ دکوچنی کړکي څخه بهر هوا پاکه ښکارېدله. بک دسپارلی‌برخې ته راغی اوډاکترته په غوږکې دخبروکولولپاره زنگون وواهه.

بک زمورخواته راوکتل. سریې وښوراوه اوپه لاس یې دبیا ګرځېدلواشاره وکړه. مورراوګرځېدواودرې ته وخوځېدلو، ایا زمورپه وړاندې هوا بدلون وکړ؟

زه پوهېدم چې دایوه جدی پرېکړه وه. اوداسې یوه پرېکړه چې پیلوټانوپه اسانۍ سره نه نیوله. په ځانګړي ډول چې سرتېري په داسې ځانګړي روغتیایي حالت کې وي.

زه په داسې حال کې چې راوګرځېدواودکوزیدلومحل ته دخوځېدلوپه حال کې و، ډېرخپه شوم. موردچورلکې له وړاندینۍ دروازې ووتلو،بک دچورلکې څخه دتذکرې په اسانۍ سره دباسلولپاره، دکارګولویه دروازه خلاصه کړه. ددې کار د ترسره او چورلکه خپل ځای ته ولیږدول شوه،اېډ اوګریک راغلل څودپېښې په څرنګوالي مور پوه کړي. داځل دتیلوفلټرموضوع وه. دلومړي فلټرلپاره غمی په هغه وخت کې چې دکنډوسرته وختلوسورشواود دوهم فلټرلپاره غمی په هغه وخت کې چې په کنډوباندې په مخ ځورکوزیدلو،سورشو. اېډ وویل چې که چېرې یوفلټرخیرن وای،ما دالوتنې لپاره چانس درلود خو ددواړوفلټرودچټل کېدلوپه صورت کې دا کار شونی نه و.

هغه دانجمن قابلیت اوتوان په داسې حال کې چې دټانکۍ څخه نیغ په نیغه خاورې زبیښې، نه وازمویلی.

هغه نه غوښتل چې  دا ورځ په داسې حال کې چې لوړوالی یې ۱۴۵۰۰ فوټه وی اوکېناستلولپاره بله ساحه هم نه وي،پیل کړي.

دفترته ترراسېدلو وروسته خبر شوو چې پاپي دټاسک فورس ډاګرله هډې سره په اړیکه کې واوهغوی یې زموردچورلکې په وړاندې له ستونزې څخه خبرکړل. ډګروال ملهولانډ دسرتېري دلېږلو لپاره دماسپښین په درې بجوخپلوکسانوته دراتګ امرورکړ. دطبي دلایلولپاره نوموړي ماموریت به دټاسک فورس ډاګر لومړني عملیات وي چې دورځې له خوا یې ترسره کوي. دقیقاً په درې بجې مورته خبر راکړل شوچې الوتنه دمهال ویش سره سمه پیل شوله اوددېرشودقیقوپه بهیر کې چورلکه دخرابۍ سره مخامخ اوداسې شونې وه چې په لوړه ارتفاع کې به هوا نوره هم خرابه شي.

همدا لامل و،په پنځه بجې ټاسک فورس ډاګرخبرراکړچې الوتنه بیرته قرارګاه ته دګرځېدلوپه حال کې ده. د دغه اندېښنوڅخه پرته، دالفا ګروپ څخه خبر اوس هم مثبت و. دسهارپرمهال دهوا له لارې د مهماتو او نورو اکمالاتوغورځونه په بریالیتوب سره ترسره شوي اوتوکي یې په مساوي توګه ددوستم اوعطا ترمنځ ویشل شوي ول. دوستم دطالبانودسخت مقاومت سره سره دشولګرسیند درې څخه دمزارپه لورې دشپړمیله په واټن مځکه رالاندې کړي وه. امریکایي بم غورځوونکوالوتکوددوستم ځواکونولپاره دروځې په مهال تکتیکې هوایي مرسته

برابره کړې اودغه مرستې ددوستم دځواکونوپه بریالیتوب کې مهمه ونډه لري.
ټاسک فورس ډاګرخبرراکړچې راتلونکې ورځ بل طبي ماموریت پرلاره اچول کېږي. داخل،په هرترتیب، په لویدیځ پاکستان کې دجېکب اباد له هوایي اډې څخه به دوه سي ایچ ۵۳ ډوله چورلکې الوتنه کوي. دا الوتنه به په یوه سخت اوزیږه عرضي باندې چې دطالبانودټینګې والکې لاندې ده،ترسره کېږي.
دډګروال ساک ایچ ګروپ به د مځکې په نښه کولودنده ترسره کوي خوموږدراتګ وخت ورځینې وپوښت څووکولای شودګروپ څوغړي په ځانکړي ډول ډاکټرانتظارکړو چې دارټیا په وخت کې مرسته وکړي. مورټول د خوب ځایونوته په دې هیله چې دسهاروختي به د دوه سي ایچ ۵۳ ډوله چورلکودراتګ خبرراکول کېږي، لاړو خوددوی د راتګ خبر تر لاسه نه کړ.

## اته څلوېښتم څپرکی

راتلونکی سهار وختي موږ ټول د دفتر په سیمه کې راغونډ شو څو د طبي ماموریت د خرنګوالي په اړه راغلي تلګرافونه ولټوو.
په تلګرافونو کې په دې اړه هیڅ هم نه ول نو ریک ډګروال ایچ ته د پېښې د څرنګولي په اړه د مالوماتو لپاره ورغی. ډاکټر د بي بي سي د چینل په چالانولو سره موږ ټولو ته ماتې راکړه. نطاق د یوه سي ایچ53 ډوله چورلکه هغه خبر چې د کابل په سویل کې د څو میله په واټن کې سهار وختي لوېدلې وه، ورکاوه. د یوولسو سپرو کسانو له ډلې څخه یې څلور ټپیان شول او ټول کسان د دوهمې سي ایچ-۵۳ چورلکې په واسطه ژغورل شوي ول.
ګونګوسې دا وې چې نوموړې چورلکه د ځانګړو ځواکونو د یوه ژوبل شوي سرتېري د لېږدولو لپاره لېږل شوې وه خو داچې سرتېري چېرې موقیعت درلود، هیڅ یادونه نه وه شوې. ریک د ډګروال ایچ څخه راوګرځېد او د غورځېدنې تصدیق یې وکړ. واضحاً د کاروان لومړی چورلکه د لوړو بادونو او دوړو سره مخامخ او چورلکه د ټیټې الوتنې له امله د کومې غونډۍ له سر سره لګېدلې او غورځېدلې وه. دوهمه چورلکه سمدستي ناسته او ټول کسان یې راپورته کړي وو خو ماموریت باید له منځه تللی وای.
دهوایي ځواک په دې چې ایا لوېدلې چورلکه د جوړونې لپاره کاري ډله وروليږي او قرارګاه ته یې د بیا راوستلو هڅه وکړي او که په بشپړ ډول یې ورانه کړي څو دښمن ته ترې انکار وکړي، بحث درلود.
زموږ پیلوټانو پرېکړه وکړه چې هغوی باید د انجمن په کندو باندې زموږ د چورلکې په واسطه الوتنه وکړي څو د چټکو بادونواو په ځانګړي ډول د خیرنو تیلو

اوبند شويو فلټرونو د ستونزې له امله دا هڅه له خطره ډکه وبلله او موږ هم د انتظار پرته نور هيڅ هم نشو کولای!

د ماسپښين په دريو بجو ټاسک فورس ډاګر خبر راکړ چې په همغه شپه به هغوی بل طبي ماموريت ترسره کوي. ځانګړي ځواکونه د خپل ناروغ ملګري لپاره راتلل. دا ځل ددغه ماموريت لپاره دوه سي اېچ -۴۷ لوی دوه څرخه لرونکې باروړونکې چورلکې ټاکل شوې وې او په استنه کې د ښکته کېدلو په ځای کې بايد د مهالوېش سره سم (د څلورم نومبر په لومړيو ساعتونو)د سهار په دوه بجو راښکته شوې وای.

موږ ته يې دا هم وويل چې هانک،دوهم ګيري او د سمندري ځواکونو مشر کالنډ له دوشنبه څخه تاشکند ته تللي او په همغه شپه به هغوی هم په نوموړو چورلکو کې وي. موږ څلورو کسانو د ژوبل شوي سرتېري سره يوځای الوتنه کوله. د څه دلايلو په اساس زه پوهېدم چې داځل به له درې څخه په وتلو بريالي کيږو.

دلته زموږ د پاتې کېدنې په بهير کې دا لومړی ځل و چې هوا دومره سړه شوې وه چې سړی يې کنګل کاوه.موږ د ښکته کېدلو ډګر ته د سهار د يوې بجې څخه لږ وړاندې ورسېدلو. د يوه ژوبل شوي سرتېري لپاره که څه هم چې په تذکره کې وي،له ربړونو ډک سفر و. د ډاکټر د وينا سره سم سرتېری په همغه حالت کې و ، سره له دې چې درد يې سخت و، داسې ښکارېدله چې سرتېري مقاومت کولای شو.

زما موټر چلوونکی يو ځوان سرتېری و چې ما وړاندې نه و ليدلای. هغه د شمالي ټلوالې دريشي په تن او د کورتۍ په سر يې نرۍ جاکټ اغوستی و. هغه بوټان په پښو ول خو لاس ماغو( دستکش. ژباړن) يې په لاس نه ول. کله چې ما جامې د لېږد لپاره چمتو کولې، په ورين بکس کې مې يو جوړ اضافه دستکش چې له ښو وړيو جوړ ول، پيدا کړل. ما نوموړي ځوان ته ورکړل او په دري ژبه مې ورته وويل چې دا زما لخوا هغه ته يو سوغات دی.

هغه باور نه راته خو په لاسونو يې کړل. ګوتې يې په کې تاو راتاو کړې او بيا يې په ژړا پيل وکړ! هغه زما لاس ونيوه او له ما يې مننه وکړله. زه د خپل کوچني عمل په واسطه د هغه دومره احساساتو له امله وشرمېدلم. زما باور نه راته چې هغه د دغه سوغات او په ځانګړي ډول د دسکشو وړتيا ته حيران وي.

دا بې له شکه لومړی ځل و چې هغه په خپل ژوند کې دسکش ترلاسه کړي وو. په دره کې هيڅ افغان هم د ده په څېر دلاس ماغو نه درلودل. دقيقاً په دوه بجو د شمال لورې څخه د درنو انجنونو غږ راغی. مځکه د چراغونو په واسطه په نښه شوې وه او د ښکته کېدلو ډګر هم اوار او پراخ و،حتی دغه دوه لويې چورلکې هم په کې په اسانه توګه کېناستلی شوې. کله چې چورلکې راښکاره

شولې او په نښه شوي ډګر باندې کېناستلې، د څرخونو په واسطه جوړې شوې ساکنې برښنا د پورته کېدونکو دوړو په منځ کې پړکې کولې. تاوېدونکو څرخونو څلا کوله او د څرخونو په سر یې یوه ژیړ رنګه تاوېدونکې دایره جوړه کړې وه. دا یوه ویره وونکې لیدنه وه! دواړه چورلکې په یو وخت کېناستلې او انجنونه یې چالان ول. د چورلکې وروستۍ زینو سره د الوتکې کاري ډلې په بېړه سره صندوقونه راښکته کړل ، په چورلکه کې ناست مسافرین هم راښکته شول ،زه او ریک ورغلو او دوهم ګیري مو هلته پیدا کړ. ما او هغه سره روغبړ وکړ . د چورلکو د غږ له امله زه د خبرو پرمهال د هغه غوږونو ته ورکوږ شوم. زه له دې امله چې هغه ته مې افغانستان ته د راتګ ښه راغلاست ووایه، خوښ وم خو د واک د ورسپارلو لپاره مې د زیات وخت ارمان درلود. ممتاز مې هلته شاوخوا کې پیدا کړ او خپل ځایناستی مې ور وپیژاند. ممتاز ته مې خپل دریم یا څلورم ځل د خدای په اماني ویلو وروسته د هانک د پیداکولو په هیله و خوځېدلم. هغه هم د ریک سره ولاړ و. موږ د چالان انجنونو په تېز غږ کې یو بل سره سترې مشې وکړله ، د سمندري ځواکونو مشر کالنډ هم راغی او د هغه سره مې هم روغبړ وکړ. د سي ایچ-47 چورلکې د ډلې مشر ما او ریک ته د هغه د څارلو لپاره لاس وښوراوه. شاوخوا مې وکتل. میوري او کریس د سرتېري په تذکرې پسې روان ول. موږ په بیړه سره په خپلوځایونوکې کېنا ستلواودچورلکې کارکوونکي ته مې په داسې حال کې چې الوتنې ته یې تیاری نیوله، وروکتل. په چورلکه کې دننه بالکل توره شپه وه اودهریوه په سترګودشپې عینکې وې. دچورلکې دډلې څخه دوه کسان دچورلکې په وروستۍ برخه کې کېناستل اوپښې یې له چورلکې ځوړند کړې. دواړوماشین ګڼې خپلوځایونوته د دې دپاره چې داړتیا په وخت کې پرې ډزې وکړي،برابرې کړې. دچورلکې مخکنۍ برخې په همدا ډول ماشینګڼو باندې سمبال وې. نوموړی توپک ځومیل لرونکي ټوپک وو چې دډزوپروخت یې مېلونــه تــاوېږی اوډېــر زورور دي. دشـپې دعینکولــه املــه شــنه رڼــا چــې دالوتکوکارکوونکي په سترګوکې یې انعکاس کاوه، هغوی ته موږ د بېګانه په ډول ښــکاره کولــو. موږغږتیتــوونکې الــې پــه غوږونــوکړې خوبیــا مــوهم د دووچورلکودماشینونوپه داسې حال کې چې ګړندی کېده، اورېده. دیوې جټکې وروسته هواته پورته شوې. ساعت ته مې وکتل دڅلورم نومبردسهاردوه بجې اوشل دقیقې وې موږدپنجشېر درې څخه دوتلوپه تکل کې وو.

## نــهــه څــلــوېــښــتــم څــپــرکــی

دڅلورم نومبرترماسپښین پورې موږتاشکند ته ونه رسېدلو. زموږ سي ایچ

47[1]ډوله چورلکوکرشي خان اباد کې دامریکې دځانګړوځواکونوهډې ته چې دتاشکند څخه تقریبا سل میله واټن درلود، لېږد اوپه خالي خیموکې چې د او ډي اې ګروپونوافغانستان ته دننوتلولپاره یې د چمتووالي سیمې په توګه کاروه، ځای په ځای کړلو.مورله ترپل جوړشوي کټونوباندې په داسې حال کې چې ستړي اوساړه هم نیولي وو،پریوتو، هیله مو درلوده چې په هډه کې د سي، ای، اې شته ګروپ به زموږ د راتګ څخه خبریږي.

په پای کې داېل جېم چې د ځانګړوفعالیتونوپخوانی افسر وروسته دیوساعت پلټنې څخه پیداکړلو. هغه ویل چې له دې امله چې د سي ای اې د بریډونو هوایي افسر نه وتوانیدلای چې مورتاشکند ته دلېږد لپاره دکومې الوتنې په مهال ویش کې وردننه کړي، یوځه اله ګوله رامنځ ته شوې وه. په تاشکند کې زموږدمرستې په مرکزکې زموږدنشتوالي په مهال دپرمختګ لپاره کوم بدلون نه و راغلی. په پای کې دماسپښین په دریوبجوزموږ اړوند چورلکې ښکته تاشکند ته ولېږدولو. مورشارټن هوټل ته وردننه شوواود هرکلي نجلیو(جناکېانو)دهغه لند لمن لرونکوجاموپه لیدلوچې زموږپه نشتوالي کې نوږې هم کوچنۍ کړې وې، هک پک شوو! زه په شاورکې دتودواوبولاندې چې زما پراوږوولي راتویدلې، شل دقیقې ودرېدلم اوله ځان سره مې داژمنه وکړه چې زه به هیڅکله هم دتودو اوبو قدر هیر نه کړم.

موږپه هوټل کې ډوډۍ وخوړله. ایله بیله مې روسي بالتیکه دریم نمبر(یوډول شراب)وڅښل. بالتیکه نهه ډوله ده. دریم نمبریې معتدل بیږدي چې امریکایي هغو ته ورته خوند لري اونهم نمبر یې کساک (یوډول شراب)دخوند لپاره جوړوي اودشرابوهغه اندازه چې په عادي بیروکې وي،په دې کې درې برابره وي. روسی بیروخوندسوړاوپوست و. دچورلکوکارکوونکوموږته خبر راکړچې په تاشکند کې یوه ګلف ستریم ۵-۶ الوتکه شتون لري .ریک زموږد سیمه ییزه اوپراتیفي افسر سره څوځله ټلیفوني اړیکه د دې لپاره چې څرګنده کړي چې ایا موږکولای شو چې دغه الوتکه وکاروو او کنه، نیولې وې. اوکه ځواب منفي وای نوبیا موږه سوداګریز الوتکوکې ځانته ټیکټونه اخیستل. په پای کې دماښام په اتوبجوریک ته ټلیفون راغی اوخبر یې راکړچې موږکولای شوپه ۵-۶ ډوله الوتکه کې الوتنه وکړواوپه هوایي ډګرکې راتلونکې سهارپه اووه بجې باید شتون ولرو. په همغه شپه مې دماشوم په ډول خوب وکړ. تازه اوپاکې پردې ډېرې خوندورې وې. کورته په ګلف ستریم الوتکه کې تلل زموږلپاره د خوب لیدل ول. موږ په فرانکفورټ کې بیا تېل واچول اودهغه وروسته شمالي ویرجینیا د ډوول هوایي ډګرته

---

[1] سي ایچ 47 ډوله چورلکه دوه څرخه لرونکې چورلکې دي چې د امریکې پوځ یې د لېږد رالېږد لپاره کاروي، ژباړن.

وخوځېدلو. پـه شپږ نیمـو بجوښـکته شـوو. نـری بـاران ورېـده چـې گروپونـه یـې د توروتیږوڅخه جوړشوي هوایي ډگرکې ځلول. دروازه خلاصه شوه موږپه دروازه راغونډشـووالبته میوري ترټولـومخکې و. دمیـوري معشـوقه دهغـه سـتړي مشـي لپاره راغلې وه .ریک ته خپله مېرمن سره ددوکوچنیوماشومانوراغلي ول، کـریس اوزه وروسته ودرېدلوڅویوځای کېدنـه ترسره شي. بیـا مـورهم ددغـه مراسـمویوه برخه وگرځېدلو.

ماشومانوغوښــتل چــې دپلارالوتکــه وگــوري. کلــه چــې هغــوی پــه لاسونواوپښووهلوسره الوتکې ته ورختل، مېوري خدای پاماني وویله. ما اوکریس خپـل بکسـونه کـوچنی اوروڼ ترمینـل تـه وروڅکـول څودعامـه ټلیفونولـه لـارې خپلوکورنیوته ټلیفونونـه وکړو. کـریس غوښـتل چـې خپـل پلـار تـه ټلیفـون وکړي اومخکې له دې چې دخپلې مېرمن اوماشومانوسره چـې لـه ښاره بهـرول یوځـای شی،له خپل پلارسره څوورځې پاتې شي. ما هـم بیټسي تـه ټلیفـون وکړاوهغـې لـه دې چې زه د ډیولس په هوایي ډگرکې یم اوکورته به په ټکسي کـې ورشـم، خبـره کړله. زه دهغې دغږپه اورېدلوسره ډېرخوښ شـوم اوپوهېـدم چـې اوس رانېـږدې شوي وه. ریک اودهغـه کـورنی زمورترځنـگ تېرشـول. ټولوخنـدل اوپـه یوځـای یـې خبرې کولې. موږورته دخدای پامانی لاسونه وښورول. مېوري اودهغـه معشـوقه لا له ورانـدې تللي ول. کله چې زه اوکریس له ټرمینل څخه بهرشولو، پـه هـډه کـې یوه ټکسي ولاړه وه. ما کریس ته اجازه ورکړه ترڅـو نومـوړي ټکسي لـه ځان سـره بـوځي ،زه دبلـې ټکسـی پـه هیلـه ودرېـدلم. بـاران هـم گړنـدی شو،هواسـړه وه. څودقیقې وروسته زه دننه ولاړم اودکوم چا څخه مې دټکسي پـه راغوښـتلو کـې دمرستې غوښتنه وکړه. کله چې زه بهرانتظارودرېدلم هرڅلوخاموشي وه. کوڅـه هم تیاره وه. باران ودرېده اوزه با الکل تنها ولاړوم. زه پوهېـدم چـې یـوازې پینځـه څلویښت دقیقې وروسته کورته دراگرځېدلواوله مینې ډک ښه راغلاست مـې پـه انتظار و. خوهغه څه چې موږوکړل، پرهغې دفکرکولوپرته مې هیڅ هم یاد تـه نـه راتلل! دا دسپټمبر دیوولسمې برید څخه یوازې څوورځې وروسته ما د سي ای اې یو اووه کسیزه گروپ دندې تـه رهبـري کـړ. دوی هغـه لـومړني امریکایـان وو چـې شمالي افغانستان ته لومړی ځل لاړل اوتروریزم پـه وړانـدې پـه نـوي اعلـان شـوې جگړه کې یې لـومړی پړاوسـرته ورسـاوه. مـوږ ډېـر لیرې ځـای تـه تللـي وو، داسـې یوځای ته چې د اونیـو لپاره پـه خپلـواوږو او لـه پـوره مرسـتې مـو پرته ځانونـه لـه خطرسـره مخـامخ کـړي وو. د ماموریـت هـدف موترلاسـه کـړ. پـه شـمال کـې دطالبانومــاتې اودکابــل نیــول یــوازې د اوس څخــه نهــه ورځــې لیــرې وه خوزموږدهڅوپـایلي ښـکاره وې، بریـا حتمـي وه، خـو زه دلتـه یـوازې ولـاړ وم. دتشریفاتولپاره هیڅ فعالیت هم نشته یوازې زه یم اودټکسي په انتظارولاړیم!سره

له دې ډولود سي ای اې دکارونه همداډول طبیعت لري. همېشه همداسې وي سخت له خطره ډک کاربه په خطرناکوځایونوکې په ویاړ، سیالۍ او وړتیا سره ترسره کړې خوپه پای کې هیڅ مننه اوشاباسۍ نه درکول کېږي. ټکسي ودرېدله اوچلوونکی یې له ماسره په ډګی(ډاله) کې دبکسونوپه ایښودلوکې مرسته وکړله. زه په وروستني سیټ کې کېناستم . د ټکسي چلونکي ته مې وویل،کورته مې ویسه!

# اتمه برخه
# دکابل نیول
# پنځوسم څپرکی
# ۱ ـ۱۴ نومبر
# کال۲۰۰۱

داکټوبردځلورم په سهاردوهم ګیري[1]. دبحري ځواکونوقومندان کالنداوهانک دکافي څښلوپرمهال په شمال کې حالاتوته بیا کتنه وکړه.

دجنرال فهیم سره په دوشنبه کې داکټوبر ددېرشمې نېټې لیدنه دافغانستان په شمال کې دامریکې دبمبارۍ په ستراتیژي راڅرخیدله اوفهیم دطالبانوپرهغه کرښو باندې چې دکابل سره په شمال اوهمدارنګه په هغه لومړیوکرښوچې په تخارکې ورسره دده ځواکونه مخامخ دي، دامریکې دهوايي ځواک لخوا ددرنې هوايي بمبارۍ غوښتنه وکړله. فهیم له دې امله چې دامریکې دمتحده ایالات دمزار په شاوخواکې دښمن ټکوي په داسې حال چې دکابل اوتخارسره دطالبانواصلي مرکزیت له پامه غورځوي، له یوه اورده بحث اودجنرال فرانک له خوا فهیم څخه په کابل باندې دهغه دبرید دپلان په اړه دځوسختوپوښتنوروسته لیدنه په دې هوکړه چې دامریکې دمتحده ایالات دبمبارۍ کمپاین دکابل اوتخارسره لومړیوکرښوباندې متمرکزکوي، پای ته ورسېدله. دنومبرپرلومړۍ نېټه په شمال کې په ځانګړي ډول دمزاراوکندوزپه سیموکې چې دجنرال دوستم او قومندان عطا ځواکونودطالبانوپه وړاندې په کراره خوثابت پرمختګ کاوه،په بم غورځونه کې ناڅاپي اودپام وړزیاتوالی راغلی و. دتخارپه لومړۍ کرښه باندې هم لویه بمباري ترسره شوي وه چې د بي-52 اوبي-1 ډوله الوتکودطالبانوشېږمهم مرکزونه په نښه کړل. تردرې سوه پورې طالبان اودهغوی یوجګپوړی نظامي

---

[1] دوهم ګیري د لیکوال ځایناستی و چې د ده په ځای دندې ته راغلی و او نوم یې هم ګیري و نو ځکه لیکوال ورته دوهم ګیري ویلي دي. ژباړن

قومنـدان يـې وواژه. شـمالي ټلـوالې لـه خـوا دطالبـانوترمنځ پـه مخـابروکې دخبرودثبـت لـه مخـې دا څرګنـده شـوله چـې دکندوزپـه ګرنيزيـون کـې حالات خراب‌ېدل ،سيمه ييزقومندان غوښتل چې ټول نظامي اکمالات مزارته ولېږي. ښه خبرخو داو چې دبمباری زياتوالي په همدغه سيموکې دوام وکړ. ناوړه خبرخو داو چې دکابل په شاوخوا کې دبمبارۍ په زياتوالي کې هيڅ بدلون نه و رامنځ ته شوی.

ممتازوروسته له دې چې په همغه سهارېې په استانه کې دوهم ګيري ته هرکلی ووايه، خبر ورکړچې جنرال فهيم اوعارف دورخې په وروستيوکې له مهالويش سره سم له دوشنبې راګرځي. ممتازوويل چې فهيم دپيغام له مخې هغه غواړي چې هرڅـومره ژرددوهـم ګيـري ،هانـک اودبحـري څواکونوقومنـدان کالندسره ليدنـه چمتـو شي. دابشکاره وه چې دفهيم له خوا لومړی پوښتنه به دکابـل پـه شـاوخوا کـې دبمبـارۍ زياتوالی چـې تاسـې يـې ژمنـه کړې وه، چېړې ده،وي. نومړې پوښتنې ته ځواب وخوداسې ځواب چې فهيم تـه دمنلـو وړنـه و. په همغه ورځ ليدنه په رښتيا هم ستونزمنه وه. فهيم په خپلوخبروکې مـودب خـو په خبروټينګ ولاړو.

هغـه وويـل چـې داکټوبرددېرشـم پـه ليـدنوکې د شـويووعدوپه اساس هغـه دشمالي ټلوالې ځواکونه دکابل په شمال کې دطالبانوپه کرښوباندې دبريدلپاره تيـارول. هغـه د خپـل پـلان عمـده برخـه طـرح کـړه اودسـويل پـه لـوړې پـردوه غاښوچې دکابل په لوړې په دوه عمومي سړکونوپراته ول،راځرخيده. هغه شل ټانکونه،شـل دانـې روسـي بـي ايـم پـي ټانکونـه (زغـره وال ګـاډي چـې پرسـونل لېږدوي)پنځـوس دانـې توپونـه، اوتـر دولسـوزرو پـورې ځواکونـه دبريـد لپـاره چمتودرلودل. د دغه شمېرڅخه پرته فهيم دطالبانوپرکلکو دفاعي موقيعتونو چې په ژوروخورونواو د دوی د لومړيوکرښومخامخ په کليواوبانـدوکې يـې اچولي وو، په درنې اودوام داره بمارۍ باندې ټاکېدوکړي. هغه وويل چې دبمبارۍ پرته بريد ښـايي لـه ناکـامۍ سـره مخـامخ شي ځکـه چـې زغـره وال ځـواک يـې لړاوپـه وسـلوباندې دغيرمسـتقيمو ډزواداره کـول سـتونزمن وو. هانـک اودبحـري ځواکونوقومندان کالنډ له فهيم سره په لنډ وخت کې دبمبارۍ دکمپاين دبدلون وعده وکړه. دوعدې کړل اسان وخوسرته رسول يـې ربړين وو. دکابـل پـه شـاوخوا کې دبمبارۍ پرموضوع باندې تراوسه هم دامريکې دحکومت دلوړپوړو پرېکړه کوونکو ترمنځ خبرې اترې کيدلې. لويديځ لوړې ته، دکندوز او مزارشاوخواکې جګړه ييزعمليات اوس هم ښه روان واوپه سيمه کې مهم پرمختګونه کېدل. داسې هيله کېدله چې مزاربه په راتلونکې څوورځوکې ددوستم ځواکونوترخپلې والکې لاندې راولي.

هوايي، بمبارۍ ته یې دوام ورکاوه. که چېرې دشمالي ټلوالې دځواکونوله خوا مهم ځوسړکونه اوغرونه ونیول شي، سویل ته دطالبانودپرشاتګ لاره به بند شي. دمزارنیول به په شمال کې دطالبانومرال ولړزوي. بیا به دامریکې دبمبارۍ ټول زوراوتمرکز دتخارسره لومړی کرښې ته بدلون وموموي اودشمالي ټلوالې ځواکونه به چې دجنرال بریالي خان له قوماندې لاندې ول، وتوانېږي ځوکرښه ماته اوتالقان رالاندې شي، دا به په کندوزاوسیمه کې دطالبانوپرځواکونوباندې دزیات فشارلامل شي.

دتالقانواوکندوزترنیولووروسته به دکابل پرلومړۍ کرښه بمبارۍ متمرکزه شي. سره له دې چې دا پوځي ستراتیژي امریکایي جګړه پلان کوونکو درک کوله خو د کابل ښار د نیولو هغه مهم اوحیاتي ارزښت چې د شمالي ټلوالې مشرانو ته یې درلود، له پامه غورځولی و. د شمالي ټلوالې له خوا د کابل نیونه به د طالبانو په وړاندې بریا حتمي او د شمالي ټلوالې د کلونو مبارزې ته به مشروعیت وروبخښي.

جنرال فهیم او د شمالي ټلوالې نور مشرانو ته دهغې موضوع تشریح چې په شمال کې جګړه د کابل د ارزښت له اندوله دوهم مقام لري، یوه ناشوني دنده وه. د فهیم دفاعي بحثونو په دې چې د کابل نیول به په شمال کې د طالبانو د مرال په ټیټولو کې یو مهم ګام او همدارنګه په سیمه او په خوا وشا کې به د هغوی راپرځېدل ګړندي کړي، راځرخیدل.

له بله پلوه د مزار او د کندوز نیونه به په کابل کې دطالبانوپه رهبرانواودهغوی دځواکونوپه مرال باندې لرتاثیرولري اوبیا هم دکابل ځخه دطالبانودشړلولپاره یوه لویه جګړه ترمنځ پرته وي. هغه هڅه چې له مخې یې فهیم اودشمالي ټلوالې نورمشران دامریکې په هغه ستراتیژي چې دکابل نیول به وروستی ګام وي، پوهول. فهیم اونورومشرانوداسې انګېرله چې دامریکې دحکومت په منځ کې دلوړپوړوچاروکوترمنځ دشمالي ټلوالې له خوا دکابل په نیولوکې لویه سپمونه موجوده وه. دامریکې دحکومت سره دکلونوپه موده دمعاملې کړلوله امله شمالي ټلوالې ته دا تریخ حقیقت چې دامریکې دحکومت دلوړپوړو پرېکړه کوونکو په منځ کې ځواکمنه تاجک ضدډله شته، څرګندکړ. په دېرشم اکتوبرلیدنه کې جنرال فرانک اودهغه لوړپوړوافسرانوته داحقیقت چې جنرال فهیم ځان سپموي ځکه غواړي چې دطالبانووروسته سیاسي مبارزې ته خپل نظامي ځواک وساتي،څرګند و. دوی پرته له شکه پوهېدل چې فهیم دطالبانوپرهغه ځواکونوباندې چې هغه ورسره مخامخ و دامریکې دمتحده ایالاتوله خوا په درنې بمبارۍ باندې ددې دپاره تاکېد کاوه چې متحده ایالات دروندبارله مخې لیرې اودده دپاره دکابل نیول اسان شي. کابل دوروستي ګام

ستراتيژي دشمالي ټلوالې هغه ويره چې دامريکې حکومت نه غوارړي چې په سويل کې دپښتنوڅخه تاجک توکمه سياسي ګټه لاس ته راوړي، راپارولې وه.
د فهيم تحليل سم و. له هغې هوکړې پرته چې د دېرشم اکتوبر پرمهال رامنځ ته شوي وه،جنرال فرانک هغه نظرته چې هغه پرشمالي ټلواله کابل ته دطالبانوپه وړاندې دجګړې دپرمخ بيولواعتمادنه لري، دوام ورکاوه. دکابل د نيولو او د واک د لېږدولو موضوع دامريکې کړنلاره جوړوونکې ترهغې وروستنۍ شېبې چې دکابل ښاردشمالي ټلوالې لاسونوته ولويده، ځورول. دشمالي ټلوالې له خوادکابل د ښار د نيولواوکابو کولوپه اړه جدي سپمونې شته وې.
که څه هم چې دفهيم ځواکونودکابل په شمال د شومالي اواروسيموکې دجګړې په ګټلوکې مهم رول درلود، په واشنګټن کې دمشرانوډلې هڅه کوله چې يوداسې دکار وړ پلان چې له مخې يې تاجک ځواکونه له ښارڅخه بيديا وساتي اوپرځای يې دکابل دادارې اوپوليسي چوپړتياوو لپاره يوبهرنی ځواک وګوماري. په امريکې کې کړنلاره جوړونکودکابل سره په لومړی کرښه باندې دبمبارۍ دراڅرخونې دوخت په اړه ترهغه چې حالات دلته په خپله پريکړې په لوړې پرمختګ کاوه، بحث ته دوام ورکړ. دنومبرپه څلورمه نېټه دفهيم سره دليدنې څوورځې وروسته هانک اودبحري ځواکونوقومندان کالنډ له درې څخه لاړاودوهم ګيري هم ترهغې دښه تاسيس شوي ژامې ماتوونکې ګروپ دادارې لپاره پوره چمتو و. په لويديځ کې نظامي حالات اوس هم ښه روان وو. دنومبرپه شپږمه نېټه رپوټونه راغلل چې طالبان په مايوسی اوبيړه سره مزارته ملاتړليږدوي. امريکايي تکتيکي هوايي بريدونوطالبانو ته زيات شمېر د سر زيان ور رسولی و. په هغه جګړه کې چې ديوه مهم اوستراتيژيک لوی کلي چې (دره سوف)نومېده دنيولولپاره ترسره شوه، پرته له شلوکسانوچې په منډه بريالي شول، نوريې ټول په پوره ډول له مځکې ورک کړل. هغه ملاتړ اومرستې چې دمزارشريف څخه ورليږل کېدلې، دامريکې دهوايي ځواکونوله خوا وټکول شوې. دنومبرپه اوومه نېټه دوهم ګيري دجنرال بسم الله خان سره په جبل السراج کې دهغه په قرارګاه کې دليدنې په موخه په موټرکې هډوکي دردونکی[1] سفرترسره کړ. جنرال په کابل باندې دبريدجوړېدونکوپلان ته بيا کتنه وکړه. جنرال په داسې وخت کې چې دلويې کړکۍ سره چې هاخوايې دشمالي دجګړې د ډګرخوځېدونکې منظره وه، ناست وو. هغه ستونزې چې ده د جګړې دپلانونوپرمهال درلودلې وڅېړلې. طالبانودکلونوپه موده خپل دفاعي موقيعتونه ځواکمن کړي دي. لاندې هريوکوريوحقيقي جنګي کلاده چې چتونه يې ډبل شوي. دېوالونه يې ځواکمن کړي دي. ديوځايي ډزولپاره يې ساحه تاسيس کړي ده. سخته بمباري کولای شي

(1) ليکوال دلته د سړک د خرابوالي له امله سرټکوي. ژباړن

چې ددغه کورونوڅخه زيات کورونه ياپه پوره ډول ويجاړاويا هم زيانمن کړي. که چېرې بمباري دوام داره اوځواکمنه نه وي،شمالي ټلوالې له خوا ددغه موقيعتونونيول به ډېرګران تمام شي. په ځانګړي ډول د وخت تيريدا سره څکه چې طالبان به دغه ليکوته مرسته راوړي، حالات به نور هم سخت شي. بسم الله خان وويل چې هغه ددريوڅخه ترڅلوروورځوشپه او ورځ بمبارۍ ته اړتيا لري.

کوچني کلي اوکورونه چې دده مخامخ ول، بايدويجاړشي. بسم الله وويل چې هغه به په لومړۍ کرښه پينځه کېلومتره پراخه بريد کوي چې دځواکونودتمرکز يوه نقطه به لويديځ ته دکابل په زاړه سړک اوپه مساوي ډول ځواکمن غري به ختيځ ته دکابل په نوي سړک باندې بريد ته متمرکز کوي.

دامريکې دالوتکوله خوا دبمبارۍ لپاره دښه چمتووالي په پايله کې بايد لومړني بريدونه بريالي شي. که چېرې دامريکې تکتيکي الوتکې دراتلونکوڅوورځوپه موده کې په داسې حال کې چې بريدونه پرمختګ کوي او دوی دطالبانودفاعي بريدونو ته په بيړه غبرګون وښيي، دعمومي بريا دترلاسه کولولپاره به ډېرزيات فرصت موجود وي. درې ته په موټرکې دراګرځېدلوپرمهال دوهم ګيري ليدنې ته بيا کتنه وکړله. بحث بالکل لکه دفهيم سره دڅلورم نومبرليدنې ته ورته والی درلود. هغه څه چې دغه دواړوجنرالانوويل، مانا درلوده، دوهم ګيري دهغوی هغه ويناوې چې پرته له امريکې دځواکمنې تکتيکي بمبارۍ دبريد وړاندې اودبريد په بهير کې دشمالي ټلوالې ځواکونونه شوکولای چې لومړۍ کرښې ماتې اوښارته ورننوځي.

که چېرې شمالي ټلوالې د طالبانو ځواکونه دامريکې دهمکارۍ پرته ماتولای شوای، هغوی به له ډېر وړاندې داکارکړی وای. هغه پوښتنه چې دوهم ګيري کورته په کنډ کېرسړک باندې دراتګ پرمهال سوچ کاوه، هغه دکرنلارې جوړونکې دکابل سره په شمال کې دحقيقي حالاتوپه څرنګوالي باندې پوهول ول. نوموړي پوښتنې ته صادقانه ځواب دکابل سره په لومړۍ کرښه باندې دبمبارۍ دوخت اوهغه پرېکړه چې بايدشمالي ټلوالې ته دکابل د ښار د نيولواجازه ورکړل شي او کنه، دلته په شمالي افغانستان کې دجګړې په ډګرباندې شرايطوڅرګندوله نه هغه غونډو چې په واشنګټن کې لوړپوړو چارواکو داېرولې!

## د پنجشير دره
## ۱۰ نومبر ۲۰۰۱

دوهم ګيري د انجينر عارف سره چې مخ يې له اندېښنې، خپګان او غوسې څخه ډک و، کېناست. ممتاز هم عارف ته ورته خپه و.

دوهم ګيري په داسې حال کې چې عارف ته موسکی شو فکر کاوه چې

نومورې لیدنه به له ستونزو ډکه وي. عارف چې د لیدنې د دایرولو غوښتنه یې کړې وه،خبرې پیل کړې. اغا(ښاغلی) ګیري، زه باید په ډانګ پیلی وغږېږم. جنرال فهیم او د شمالي ټلوالې لوړپوړوچارواکو نن سهار د حالاتو د بحث لپاره لیدنه وکړه. جنرال خپه دی. سره له دې چې جنرال فرانک، اغا(ښاغلی) هانک او د سمندري ځواکونو مشر ژمنې وکړې، د کابل سره په لومړی کرښه اوس هم درنه بمباري نشته. سربیره پردې د قوماندان عطا او دوستم څخه خبرېږو، اوس خو حتی د جنرال بریالي خان څخه د مخابرې له لارې رپوټونه دا په ګوته کوي چې په نومورو سیمو کې د متحده ایلاتو الوتکې په دښمن باندې درنې بمباری ترسره کوي.

هغه خبرې وځنډولې او دوهم ګیري ته یې ځیرځیر ورکتل ویې ویل: زه جنرال ته له دې چې ولې دلته جدي بمباري نه ترسره کېږي، څه ځواب ورکولای شم؟

دوهم ګیري ورمخکې شو او عارف ته یې وروکتل: انجینره زه پوهېږم چې دلته تر اوسه هم محدوده بمباري ترسره کېږي خو د مزار او کندوز په شاوخوا کې حالات (خوب است!)(ښه روان دي) دوهم ګیري عادت درلود چې د ممتاز او عارف سره د خبرو پرمهال خپلو خبرو ته د پارسي لغتونه او نیمګړي جملې ورګډې کړي. زیات وخت به دغه ګډون هغه قرینه چې ګیري به پرې غږېده، پوره کوله. زیات شمېر طالبان وژل کېږي او دوستم تقریبا مزار شریف ته رارسېدلی دی. طالبان د کندوز او مزار څخه د سویل په لورې په شا تګ کوي او د امریکې الوتکې هغوی ټکوي. هر څه بسیار خوب است(هر څه ښه روان دي). عارف په بې اعتنایې لهجې سره وویل چې هو هو زه پوهېږم چې د تخار په کرښه بمباری زیاته شوې ده خو اغا ګیری د کابل په اړه څه وایې؟

انجینره زه د ترورېزم په وړاندې په ریاست کې د هانک سره په اړیکه کې یم. لکه څنګه چې هانک دلته درې ته د سفر پر مهال وویل: د متحده ایالاتو پوځ هڅه کوي چې د زیاتې بریا لپاره دښمن ډېر ځلې او سخت په دغه سیمه کې په نښه کړي.

دا چې دوستم او عطا ښه پرمخ روان دي. دوی غواړي چې د جنرال بریالي خان د تخار ولایت په لورې کرښه ماته او تالقان ونیسي. او له دغه کار سره به په شمال کې د طالبانو د تقدیر سرغوڅ شي. بیا به تمرکز په کابل او د طالبانو د موقیعتونو په ټکولو راوګرځي څو جنرال بسم لله خان ته د برید اجازه ورکړي.

د خبرو په مهال د دوهم ګیري غږ پسې غځېده او غځېده .دا هم د ده د پخوانیو ځانګړنو څخه یوه وه.عارف خپل لاسونه پورته او ورغوي یې د ګیری په لورې تقریبا داسې لکه د هغه څخه چې د ځپېړې دفاع کوي، پورته کړل ویې ویل: ولې کابل د پلان په وروستنی برخه کې شامل دی؟

موږ د شمالي ټلوالې ښه او مجهزه ځواک د برید لپاره چمتو لرو. د جنرال فهیم هغه راغونډ شوی ځواک چې دلته دی په پرتلیز ډول د دوستم او عطا ځواکونو ته ډېر لوی دی. دوستم مزار ته د خوځښت په مهال ستاسې د هوایي ځواک د درنې مرستې سره سره په اونیو وخت ونیوه. که چېرې فهیم ته هغه ډول مرسته برابره شي، کابل به په دوه یا دریو ورځو کې ونیسي. اجازه راکړه چې له تا وپوښتم. ایا د دغه ځنډ تر شا کوم سیاسي دلیل شته؟

عارف مخکې له دې چې ګیري ځواب ورکړي خبرو ته دوام ورکړ. واشنګټن ته د ډاکټر عبدالله وړاندیز شوې لیدنه رد شوه او د تکراري ژمنو سره سره په دره کې د جنرال فهیم ځواکونو ته د هوا له لارې د اکمالاتو او مهاتو غورځېدنه ترسره نه کړله. تاسې اوس په بامیانو کې د خلیلي سره یو ګروپ لرئ او هغه د بمبارۍ‌مرسته ترلاسه کوي. ستا څخه وړاندیني افسر جنرال ګیري په خپلو خبرو کې چې ویل یې د پنجشیر په تاجکو باندې په واشنګټن کې بې باوره دي، رښتینی و.

ګیري وویل: هغه ټکي چې تا ورته اشاره وکړه،سم دي خو په دې کوم پټ پیغام نشته. انجینر عارف: زه یوازې دومره ویلی شم چې د متحده ایلاتو هوایي ځواک مرسته به د کابل سره لومړۍ کرښې ته راځي. هانک تېره شپه وویل چې که چېرې د جنرال بریالي خان ځواکونه په کامیابۍ سره کرښه ماته کړي درنه بمباري به د کابل سره لومړۍ کرښې ته راوګرځوي.

ما په تخار کې د براډ سره یوازې دېرش دقیقې وړاندې خبرې وکړې. د تخار د جبهې سره بم غورځونه په مخ روانه ده او جنرال بریالی خان په دې باوري دی چې هغه به نن ماسپښین خپل یرغل پیل کړي. انجینره بمباري ښايي چې سبا ته دلته را متمرکزه شي. عارف په چوکۍ کې وروسته شو او لاس یې په خپلو نریو تورو وېښتانو راتېر کړ. هغه خپل لاسونه د مېز په څنډه کېښودل ویې ویل: هو ښاغلی ګیري سبا! سبا خو مهرباني وکړه هانک، جنرال فرانک او هر یوه ته ووایه چې که چېرې سبا ته دامریکې بمبارۍ پیل نه شي نو جنرال فهیم به خپلو ځواکونو ته د امریکې د بمبارۍ پرته د یرغل امر ورکړي. هغه لاندې د مېز سرته او بیا یې پورته ګیري ته وروکتل، ویې ویل: په مزار او کندوز کې برۍ په هغه صورت کې چې که چېرې موږ د کابل سره په لومړۍ کرښه ناکام شو، بې ارزښته ده!

## دکابل سره لومړۍ کرښه
## ۱۱ نومبر ۲۰۰۱

دوهم ګیري وختي پاڅېدلی واودتېرې شپې په زره پورې خبرونو ته یې بیا کتنه کوله. په شمال کې دکندوزاومزارپه شاوخوا کې جګړه ښه روانه وه اوپه زرګونوطالبانودمزارله سویل څخه کابل اویا دمزارختیځ کندوزته په شاتګ کړی اوهوايي ډګرله تراوسه هم دطالبانوپه ولکې کې و. قومندان سیدجعفري چې دعطا اړوند قومندانانوله ډلې څخه و، نهرین په ولسوالی کې دیوه مهم پله نیولوته ورنږدې شوی وڅوسویل ته دهغوی یوه لاره بنده کړې. جعفري په همغه ورځ درې زره طالب بندیان ونیول. قومندان خلیلي په یوولسم نومبر دبامیانوپه ښاردبرید پلان درلود. که چېرې هغه بریالی شي، سویل ته به یوه بله لارهم وربنده کړي.

شمالي ټلوالې دطالبانوپه مخابروکې دخبروثبت مالوماتوداڅرګندنه کوله چې په تالقانوکې طالب قومندان ملا دادالله په کابل کې دطالبانومشرانوته خبرورکړي چې دتالقانوپه شمال کې حالات بې هیلې دي اوهغه ښارتخلیه کوي. دی اولړترلړه پنځلس نورلوړپوړي طالب قومندانانوکندوزته په شا تګ کاوه. دلسم نومبرپه ماسپښین دبریالي خان ځواکونوپه خپل ټول وس سره دتخارلومړی کرښې په اوردويرغل پیل کړ.

جګړه په زور سره روانه وه خودتېروڅوورځودبمبارۍ کمپاین دطالبانود مشرانو د کنټرول جوړښت کمزوری کړی و. دطالبانوټېنګښت له منځه تللی واود یوولسم نومبر په سهاردجنرال بریالي خان ځواکونه دتالقانوپه لوري دناڅاپي خوځښت اوپه زرګونوپه شاکېدونکوطالبانودڅار لپاره چمتو وو.

بریالي د ورځوپه اوردو د ښاردنیولوهیله درلوده. هغه له دوه سیمه ییزمهموطالب قومندانانوعبدالله قرد اوبشیراحمدسره چې په ښارکې پاتې وو. اړیکې نیولې اودهغوی دوفاداری داخیستلو(له دوی سره دیوځای کېدلولپاره. ژباړن)لپاره خبرې اترې روانې وې. دنوومبر په لسمه نېټه دوهم ګیري دهانک سره خبرې وکړې. هانک وویل چې په کابل باندې داوردې مودې ژمنه شوې بمباري به دنومبر د دیوولسمې په سهارپیل شي.

دوهم ګیري سمدستي د ډګروال اېچ سره ولیدل. هغه هم همدغه ښه خبردټاسک فورس ډاګرله هوایي اډې ترلاسه کړی واودهغوی هغه ستراتیژي چې په کابل باندې دیرغل پروخت دژامې ماتوونکې ګروپ اود او ډي اې۵۵۵ ګروپ دجنرال بسم الله خان له ځواکونوسره ډېرې لویې مرستې ډاده کړي، تربحث لاندې ونیوله. دکابل سره په لومړی کرښه باندې په مخابره کې دخبروپرمهال ستپان ددوهم ګیري سره دجنرال بسم الله خان دیرغل دوه اړخیزه پلان ته بیا کتنه وکړه اوهغه وویل چې داو ډي اې۵۵۵ ګروپ اودسي، ای ،اي غړي به هم په دوه ګروپونو وویشل شي. ستپان وویل چې نن د پینځه ویشتو بریدونو په هیله دي.

زموږ د ګروپونو څخه یو به د طالبانو د کرښو په لویدیځ برخه کې د کابل پر زوړ سړک باندې په هدفونو کار وکړي. ډاکټر به له همغه ګروپ سره وي. کوچنی کلی شته په ځانګړي ډول اغبلک او استالف د سختو چارمغزو په ډول دي چې ماتول یې یو څه ستونزمن دي. جنرال بسم الله هڅه کوي څو داړونده برخې قومندان شمالي تلوالې د پیسو په بدل کې تسلیمېدا ته وهڅوي خو زیاتې هڅې ته اړتیا ده. زه به د هغه ګروپ سره د کابل په نوي سړک چې د طالبانو د کرښو ختیځه برخه ده، په هدفونو باندې کار کوم.

هلته موجوده خورونو ترانګه ډېره سخته ساتل کېږي اونن ورځ زموږ تمرکز د همدغو کرښو د دفاع پر ماتولو دی څو د جنرال بسم الله ځواکونو سبا سهار خپل یرغل پیل کړي. کله چې یرغل پیل شي. موږ دواړه ګروپونه به د لومړۍ کرښې سره جګړې تر اخري امکان نږدې اوسو څو وکولای شو د ممکنه سخت مقاومت په وړاندې نږدې او ګړندی هوایي مرسته راوغواړو.

دوهم ګیري له هغه غوښتنه وکړه چې جګړې ته ډېرو نږدې نه شي. هغه پوهېده چې دوی به دده دغه اخطار ته پاملرنه ونکړي. په ورته وخت کې زه به له انجینر عارف وغواړم چې ژامې ماتوونکې ګروپ ته مخکې څوځېدنې لپاره اسانتیاوې برابرې کړي. واضحاً د بمبارۍ د کمپاین د رابدلېدا په صورت کې جبل السراج ته د ژامې ماتوونکې ګروپ د ورلو پلان داکتوبر په میاشت کې نیول شوی و. ممتاز وویل چې په هغه وخت کې د ژامې ماتوونکې ګروپ لخوا د دفتر په توګه د کارولو لپاره یوه ودانۍ ټاکل شوې وه. موږ غواړو چې د بسم الله سره نږدې واوسو څو وکولای شو د هغه د جګړې د ګرسټراتیژي د بدلون په صورت کې مالومات له تاسو سره ګډ کړي. کله چې موږ سفر ته توکي تیار کړو، له تاسې دواړو سره به اړیکه ونیسو، سویلي لورې ته زموږ د دفتر ورل او هلته کارته د سامان تیارول به ټول څلور ساعته وخت ونیسي. بلې موږ د رسره موافق یو اوزموږ په اړه اندېښنه مه کوه موږ پلان نه لرو چې جګړې ته ډېرو نږدې شو خو په دې کې شک نشته چې ګروپ به د جګړې د پیل پروخت د ټوپک د ډزو د وررسېدلو واټن پورې ورنږدې کېدلو کې په ما فشار راوړي. په یاد ولرۍ چې ستاسې د ندې د شمالي تلوالې سره د طالبانو په وړاندې د جګړې په پرمخ بیولو کې مرسته کول دي نه داچې تاسې په خپله په کې له نږدې ګډون وکړي. سټان وویل: هو صاحب بې غمه اوسه! دوهم ګیري فکروکړ چې داړیکې د پای ته رسېدلو پر مهال یې د سټان په غږ په نیمه خوله خندا ترغوږونو شوه.

نومبر ۲۰۰۱

د سهار پنځه نیمې بجې وې او دوهم ګیري د جنرال بسم الله او ممتاز سره په جبل السراج کې په هغه نوې کلا کې چې اوس مهال د ژامې ماتوونکو ګروپ د دفتر په نوم یادېدله، ناست و. تېره شپه جنرال ممتاز راغوښتی و څو ددوهم ګیري سره راتلونکی سهار وختې لیدنه ترتیب کړي. په نږدې مېز باندې کافي خوټېدله او نوموړي درې کسان د جګړې په ډګر په حالاتو باندې غږیدل. پرون ورځ حالت ډېر ښه پر مخ ولاړ. ستاسې کسانو او ځانګړو ځواکونو دواړو ښې دندې ترسره کړې. په لومړی نمبر سړک باندې دښمن سخته جګړه وکړله خو هغه هوایي بریدونه چې ستاسې کسانو راغوښتل، پرېکړه کوونکې وو. لطفا خپلو کسانو ته زما لخوا مننه ورورسوه !

ګیري ځواب ورکړ: مننه جنرال صاحب زه به ستاسې مهربانه کلمې هغوی ته ورسوم. خو ستا په باور به نن ورځ جګړه څنګه پرمخ ولاړه شي؟

هغه ځواب ورکړ: د طالبانو زیات ځواکونه پرشا شول عربانو او نورو بهرنیانو یو شمېر ځواکونه سره یوځای کړي دي او نوموړي د دښمن سخت ګروپونه دي چې د کابل څخه د دفاع لپاره به سخته جګړه ترسره کړي. د ختیځ په لوري په دوهم سړک باندې مونږ کولای شو چې د کابل په لوري ژور پرمختک وکړو خو لومړی نمبر سړک به له دې زیات ستونزمن وي خو د الله په مرسته او ستاسې د الوتکو په مرستې سره به مونږ ماښام ته د کابل دروازو ته ورورسیږو.

اغا ګیري اوس به زه خپله اصلي پوښتنه مطرح کړم. ایا د امریکې حکومت به پخپله د کابل ښار پورې له مونږ سره مرسته وکړي؟ هغه خبرو ته ځنډ ورکړ او له کافي یې غوړپ وکړ. دوهم ګیری ددغه پوښتنې هیله درلوده. هغه وویل جنرال صاحب: زه باید رښتیا درته ووایم. په واشنګټن کې اوس هم هغه اندېښنه چې کابل ته د رسېدلو سره سم به ستاسې ځواکونه د غچ اخستنې لپاره لویه وژنه وکړي، شته. ما هڅه وکړله څو واشنګټن ډاډه کړم چې داسې څه به ترسره نه شي خو پاکستانیان واشنګټن ته د هغه شکایت چې که چېرې د شمالي ټلواله کابل ونیسي څه به پېښ شي، دوام ورکوي. جنرال خپل سر وښوراوه ویې ویل: اغا ګیري: پاکستانیان به ترهغه چې یو پښتون ځواک جوړ او په رسمي ډول یې کابل تر ولکې لاندې نه شي، مونږ انتظار کړي.

دا کار خو تر میاشتو وخت نیولی شي. هغه خبرې وځنډولې او د کوټې کونج ته یې لکه سړی چې فکرونه راغونډوي وروکتل: د غچ اخستنې لپاره به هیڅ وژنه ترسره نه شي. له دغه پلوه شخصاً زه ډاډ درکوم. مونږ ته رپوټونه را رسیږي. د مخابرو له لارې مالومات او د همدارنګه د انساني منابعو څخه هم مالومات لرو چې د طالبانو مشران له کابل څخه تښتېدلي دي. زیات شمېر یې د تېرې شپې

په بهير کې تښتېدلي دي. هو زما په ځواکونو کې زيات کسان شته چې کورنۍ يې د هغوی په لاسونو ځورېدلي دي. هغه خبرې وځنډولې بيا يې ګيري ته نيغ سترګو ته وروکتل ويې ويل ما ورته جدي امر کړی دی چې وژل او ظلم بايد ونه شي! د مرګ درد بايد چا ته ورنه کړل شي. زه له تا غواړم چې واشنګټن ته دغه ډاډ وروسوې خو مشرانو ته دا هم ووايه چې نن شپه به کابل زما لپاره خالي وي.

سبا سهار به ښار د طالبانو د ساتونکو څخه پاک وي. خو څنګه ډاډه يې چې هغوی به د ښار د ساتلو لپاره جګړه و نه کړي؟اغا ګيري دا افغانستان دی. په کابل کې د طالبانو مشرانو په داسې حال کې چې پوځ يې له دوړو سره ګډ شو، ننداره کوله.

په تېرو لسو ورځو کې په زرګونو طالبان ووژل شول. دوی ماتې خوړلې ده او هغوی ته به سويل او ختيځ ته ددوی د ملګرو په لورې پاکستان ته ورتښتي. په ما باور وکړه. دا زما هېواد دی، زه پرې پوهېږم.

ګيري سر وښوراوه: جنرال صاحب زه به واشنګټن ته ددغه ليدنې وروسته پيغام وليږم خو سره له دې کابل ته د شمالي ټلوالې په ورننوتل د ملي شورا (اېن اېس سي) په دريځ باندې ډاډه نه يم. جنرال خپله کافي خلاصه کړله او پياله يې په مېز باندې کېښوده. جنرال ګيري زه بايد تا ته په پوره صداقت ووايم چې زه به کابل ښار ته پرته له دې چې ستا د ملي امنيت شورا پرېکړه کوي او کنه،ورننوځم. زه بايد د بې ګنا ښاريانو دساتلو لپاره ورشم.

اوس اجازه غواړم. بايد د نن ورځې جګړې ته چمتووالی ونيسم. کسان ولاړ شول. لاسونه يې راکړل او جنرال هم له کوټې څخه په بېړه سره ووت. ممتاز هم پسې وروان شو. هغه بيا ودرېد او ويې ويل: ګيري سبا ته کابل ته د ورننوتلو لپاره بايد مور او تاسې چمتووالی ونيسو. ته هم ګروپ کابل ته د جنرال د ځواکونو پر مهال هلته ورنناباسې. ته بايد هلته موجود وې خو واشنګټن ته د هغه وروسته چې مور تاجک شيطانان ښار بيا ونيسو،سم مالومات ورکړې.

مازديګر پيل و چې درې موټريزه کاروان د جنرال بسم الله خان ودانۍ ته ورننوت. هغه دغه ودانۍ د خپلې قرارګاه په توګه کاروله او په چاريکارو کې يې موقيعت درلود چې د جبل سراج څخه پينځه ميله د سويل لورې ته واټن درلود. کله چې موټر د عمومې سړک څخه چې د کابل زوړ سړک و، وروګرځېدلو دوهم ګيري وليدل چې ودانې د ښار په سويلي څنډه کې د غونډيو په يوه تېره ډډه باندې موقيعت درلود چې د کابل په لورې ترې اوارې سيمې ښې اداره کېدلې. ليرې واټن کې د توغنديو چاودنو پړکې کولې. غريې داسې لکه ليرې تندرترغوروونورسېده. دوهم ګيري داسې انځور لکه داوري دتندر توپان چې پردغه سيمه راغلی وي اواوس پرې تېرېږی اوليرې کېږي، وکړ!

توپیر یې یوازې دا دی چې د باران د اوبوولاړ ډنډونه ،تازه اوپاکې هوا شته والی نه لري اوپرځای یې ویجاړتیا ،دوړې، ګڼ شمېرشیان، تاوشوي اوسپنې اووژل شوي کسان پرځپلوکرښوپراته پاتې دي. دموټروڅخه دښکته پروخت همشیني حیرانتیا په داسې حال کې چې کسانوځانونه درتبې په اساس برابرول، رامنځ ته شو.

دوهم ګیري اوممتازکوچنی دروازې ته ورغلل. دروازه دیوکوچنی خوښکلی باغ و. دمازدیګر دلمردکېناستلوپروخت وروستنی شغلو په باغ کې ماڼواودګلاب ګلانوته ګلابي سور رنګ ورزیاتاوه. هوا خوشبویه وه اودجګړې ځمبهارتقریبا په ورکېدو و. دوی دباغ په لنډودشېزوپه کوچنی پیاده رو باندې اصلي ودانۍ ته ورننوتل. جنرال بسم الله دښي خوا له کوټې څخه لاس غزیدلی راووت:

اغا ګیري په خیرراغلی. هغه دګیري لاس وښوراوه ،ټینګ یې کړاودهغې کوټې په لورې یې چې دی ترې راووت په لاس اشاره اوښه راغلاست ووایه. ډېرې خبرې دي چې بایدپرې وغږېږو. وروسته له دې چې چای اوکافي یې راوړه، جنرال بسم الله یواوږدغوړپ وکړاوپه چوکۍ کې کېناست. ګیري ولید چې جنرال سترۍ ښکارېده اودهغه جامې په ککړې وې. بوټونه یې په دوړوککړاوله یواوبل سره لګېدلي وو. نن یوه اورده اوسخته ورځ وه.

جنرال صاحب:ما له انجینر عارف سره مخکې له راتګ ولیدل هغه وویل چې جګړه سخته وه خوپه ټوله لومړۍ کرښه کې موکامیابي ترلاسه کړله. کابل هم ستاسې لاسونوته نږدې شوی دی. دجنرال سترګې دچای دپیالې څخه دغوړپ کړلوپرمهال ګونځې ګونځې شوي اودپیالې دایښودلوپرمهال یې سروښوراوه. هو اغا ګیري: نن ورځ هرڅه ښه پرمخ ولاړ. دلته په لومړۍ لویه لار باندې دکابل څخه پنځلس کېلومتره لیرې اودوهمې لویې لارې څخه تقریبا شل کېلومتره دکابل څخه واټن لرو. هغه پرمخ لاس راتېراودپوزې په سرېې ګوتې ټینګې اودسترګوکونجونه یې وموښل.

دطالبانوزیاتې برخې ماتې خوړلې. هغه طالبان چې په اواروسیموکې پاتې دي. بهرنیوځواکونوسره ولاړدي. زما هغه قوماندان چې په لومړۍ کرښه کې جنګېـــږي دنیـــول شویوزندانیانودمالوماتوســـره ســـم خبرراکـــوي چـــې بهرنیوجنګیالولوزکړی چې ترمرګه به جنګېږي. هغه سروښوراوه اوخوله یې کځوړه کړله، بې مانا جګړه ده!

که چېرې افغانان وای موږبه تسلیمېداته هڅولي وای. هغه زموږ دستوردی. خودغه بهرني شیطانان،داټول غواړي چې شهیدان شي. هو دوی به سبا ته خپل مقصد ته ورسېږي اوټول به دوزخ ته ولیږم!جنرال صاحب:په اواروسیموکې شته مقاومت به ستا په باورپه څومره وخت کې له منځه یوسي؟اغاګیري:زما کسان به

سبا مازدیگرپه کابل کې ناست وي!مورخبر ترلاسه کړی چې دطالبانوجګړوري مشران لا له وړاندې دکابله په منده دي. هغه ځواکونه چې له مورسره مخامخ کېږي. هغه به بې له شکه سخته جګړه وکړي اوپه سخت مرګ به ووژل شي خوکه ستاسې همدغه ډول ښې بمباری اوزما دکسانودمرال په ساتلوکې مرسته وکړئ،هغوی به دماښام څخه وړاندې له منځه یوسو.

جنرال صاحب:زه ډاډ درکوم چې دتېروځوورځوپه ډول مرستې ته به موږدوام ورکړو. ستا په اجازه، سبا دلمرختلوورانـدې زه شخصاً غـواړم چې لـه ستاں اواودځانګړوځواکونوسره په لومړی نمبر لویه لاربانډې یوځای شم. زه غواړم په داسې حال کې چې ستاسې کسان کابل ته دورننوتلولپاره وروستنی جګړه ترسره کوي. دهغوی سره موجود وم. جنرال موسکا وکړه ویې ویل:بلې اغا ګیري، خپلوکسانوته ورشه. دابه یوه ښه جګړه وي. هغه خبرې وخندولې ویې ویل:په حقیقت کې، غواړم چې ستا ټول ګروپ کابل ته خوځېدلوته وروسته له دې ښارخوندي اوستاسې خوندي توب ډاډمن کړو. ښه راغلاست ووایم. زه غواړم چې تاسې اودځانګړوځواکونوسرتېري په داسې وخت کې چې زما ځواکونه دکابل ښارکنټرول اوهلته نظم اوامنیت منځ ته راوړي، له نږدې وګاري.

واشنګټن به ستا په هغه رپوټونوکې چې زما دکسانودسلوک څرنګوالی کوي. په هغه ډاډ ته چې زه یې هغوی ته ورکوم، دېرزیات باوروکړي. دوهم ګیري وویل: حتماً جنرال صاحب:ماغوښتل چې کابل ته دتګ وخت درځخه وپوښتم. په حقیقت کې ما او انجینرعارف په همدغه موضوع خبرې وکړې. داسې ښکاري چې هغه زموږدټول ګروپ دځای په ځای کېدنې لپاره کوم ځای په نظرکې لري. دامریکې پخواني سفارت ته نږدې کوم هوټل شته .زما په فکربهترین ځای دی. ممتاز په خبروکې راګډ شوځوجنرال ته دهغه هوټل مالومات چې عارف یې ذکرکړی و، ورکړي. دوهم ګیري دممتاز اوجنرال ترمنځ دخبروپه زیاته برخه پوه نه شوځکه چې ګړندی دري وه خودممتازتشریحاتوپه عمومي مانا پوه شو.

هوټل یوه لویه دوه چته ودانۍ وه چې د ۱۹۹۲ څخه تر۱۹۹۶ پورې دشمالي ټلوالې لخوا دمهموکسانولپاره دمېلمستون په توګه کارېده او طالبانوهم دهمدغه مقصدلپاره کاروه. دغه ځای دامریکې دسفارت څخه دیوه میل په واټن لیرې و.سره له دې چې ودانۍ طالبانوزیانمنه کړي وه دلندمهاله عملیاتودقرارګاه لپاره ور ځای و. جنرال دوهم ګیري ته وویل:زه له انجینرعارف سره همغږی یم. په داسې وخت چې زما ځواکونوښارته ننوځي،زه به زما دسرتېرویوه ډلګی دهوټل دخوندي کولوپه موخه موظف کړم. دوی به ډاډمنه کړي چې دا ودانۍ دطالبانوڅخه پاکه اوکوم پاټې شونې ونه لري.دابه ستاسې قرارګاه وي. لږترلږه دلوړیوځوورځولپاره.جنرال په چوکۍ کې په شاشواودوهم ګیري ته یې په

غورسره وروکتل، ښه نو ستا هغه پلان چې زما دځواکونوسره کابل ته یوځای ورننوځي، زه داانګیرم چې واشنګټن زموږله هغه پلان سره چې کابل باید لاندې کړو،خوښ دی؟دوهم ګیري موسکی شو،هوجنرال صاحب چې ریښتیا ووایم په دادی چې ته دجګړې ډګر امر یې اودسبا جګړه به بې له شکه ستاځواکونوله خوا دکابل په نیولو سره پای ته ورسېږي. پرته له دې چې دواشنګټن پلانونه اولاس تاوونې په نظرکې ونیول شي. په سیمه کې حالات هروخت په هغه عمل چې موږیې په ساحه کې ترسره کوو،دیکتاتوري کوي. جنرال صاحب:سبا ماښام به په کابل کې سره ووینو!

# د تخارلومړی کرښه
# ۱۰ ـ۱۱ نومبر ۲۰۰۱

براډ د ځانګړو ځواکونو د او ډي اې ۵۸۵ ګروپ دهوایي ځواک دتکتیکې ماهر ظابط بېل ترځنګ په داسې حال کې چې هغه د سوفلام توکي تیارول، کېناست. براډپه وړسامان باندې فکرکاوه ،بېل هم خپل کارته دوام ورکاوه. براډ د او ډي اې سره د شنوخولیو[1]په برخه کې د سوفلام (لایزر اړوند ټکنالوجي. ژباړن) په توکو باندې دوه کاله روزنه ترلاسه کړي وه اودجګړې په حقیقي حالاتوکې هغه ددغه توکو کارولوته ډېر لېواله و. هو. ښایي چې ارمان یې دقیقاً لکه دی یې چې غواړي پوره نه شي خو د څو دقیقوپه موده کې په داسې جګړه ییزه عملیاتوکې برخه اخیستله چې له امله به یې دښمن ته مرګ او ورانی ورواړوي.
تېرماښام نا وخت دوهم ګیري اودپنجشېرپه دره کې دژامې ماتوونکي ګروپ خبرراکړچې دامریکې پوځ پرېکړه کړې ده چې په شمال کې دبمبارۍ کمپاین بایدپراخ شي څودتخارسره په لومړۍ کرښه دبمبارۍ متمرکز سخت اوډېرکړي.
په مزار او کندوز کې جګړې ښې پرمخ روانې وې. په تخار کې د جنرال بریالي خان تر امر لاندې د شمالي ټلوالې ځواکونو په واسطه به د لومړۍ کرښې ماتې هغوی ته اجازه ورکړي څو تالقان ونیسي چې په پایله کې به پر طالبانو لوی فشار رامنځ ته شي.
سره له دې چې اوس مهال پرې د ورځې پینځه یا شپږ هوایي بریدونه ترسره

[1] د شنو خولیو څخه یې منظور هغه ځواکونه دي چې د لایزر اړوند ټکنالوجي په کارولو کې مهارت لري چې د بمبارۍ په وخت کې د الوتکو سره د نښې په دقیق ویشتلو کې مرسته کوي. ژباړن

کېږي، نوي ستراتيژي چې بايد په همغه سهار پلې شوې واى، په بمباري کې ناڅاپي زياتوالى رامنځ ته کړي.

براډ او د ځانګړو ګروپونو غړي ټول انتظار او چمتو ول. براډ شاوخوا وکتل، جېف يې چې د سي اى اې د ګروپ د کوم غړي ځايناستى و، وليد چې د ځانګړو ځواکونو د دوه خورد ظابطانو سره يې د مورچل په ښکتنۍ برخه کې کار کاوه. دوى مارک نولسم ډوله ګرينټ ويشتونکې توپک چې د ويتنام د اېم -۷۹ ګرنېټ ويشتونکې وسلې نيم اتومات بڼه وه، په مورچل باندې برابراوه. جېف د سي اى اې اوپراتيفي افسر و او د پوځ پخوانۍ تجربه يې نه درلوده. براډ ويره لرله چې د ځانګړو ځواکونو په تجربو کې پوخ شوي سرتېري په دغه ډول ماموريتونو کې د هغوى ترڅنګ د جيف شته والي له امله چې بې تجربه و، په غوسه او سر ټکوي.

هغه بايد اندېښنه نه واى کړې ځکه چې د جيف هغه شوق او لېوالتيا چې په هره ورسپارل شوې دنده به ټينګ سرېښ و،پرته له دې چې ددندې ځرنګوالى او خطر په پام کې ونيسي، له ځانګړو ځواکونو هم ډګر وګاټه.

جيف په شپږم نومبر باندې د براډ او د هغه د ځانګړو ځواکونو سره يو ځاى شوى و او د راتګ څخه يې يوازې څلور ورځې وروسته هغه د ځانګړو ځواکونو د طرز او حتى د هغوى تريو او مالګينه خبرې هم زده کړې وې. نصواري رنګه هواره چترالي خولۍ يې(پاکول. ژباړن) پر ښي غوږ په غرور سره راښکته کړې وه، هغه تور او سپين پنجشېري دسمال يې له سر څخه داسې لکه بندانه(يو ډول ټاپه شوى دسمال. ژباړن) د اسماني رنګه اېل بين پتلون او پر ببر جاکټ برسېره له خپل سر راتاو کړى و. مات کنداغ لرونکى کلاشينکوف يې په غاړه کې و او پر شا يې زنګېده. دوى د هغې غونډۍ په سر چې د بريالي خان د لومړى کرښې ليرې شمالي ځنده کې د تاجکستان د سرحد سويلي لورې ته د يو ميل په سرحد کې وه،کار کاوه.

د دغه نقطې څخه هغه د طالبانو ځواکونه چې مخامخ او د څو ميله په پراخيتا د هغوى کيڼ لورې ته پراته وو،ښه ترصد(څار) کولاى شول. دوى ددغه موقيعتونو سره څو ورځې تېرې کړې وې او د هغوى د مسوليت لاندې سيمې باندې يې د بمبارۍ لپاره د زياتېدا دعا کوله. اوس دغه حالات بدلون ته ورنږدې وو.

د تېر ماښام د خبر سره سم به دوى ته د ورځې په بهير کې په سيمه کې د بمبارۍ لپاره په هوا کې څرخيدونکې شل الوتکې په واک کې ورکړل شي. جېف د براډ خواته ورغى، د هغوى سره په دايره کې کېناست او ويې ويل: بيل وايي چې د اړتيا په وخت کې کولاى شم چې په مارک-۱۹ باندې دفاعي ډزې وکړم. هغه بچى تر دوه زره متره پورې واټن وهلى شي!

براډ ځواب ورکړ چې په دې هیله چې نن ورځ به زموږ دفاعي ډزو ته اړتیا شتون ونه لري. زه به نن د دې پرځای چې ددښمن د ګولۍ څخه ځان وژغورم،دښمن د ډزو لاندې نیسم. دمخابرې څخه لکه لرګی چې وسوځي، داسې غږ راغی: بیا د ځانګړو ځواکونو مشر بي د اواکس کنټرول سره خبرې پیل کړې.

دوه ایف اې -۱۸ ډوله الوتکې راروانې وې او دلته موقیعت ته په شلو دقیقو کې رارسېدلې. هرې الوتکې دوه پینځه سوه پاونډه ناپوه بمونه له ځان سره لېږدول.[1] دا هغه بمونه و چې له اوسپنې جوړ او د پیلوټ پر تجربه او د مځکې څخه هوا ته د بم غورځونې په وخت په رهنما پورې اړه لرله. براډ له ځان سره وبزید: هو دا خو هغه څه دي چې ځانګړي ځواکونه یې په ترسره کولو کې ماهر دي.

هغه مخابره د هوایي ځواکونو د مخابرې تکتیکې افسر ته وروسپارله. ګروپ ددې په خاطر چې دغه ناپوه بمونه لپاره وړ هدفونه خوښ کړي،سره راغونډ شول. یو لویه هغه کلا چې د سمڅې په توګه کارېدله او تقریبا اته سوه متره لیرې د یوې لوړې غونډۍ په ډډه یې موقیعت درلود، د هدف لپاره لومړنی خوښه( انتخاب) و.
پېژندل یې اسان و. (دوی کولای شول چې د لایزر په واسطه یې په نښه کړي څو د پیلوټ سره د دهدف په نښه کولو کې مرسته وکړي.لیکوال) ګروپ کولای شول چې د هر بم د لویدلو وروسته پیلوټ ته د بم لویدنې دقیق مالومات ورکړي څو راتلونکې هدف د همدغه مالوماتو په اساس سم کړي.
دوهم هدف هم یو مورچل و چې په ورته وخت کې ترې د سمڅې کار هم اخیستل کېده او د لومړي هدف سویل ته په پینځه سوه متری‌کې پروت و. د بریالي خان خارګره اداري خبر راکړ چې نوموړی موقیعت د القاعده یو مهم موقیعت دی چې د عربانو، چیچنیانو او د ازبک ای ایم یو (د ازبکستان اسلامي تحریک) ترهګرو لخوا ساتل کېده. د براډ سترګو ته د غبرګو ودانۍو د سوځېدا انځور تاوېده(د سپټمبر ۱۱ پېښه یې هدف دی. ژباړن) او دا دعا یې کوله چې په نوموړو موقیعتونو کې بهرنیو ترهګرو د خپل عمل رښتیني سزا وويني. په داسې حال کې چې د ګروپ غړي د مورچلو په لورې وروان شول. ظابط براډ وويل: په یاد ولری چې د پېژندګلوی کچه مو ټیټه وساتئ.(یانې کم خوځښت او احتیاط. ژباړن) زموږ دنده نوموړو حرامیانو ته درد او ژوبلې وراړول دي. موږ نه غواړو چې د هغو سره د ډزو تبادله وکړو که څه هم چې زه پوهېږم چې موږ ټول په مینه

---

(1) ناپوه بمونه دي چې په عصري ټکنالوژي سمبال نه وي لکه د جهاد پر مهال به چې روسي ځواکونه له الوتکو غورځول. ژباړن

غواړو څو دغه جګړه په يوازيوالي ترسره کړو!

هغه خبرې و څنډولې بيا موسکی شو، ويې وويل: زه تاسې ته ډاډ درکوم چې مخکې له دې چې دغه جګړه پای ته ورسيږي، موږ هر يو به د نومړو حيواناتو له ډلې څخه د دريو يا څلورو څخه زيات مردار کړو! له دې سره کسان خواره شول او خپلو مورچلو يې ونيولې. براډ وليدل چې جيف د مارک-۱۹ ډوله لاسي بم ويشتونکې توپک ته نږدې ورغی. لومړی پينځه سوه پاونډه بم د ودانيو له کلا څخه لس متره ليرې د مورچلو پر يوه ځای چې درنه ګڼه ګونه پکې وه، وربرابر شو.

هوا ته د اور توپ، د مځکې تند باد، لوګی، جسدونه، د بدن غړي، وسلې او نور ګڼ توکي پورته شول. د لړزې څپې او غږ يې د غونډۍ په سر کړنګهار وکړ. براډ وليدل چې د هوا څخه ګڼ توکي د راغورځېدلو په حال کې ول. د چاودنې لوګي د ودانيو په لورې زياتېده. د ودانيو شاوخوا کې خلک ګرځېدل او د چاودنې ځای يې کوت. د هوايي ځواک کنټرول افسر بيل د هغې الوتکې له پيلوت سره چې همدا اوس يې بم غورځولی و، خبرې وکړې. دا دريم پړانګ پر ليکه دی. تاسې د هدف څخه لس متره ليرې وی. موږ د چاودنې په ځای کې دننه او شاوخوا د وګړو ګڼ خوځښت وينو. نومړی غوره هدف دی. دريم پړانګ به ستاسې راتلونکې نښې لپاره هدف د لايزر په واسطه په نښه کړي.

دوهم بم دقيقاً د کلا په مينځ کې ولوېد چې د اور سترې لمبې او ګڼ توکي يې د اسمان په لورې پورته او براډ وليدل چې دا ځل چاودنې زيات شمېر انسانان هوا ته پورته وتوغول. هغه د دغه دوه چاودنو په دومره پياوړتيا باور نه شو کولای!

هغه وويل: دا خو يوازې پينځه سوه پاونډه دی. صبر تر هغې چې بي52 دوه زره پاونډه جيډام (دمستقيم بريد لپاره د ګډو تجهيزاتو بمب) راوغورځل شي. د القاعده پر موقيعت بريد لا نوره هم اغيزناکه و. لومړی بمب له ختو جوړې شوې پر کوچنی کلا په سويلي برخه کې د ودانۍ په چت باندې ولوېده چې د ودانۍ چت او په ختو بندې شوې کړکۍ يې والوځولې. دغه نښه د لومړی نښې څخه پينځه سوه متره ليرې و نو براډ د وراني د نښه ليدلو لپاره دوربين وکاروه.

د ورانې شوې ودانۍ له ننه څخه د اور لمبې پورته کېدلې او کوچني انسانان د سوځېدونکې ودانۍ څخه د ليرې تښېدو په حال کې و. د غږ څخه تر رسېدلو وړاندې يې د تيزو او سختو چاودنو لړۍ تر سترګو شوله. هغه نورې زياتې پړکې ، درنې چاودنې او د ډزو غږونه چې ټک ټکار يې کاوه، واورېده. القاعده په نومړې ودانۍ کې مهمات ساتل. لوګي د ودانۍ ويجاړې برخې څخه راپورته کېدل. دوهم بمب چې د دېوالونو په منځ کې د وروستنۍ ودانۍ په چت باندې

راوغورځېده. سمڅې یې له منځه یوړې او د اور توپ یې له چته راپورته او د کړکیو د غارونو راووت او ګڼ توکي یې د اسمان په لوړې والوځول.

لږ ځنډ ووت بیا دوهمې چاودنې د ودانۍ پاتې برخې د لویو کاڼو او لرګیو سره هوا ته وتوغوله. د ګڼو توکو سره یوځای یې د اوسپنې نلونو ته ورته شیان هواته پورته کړل. براډ باور درلود چې دغه اوږده نلونه ښایي چې ۱۲۲ ملي متري راکټونه وي چې د مځکې څخه مځکې ته ویشتل کېږي او مجاهدینو د روسانو سره د جهاد د اوږدو کلونو پر مهال ډېر کارول.

براډ خپلو مورچلو ته وروکتل او ویې لیدل چې جیف او د ځانګړو ځواکونو نور کسان موسکي ول. لاسونه یې پړکول او یو او بل ته یې غېږې ګوتې د خوښۍ د څرګندولو لپاره برابرولې.

دبېل (Bill) مخابرې ټکهار یا(شوڼ شوڼای) وکړ او مایکروفون کې د خبرو کولو په موخه ورکوړ شو. براډ فکر وکړ چې له اواکس (AWACS) د کنټرول(قرارګاه) سره غږېږي. بېل سر پورته کړ او د ټولو د اورېدلو په خاطر یې په زوره وویل: ٥ او ٥ بي -۵۲ چې د دوه زره پاونډه جیډامس بمونو[1] څخه ډکه ده ډیګو ګراسیه اډې څخه را روانه ده. دلته دراړسېدلو اټکل شوی وخت یې دېرش دقیقې دی. د هغې په څار دوه بي ۱ الوتکې چې هره یوه یې اته لس زره پاونډه جیډامس بم لیږدوي، راروانې دي.

هغوی به د شپیتو دقیقو په شاوخوا کې راورسیږي. ښاغلیو راځئ چې د راتلونکې بمبارۍ لپاره د هدفونو لړۍ وټاکو. نن ورځ به ډېره اوږده او ګټوره ورځ وي.

[1] جیډامس رهبري کېدونکي او په عصري تکنالوژۍ سمبال بمونه دي چې عموما د سمڅو د له منځه وړلو لپاره کارول کیږي. ژباړن

# ۱۲ نومبر ۲۰۰۱

شاوخوا شورماشورستړان له خوبه راویښ کړ. هغه خپل ساعت ته وروکتل: دسهارخلورنیمې بجې وې اوخلورساعته خوب یې کړی و،دسهارتیاره ډېره توره اوجدي ښکارېدله. هغه پوهېده چې په زرګونوکسان دلته له خوبه په داسې حال کې چې ستړي، خیرن، شخ، ساړه وهلي اوله دې اندېښنې سره چې ښایي نن ورځ یې وروستی ورځ وي، راپاڅېږي.

د۵۵۵ م ګروپ پنځه غړي په نږدې شاوخوا کې خوځېدل اوخپل توکي یې چمتو کول. ستړان دهغه دخوب چیریکې څخه راووت مخ یې وموښه اوپرویښتانویې لاس راتېرکړ. هغه فکروکړچې نن ورځ لویه ورځ ده. تېرې ورځې په زړه پورې برې منځ ته راوړی و.

د او ډي اې ۵۵۵ م ګروپ چې دخوندي ساتلودنده یې دشمالي ټلوالې اړوندګروپ چې مشري یې تورن امېرمحمد په غاړه درلوده، ټوله ورځ ترماښام پورې دکابل سره په لومړی کرښه باندې کاروکړ.

مځکه هم ددرنوبمونودچاودلوله امله لړزیدلی، ایرډېدلي اوښورېدلي وه. ټینګې شوي ودانۍ، دټانک لپاره ژورشوي موقیعتونه، زیات شمېرځواکونوچې په ژوروموقیعتونوکې وو، دتوپونواودمشرانوسمخې، او همدارنګه دهواضدزيږ اېس یو۲۳ موقیعتونودبریدونو له امله دړې وړې شول.

طالبانوپه مخابروکې دخبروپرمهال حیرانتیا، ویره،چېغې او ډار څرګنداوه! طالبانو دغه ډول ویجاړتیا چې پردوی له ستړان څخه راورېدله تردې وړاندې نه وه لیدلي. دلومړیوځوبریدونو په ځار بم غورځونه ګړندۍ شوله اودطالبانوله لورې هیڅ دفاعي بې نښې ډزې ترسره نه شوې.

سترې چاودنې په هدفونوباندې په حیرانوونکې دقت سره دخاوروژوندي کورونه، اوسپنې اوجسدونه هوا ته والوځول!په نومړي ډاګ باندې کسانویوازې دومره کولای شول چې ځانونه پرمځکه ونښلوي اوځانونه دهرځومره کوچنیوالي لپاره سره نناباسي اودا دعا چې له داسې ورځې چې هیڅ پای ته نه رسېږي، ژوندي راووځي. دوهم ګیري په جبل السراج کې دنوي قرارګاه څخه تېره شپه خبرراکړچې جنرال بریالي خان دنومبر په یوولسمه دتالقانوښارونیوه.

په زرګونوطالب جنګيالي په داسې حال کې چې په خلاص ډاګ کې دسویل یا دکندوزپه لورې په شاتګ کاوه، زنداني ونیول اومرګ ژوبله هم درنه وه. کندوزکلابند و اودښارپه منځ کې دمقاومت کوونکودتسلیمیداپه خاطرخبرې اترې روانې وې. که څه هم چې دطالبانوروحیه له ماتې سره مخامخ وه،خوپاکستاني

،چيچنيـايي، عـرب اوازبـک کوچنيوګروپونـواوس هـم سـخت مقاومـت کـاوه. دباميانوښارهم دقومندان خليلی لاس ته دپريوتلوپه حال کې و. په هرات کې داسماعيل خان د برياوازې هم وې اودغورپه ولايت کې دشمالي ټلوالې اړوند قومندان ابراهيم علي خوځښت پيل کړی و. په شمال کې حالات ښه پرمخ روان وو. ستړان يـوه پياله کـافي څښـله اودګـروپ سـره دناسـتې پرمهـال دورځـې پـه اوردوکې دپېښوپه څرنګوالي غږيده. تورن امېرراغـی. امېرله قدخخه لنډ، سخت ځان او ايرې ته ورته انسان و.اغوستی يونيفارم يې يويا دوه نمبره ترې کوچنی و. هغه اوږده ږيره لرله اوسپين اوتورټکي لرونکی دسمال يې داورمېږخخه څوځلې راتاوکړی و. داسې ښکارېده لکه ورمېږيې چې دمټونوسره سم اونټوتی وي!

امېرپه خپل ستړي مشي کې وويل:ښاغلونن ستره ورځ ده. جنرال بسم الله په اووه نيمې بجې ديرغل دپيل امرکړيدی. هغه خبرې وځنډولې بيا يې ساعت ته وروکتل:په دوه ساعتونوکې،هرڅومره ژرچې رڼا خواره شي.هغه له تاسې غواړي چې له لومړی کرښې سره نږدې کاروکړي اوپه خوړونـوکې دطالبانوهغه دفاعي کرښې چې لويې لارې ساتي،ترسترګولاندې وڅاري .دسهاردخوراک وروسته به زه دځارنې لپاره هغه لوړه نقطه چې ستاسې لپاره انتخاب شوي ده، وربدرګه کړم.

ټـول کسـان لکـه يـوکس چـې ولاړوي، ودرېـدل اود ۵۵۵ ګـروپ مشرافسـر ار ځـواب ورکـړ. تـورن صـاحب دسـهاردوډی موپـای تـه ورسـوله. موږبـه خپـل تـوکي راغونډ اوپه پينځودقيقوکې به خوځښت ته چمتووو. هغه ګروپ ته دورکتلولپاره وروګرځېد موسکی شو ويې ويل:راځئ چې يوځه نور ژړيدونکي حراميان جنت ته وروليږو. پـه داسـې وخـت کـې چـې سيمه يـې لـه چټلـی پاکولـه، دخوشـالی شورجوړشو.

ستړان سخت ستړی و،تياره وه اوغوړونه يې دورځې دبمونودچاودلو،دماشين ګڼودډزو، دهاوان دمرمېودلګېدلواودکسانودمړينې دغږونوڅخه ترنګېدل.

نن ورځ دېرش الوتکې د ۵۵۵ م ګروپ په واک کې ورکړل شوي وې اود۵۵۵ م ګروپ دغه الوتکې دبسم الله خان دبريدکوونکوځواکونولپاره دبيړنـی مرستې په توګه وکارولې. نوموړي ګروپ ديرغل کوونکوځواکونوترشا و .جګړه يې ځارله اودهغه کـوچني ګروپونـوچې سخت مقاومت يې کاوه، دبمبارۍ لپاره په نښه کول.

دغه کا رګروپ ددښـمن لخـوا دټولې ورځې په اوږدوکې ددوام داره ډزوسره مخـامخ کـړ. دکابـل دزاړه سـړک څخـه پـه پورتنيوخوړونو(تنګيـو) بانـدې دورځـې پـه وروسـتيوکې ددې دپـاره چـې دوه زره پاونـډه وزن لرونکـي هوښـيار(رهبري کيدونکي. ژباړن)بمونه دکابل دزاړه سړک څخه په پورتنيوتړانګوکې بمباری دورځې وروستی برخـې تـه ددې دپـاره چـې (دتـورن امېرپـه وينـا چـې شيطانان راويښ

کړو)دوه زره پاونډه هوښيار [1] بمونه راورسيږي، وځنډېدله. دشمالي ټلوالې لومړني ځواکونه په دره باندې سخته بريد وکړچې حتى مخکې له دې چې دچاودنې لوګي اودوړې له منځه لاړې شي،ورننوتل.

جګړه ډېره سخته وه. نږدې جګړې ،حتى په ځينوځايونوکې لاس په لاس جګړې دوام داره ډول پنځه ساعته ونيول اوپه منځ کې ايله بيله دومره ځنډ چې الوتکه موددښمن په وړاندې دبمبارۍ اودهغوی دفاعي کرښودړې وړې کولوپاره راغوښتې، شتون درلود. بيا هم دغه بهرني جنګيالي - پاکستاني - عرب اوچيچنيان ول چې دومره سخت مقاومت يې وکړاخويوځل چې په دره کې دفاعي کرښې ماتې شوې، شمالي ټلوالې ډېرژرپرمختګ وکړ.

دطالبانوځواکونوپه ماتې پيل وکړ- په شاتګ اويا به يې تسليمېداته غاړه ايښوده اودبهرنيوځواکونوکوچني ګروپونه يې دشمالي ټلوالې په وړاندې مقاومت کړلوته يوازې پرېښودل!

نوموړي کوچنی ګروپونه د ۵۵۵ م اودامريکې دهوايي ځواکونولومړني اهداف ول. دلومړی لويې لارې سره پرمختګ په کراره خوثابت و.سټان اوګروپ دوړاندې تلونکوځواکونوسره يوځای خوځېدل.

دوی ته تورن امېرخبروړکړچې دطالبانودلومړی کرښې دختيځې برخې سره يرغل ډېراسان و. وروسته له دې چې تېره ورځ بمباري داغلبک اواستالف باندوته دروندزيان ورواړوه، په اغبلک کې دطالبانوقومندان دده مخالف قومندان سره دخپلوځواکونودتسليمېداپاره خبرې اترې پيل کړې. جنرال بسم الله خان نوموړي مذاکرات څارل خوکله چې په همغه سهارداووه نيمې بجې ديرغل وخت رانږدې شو.

هغه باورراغی چې خبرې اترې د ځنډ رامنځته کېدلويوتکتيک و. دهغه ځواکونه اغبلک ته ورننوتل اودلږمقاومت وروسته يې ونيوه اوبيا يې سمدستي استالف باندې يرغل وکړاودلږمقاومت وروسته يې هغه هم ونيوه.

دسويل په لورې په دوهم سړک باندې خوځښت سخت واويوازينی سخت مقاومت بهرنيوجنګيالوکاوه. تورن ار دسټان ترځنګ کېناست اوهغه ته يې داوبوبوتل ورکړ. يوغوړپ يې وکړه اودجګړې خوندله خولې پاک کړه. سټان بوتل ترې واخيست ،له هغه يې مننه وکړه اوترې ويې پوښتل:دسبا لپاره حالات څنګه ښکاري؟

تورن امېر خبرراکړچې جنرال بسم الله خان دشمالي په اوارو سيموکې پردواړوکرښوددرنې جګړې اټکل کوي. اوس مهال هم ددښمن ځواکمن ګروپونه

---

[1] هوښيار يا په انګليسي ژبه کې ورته (Guided) راکټ وايي چې په موډرنه تکنالوژۍ مجهز دي ، دلېرې واټن څخه د کمپيوټر په واسطه رهنما کېږي. ژباړن

شته خوزيات شمېرېې بهرنيان دي. دوی دمخابرودمالوماتوله لارې څرگندونه کوي چې دطالبانورهبران دکابل ښارڅخه دسويل اوختيځ په لورې په وتلوپيل کوي. لروراندې جنرال بابا جان راغی اوويې ويل چې پروفيسورسياف دخپلوځلوورزره کسانوسره دجلال اباد په لورې خوځيږي ځودطالبانوپه شاکېدونکوځواکونه همغه خواوتښتوي. بابا جان دبسم الله خان دجنرالانوله ډلې وچې دشمالي ټلوالې ځواکونودديخوافرقې مسوليت يې په غاړه درلود. تورن ار ځواب ورکړ:داخودېرښه خبر دی سبا ته به همدغه ډول حالات ادامه وکړي. سبا نه بله ورځ به په کابل کې وو.ستان له اوبو اوږد غوړپ وکړ ويې ويل:ژامې ماتوونکی گروپ ته مې ځودقيقې وړاندې ټليفون وکړ. گيري وويل چې دشمال په نورو برخو کې هم حالات پرمختگ کوي. کندوز يواځينی ځای دی چې لا تراوسه پکې مقاومت شته. بيا هم بهرني ځواکونه دي چې غواړي مقاومت وکړي اوله مرگ سره مخامخ شي. تورن ار ولاړشو او ويې ويل: موږبايدلږوراندې ولاړشو،کسانودشپې تېرولولپاره ښه ځای پيداکړی دی!موږ به دندې سره بدلې اودخوراک لپاره به يوځه راواخلوسبا ته به هم يوه بله اوږده ورځ وي.

# ۱۴ نومبر ۲۰۰۱

دوهم گيري دستان ترڅنگ د ۵۵۵ گروپ دسرتېروپه يوه دايره کې ولاړ و چې هريوه دستاربکس کافي څخه غوړپ کاوه. دوهم گيري نوموړي ځای ته دسهارپه پينځه بجې سره د دوه ترموزه تازه جوړې شوي کافي، راورسېد. داسې يوځه چې په لومړی کرښه باندې کسانودخوورخووروسته ترې خوندواخيست. دوهم گيري کسانوته وروکتل. ټول ککړ شوي وو جامې يې په دوړواوختوداغ داغ وې. ږيرې يې ببرې اودگوتو نوکان يې په خاورتورشوي وو.

دهرسړي سره دمينځلولپاره دومره اوبه شتون درلود چې يوازې مخ او لاسونه يې پرې يوځل مينځلای شول خو بيا هم دوی خوښ و. دوی چېرې چې جگړه وه، خوشاله وو اودتورن ار په وينا دوی د نيزې سرته رسېدلي دي (هدف يې دجگړې کټل دي. ژباړن)سهارسوړ واو تودې کافي بخارکاوه. ستان گيري ته وويل: تورن امېر ستاسې دراتگ څخه لږوراندې دلته راغلی واوخبر يې راکړچې بريد په شپږ نيموبجوپيل کېږي. دهوايي ځواکونوتکتيکې افسر وويل:چې په شپږ نيموبجوبه لومړی الوتکه په هوا کې گرځي. نن ورځ مورته دهرځومره ډېروالوتکې چې موريې اداره کولای شو، وعده راکړل شوې ده. دوهم گيري موسکی شو:هوداهم عجيبه ده چې ځومره ژرهرڅه بدلون مومي!ستا په فکرنن ورځ له څه سره مخامخ يو؟

تورن ار دجګړې دډګرپه لورې مخ وروان‌وه. هغه له ختوجورې شويوهغه ودانيوته چې تقريبا يوميل ليرې دمځکې په يوه پرتليز ډول لوړتينډي باندې جوړشوې وې،اشاره وکړله اوويې ويل:دنن ورځې لپاره همغه لومړی هدف دی.

عربانو د همدغه سمځې دننه اودکلا په شاوخواکې خوسوه کسان هاخوا ديخوا خوځولي دي. دوی لږترلږه يو زيډ اېس يو ۲۳ توپ او يو شمېر14. 5 ملي متره ماشين ګنې ځای په ځای کړ ي دي. هغه له پيالې څخه يواوږدغوړپ وکړاودوهم ګيری ته يې وروکتل ويې ويل:زما په فکرحالات دخوځېدونکي اوګرندي حل غوښتنه کوي.

څلورياپنځه داوسپنې بمونه اويا ښايي يو دوه زره پاونډه هوښياربمب دغه دنده بشپړه کړي. وبه ګوروچې دبمبارۍ په لست کې لومړی څه لرو؟

ستاېن دجګړې ډګرته وروکتل. او.. هو... د سهارپيل کولولپاره څه ښه لاره ده!د ابرټ ډوول هغه خبره چې داوسني اوپوکلاپس (د نړۍ پای يا قيامت چې په انجيل کې ذکرشوی دی. ژباړن) فلم کې کوي. ټولوپه يوه اوپه لوړغږوويل:زما په سهارکې د ناپالم (هغه موادچې مرباته ورته دي اودپټرولوڅخه جوړېږي. دسون قابليت لري اود بمونوپه جوړولوترې ګټه اخيستل کېږي. ژباړن)دسولوبوی ډېرخوښېږي. ټولوپه زوره وخندل اويواوبل يې په شا وټپول. دوهم ګيري ته دښوونځي پرمهال دفوټبال دلوبې دلومړی هاف ټايم(تفريح) څخه لږوراندينی شېبه ورياده شوه چې په اسانۍ سره يې لوبه ګټله. ټول خوشاله، مغروره، ډاډه اوله شېبويې خونداخيست. مورستا له هغې مهربانۍ څخه چې دکورخوندموراياد کړ، مننه کووخوزما په باوربايدزينونه وټرواورځ پيل کړو. دوهم ګيري دسمځوګډې کلاته وروکتل:راځئ چې ورځ له خرپ سره پيل کړو:ښاغليوبرياموغواړم. دمازديګرپنځه نيمې بجې اوماښام يوازينی يوساعت ليرې واودوهم ګيري دمهموکسانودموټروپه تم ځای. دکابل هوايي ډګردعمومي ترمينل ترڅنګ ولاړواوهغه ډزوته چې دکابل له ښارڅخه ددوی په لورې په خوځښت وي، غوږنيولای و. هغه شا وخوا وکتل. دعمومي ترمينل ودانۍ خالي وه. بهرني دېوالونه يې ځای ځای دچاودنوله امله ژورزيانمن اودمرمېودلګېدلوله امله خال خال ول. کړکيويې شيشې نه لرلې اودڅه دباندې شل کلنې جګړې ويجاړتياله لېرې ښکارېدله.

هغه په کراره درې سوه شپيته درجې تاوشو. دشمال په لورې کې هغه مځکې ته چې دښمن يې سخته دفاع کړي وه اودلته اوهلته په اواراوپراخ ډاګ کې لوګي پورته کېدل، وروکتل.

کله چې دی وګرځېد په لنډپس منظرکې دالوتکې يوازينی له کانکريټ جوړه شوي ځغاستې لارې ترڅنګ واښه د ودانيو د لويدلو له امله ټول ککړ ول. هغه

وابسه چې دودانۍ دلویدلوڅخه پاتې وو، دکانواوخښتوڅخه راوتلي وواوشاوخوایې کندکپراوتاوو شوالوتکوکباړپروت و. دالوتکې دځغاستې لاردګې شمېرویجاړشویوتوکو،تیرې ،ماتې، خښتې، تاوشوې اوسپنې ټوټوڅخه ډکه وه اولړترلړه یوجسدچې دځغاستې لارې په څنګ کې په وابسوکې پټ و، پروت و. هغه مخ راواړوه څوښاروګوري. دکابل ښاردشمالي څنډې ګې شمېرچټل کورونه یوازې څوسوه متره لیرې واواصلي ښاردیوه میل څخه نږدې پیل کېده. هغه دکابل دښارهغه پخوانۍ نقشه چې ده له ځان سره راوړې وه، لوستلي وه اودی پوهېده چې دامریکې سفارت سویل لورې ته یوازې دوه میله واټن کې موقیعت لري اولړشانته دسترګوپناه ده.

دورځې په اوږدوکې دوهم ګیري، سټان اود۵۵۵ ګروپ کسان دجنرال بسم الله خان دځواکونوپه داسې حال کې چې ددفاعي موقیعت جوړولوپه خاطردراغوندېدونکي دښمن دبمبارۍ لپاره الوتکوته په نښه کول،وروستنۍ لس میله دشمالي په اواروسیموکې څار کړل.

دورځې په اوږدوکې دوهم ګیري، سټان اود او ډي اې ۵۵۵ ګروپ کسانودجنرال بسم الله خان ځواکونه دشمالي په اواروسیموکې په داسې حال کې چې ددفاعي موقیعت لپاره راغونډېدونکي دښمن یې دالوتکولپاره دبمبارۍ په خاطرپه نښه کاوه. وروستۍ لس میله په واټن تعقیب کړ. په ځینوځایونوکې جګړه ډېره شدیده خوکله به بم په دومره زیات دقت اودنه منلووړ ځواک سره پرهدف ولګېد،چې دجګړې پایلې هروخت ښکاره وې. دکابل په لورې خوځښت په کراره اوله خطره ډک و. دوی په پیک اپ موټرواو یو د سرف جیپ موټرکې چې زیات وخت به یې عمومي سړک کاروه، تلل. دسړک غاړې دجګړې له امله ګې شمېروران شویوتوکوڅخه ډکې وې، له سویوټانکونوبه لوګي پورته کېدل اوددوی درنې سټې چاودېدلې اوتاوشوي وې چې پکې کسانوجسدونه په بدرنګ ډول دکندکپرکباړشاوخوا پرتې وې. دختوجوړې شوې کلاګانې چې سمڅې یې ترې جوړې کړې وې، دچاودنوپه واسطه خلاصې شوې اودوړې اولوګي اوس هم ترې پورته کېدل. په کوټوکې دلته اوهلته دراپریوتوخښتواولوټوپرسرجسدونه خواره واره پراته وو. کسان څوځلې ځنډېدلوته اړشول خودسرتمبه طالبانو او بهرنیو جنګیالو پرکوچنیوګروپونوباندې اور راوغواړي چې ګې شمېرسرې مرمۍ د موټرو ترڅنګ اویا دهغوی په سرونوپه هوا کې چاودېدلې. دمعجزې په څېر، د موټرو دغه کوچنی کاروان ترپایه خوندي راووت.

دوی د میلو په واټن له بشپړې ویجاړتیا تېرشول. دشمالي اوارې سیمې یووخت دکابل دباغونوغني ځای و چې سیمې یې دانګوروله تاکونو، دزیتون له ونو، دمڼوله ونو، دخربوزواودجواروڅخه ډکې وې. دپټې لپاره داوبوویالوپه

پټیوکې دومره ډېرې وې چې صلیبي نښه (+)یې غوره کړې وه اوداوبوپریمانتیا اوارې سیمې اوپټي یې پرتک شنه سینداړولې وې. بیا د ۱۹۸۰ کالونوپه پیل کې دشـــوروي پوځونودونوزیاتـــه برخـــه اودانګوروتاکونـــه ددې دپـــاره چـــې دمجاهدینودپټیدنې ځای ورک کړي ځکه چې پرشورویانویې دکمینونـواو دسړک ترغاړې دبمونودچاودلوله امله دوزخ جوړکړی و، له منځه یوړل. دغه ودانی حتی په ۱۹۸۹ کال کې دروسانودوتلوڅخه وروسته هم دوام وکړدنجیب الله کمونیستي رژیم ودانی ړنګې اوپرځای یې دفاعي موقیعتونه جوړکړل ځوپه ښارکې خپله والکه ټینګه وساتي. په ۱۹۹۲ کال کې وروسته له دې چې دنجیب الله رژیم له منځه ولاړ، په نوموړواوارو سیموکې ودانی یوځه بیا ورغول شوې خوپه ۱۹۹۶ کال کې طالبانوبیا په بل مخ واړولې. دوی خولا نورهم پسې ورتېرشول او د اوبو ویالې یې له خاورودکې کړې څود دوی د روڼ قانون په وړاندې ددغه خلکودمقاومت له امله هغوی ته سزاورکړي. تېرو څو ورځو درنې بمبارۍ او سختې جګړې د ویجاړتوب او ورانی کچه بشپړه کړله. په موټرو کې له ډېرو داسې کلیو چې په پوره ډول وران، اوار او په خښتنه او خاوره بدل شوي وو. له دوو ویالو باید هاخوا تېر شوي وای. د تیږو په موږو باندې موټر د ختلو له امله ښکته او پورته کېدلو او په برسیرنو (سطحي) اوبو کې د موټر د تګ له امله اوبه دواړو خواوو ته الوتلې او په پای کې بلې خوا ته په سختی سره وختلو.

پلونه ټول ویجاړ شوی وو او په عجیب او غریب ډول به د کانکریټي متو پر سر اوښتي پراته وو. مړي به خواره واره یو یو پروت او یا به د خاورو او شړو په ډانبار(کوټه) باندې لاسونه، پښې او وسلې سره پراته وو. دوهم ګیري څو ځلې فکر وکړ چې ددغه ځایه تېرېدل،د دوزخ څخه تېرېدلو ته ورته دي.

دوی د کابل هوايي ډګر ته مازدیګر په پنځو بجو او لسو دقیقو راورسېدل او د جبل سراج څخه د ژامې ماتوونکي ګروپ د پاتې غړو د رارسېدلو په انتظار و. ستان شاوخوا وکتل او له ځان سره یې وویل: دا ټوله ویجاړتیا خو هم پخوانی نه ده. موږ د اکتوبر په میاشت کې هغه ای اېل -۷۶ ډوله الوتکه والوځوله. هوايي ځواک د طالبانو د ټولو الوتکو په ورانولو کې جدي وو او بمباري مو د بګرام څخه انسجام کوله.

زما په باور په همغه یوه شپه یې لس یا دولس الوتکې له منځه یوړلې. دوهم ګیري سر وښوراوه ویې ویل: دا خو ناشونې ده چې سړی د اوسني او د ۱۹۸۰ کالونو په مهال د شوې ورانی تر مینځ توپیر وکړي. دلته خو هرڅه ټوټې شوي دي. د ښار څخه د ډزو غږ نور هم لوړ شو. ټانک ډزونه کول، چاودنې او د درنو ماشینګنو ډزې هم اورېدل کېدلې. دوهم ګیري د ښار په لورې وروکتل څو دډزو لوری پیدا کړی. د دریو یا څلورو موقیعتونو څخه لوګي پورته کېدل خو بیا

يوې چاودنې تاوېدونکې لوګي او ګڼ شمېر توکي هوا ته پورته کړل.
دا خو له دې ځایه څو میله لیرې دی. داسې ښکاري چې هر څه ګړندي کېږي خو د ډېر وخت لپاره به نه وي. همدا شېبه کې یو جیپ موټر په ټوپونو چې تر شایې د دوړو لیکه وه،زموږ خوا ته راغی.
کله چې موټر غاړې ته ودرېد. دوهم ګيري ممتاز د موټر په ړاندیني سیټ کې ولید. هغه د تورن امېر سره ښار ته تللی و. څو هغه هوټل چې د ځانګړو ځواکونو د ۵۵۵ ګروپ او د ژامې ماتوونکي ګروپ لپاره په داسې حال کې چې ښار خوندي کېږي،د موقعتي خوندي ځای په توګه وکارول شي. ممتاز موسکی و. په داسې حال کې چې لاس یې د سترې مشي لپاره غزولی و، راورسېد.
اغا ګیري هرڅه ښه پر مخ روان دي. د مقاومت وروستی کوچنی ګروپ تر یرغل لاندې دی او جنرال باباجان ډاډه دی چې تر راتلونکې دېرشو دقیقو به له منځه یووړل شي. په ورته وخت کې د جنرال بسم الله خان د ژمنې سره سم هوټل اوسمهال خوندي دی. ستاسې به خوښ شي که څه هم چې طالب ځناورو څو حمامونه ککړ کړي دي او د وزو او پسونو د ساتلو لپاره یې کارولي دي،بیا هم په ښه حالت کې دي. موږ به سبا ته د هوټل پاکوالی پیل کړو. راځئ یوازې پینځه کېلومتره واټن لري او ستاسې سفارت ته ډېر نږدې دی. دوهم ګیري د ممتاز له پنجو څخه خپل لاس خلاص کړ: ویې وپوښتل: زما ګروپ به څنګه کېږي؟
دوی خو لا د جبل سراج څخه تر اوسه نه دي رارسېدلي، اغا ګیري. اندیښنه مه کوه موږ به حافظ ته چې دوی ښار ته رهنما کوي، مخابره وکړو. هغه هوټل لیدلی دی او ګروپ به نیغ په نیغه هوټل ته راولېږدوي. موږ ځیني سرتېري د چاپیریال د خوندي کولو لپاره په دنده ګومارلي دي. عارف لا تروراندې اړیکه نیولې ده. راځی چې ټول سره یوځای شو او زه مو تر هوټله بدرګه کړم.
دوهم ګیري خپل ساعت ته وروکتل: د نومبرڅورلسمه او د مازدیګر شپږ بجې وې چې د امریکا د سفارت له ودانی زموږ د موټرو کاروان تېر شو. هغه له ممتاز غوښتي و چې کتار په کرار کړي څو د سفارت ودانی ته سر سري وروګورو. دغه حقیقت چې دوی د ډېرو زیاتو کلونو وروسته په کابل کې لومړني امریکایان و، ټکان ورکونکې و. دوهم ګیري ودانی ته د ورکتلو پوره وخت درلود. سپینو مرمر تیرو څخه یې بهرني دېوالونه جوړ وو او اوس مهال د کلونو دوړو او بې پروایی له امله خړه پړه وه.
لوړه اوسپنیزه جالی زنګ وهلې خو اوس هم سخته ښکارېدله. هغه پوهېده چې افغان کارمندانو ته چې د ۱۹۸۸ کال د سفارت تر تړل کیدا وروسته د ټولو کلونو په بهیر کې هغوی ته د کلا او د ودانیو د ساتلو له امله تنخا ورکول کېدله.
دوهم ګیري کېناست او د تېرو لسو ورځو پېښو ته یې بیا کتنه وکړله. هغه په

څلورم نومبر په داسې وخت کې چې حالت تر هغې نامالوم و، راغلی و.
هېڅو ک هم په دې نه پوهېدل چې په شمال کې به جګړه څنګه پرمخ ولاړه شي او یا دا چې طالبان به د کابل او نورو ښارونو څخه کلکه دفاع وکړي. اوس لس ورځې وروسته هغه یو خپلواکه ګروپ تر کابله رهبري کاوه. په شمال کې پرته له کندوز څخه ټول ښارونه د شمالي ټلوالې په والکه کې ول. د راتلونکو څو اونیو پر مهال مو باید زيات کارونه ترسره کړي وای. خو اوس مهال ارام وو او پر بریالیتوب مو فکر کاوه!

په هغه هوټل باندې چې موږ په کې ځای په ځای کېدلو یو ښښه ولیدله. هغه له ځان سره فکر وکړ. په کابل کې زموږ لومړنی شپه ده! یاره... یوه اوونی وړاندې به چا په دغه حقیقت باور راته. نابېره د اسمان لیدونکې لمن چاودنو او پرکو سپینه کړله. د ټانک دز و او جنرال د وروستي مقاومت په له منځه وړلو بوخت و.

د ټوپک ډزو غږ د چاودنې له لورې راغی،ورو په ورو لوړیده. بیا ټیټ شو او په څو بې سبکه غږو باندې پای ته ورسېده.

ستان د ورستني سیټ څخه را وړاندې شو ویې ویل: زما په باور په رسمي ډول اعلان کولای شو چې کابل... هغه بیا خبرې وځنډولې څو وخت قید کړي. ویې ویل: د ۲۰۰۱ کال د نومبر په ۱۴ او د ماښام په شپږنیمو بجو د شمالي ټلوالې لاسونو ته ولوېد!

## د مزار شریف سویل
## ۱۰ نومبر ماښام ۲۰۰۱

ارجې او فرانک په تیاره کې د یوې پلنې تیږې چې د غونډۍ تېرې ژۍ ته نږدې وه، د پروت په حالت کې د طالبانو هغه ځای ته چې ښايي مزار شریف ته ددوستم د ځواکونو لپاره د طالبانو لخوا د ممانعت وروستنی هڅه وي، ورکتل.

د سپوږمۍ دومره رڼا وه چې هغوی کولای شول چې د دوستم ځواکونو لخوا د غونډۍ په بیخ کې جوړې شوې کرښې وويني. د غونډۍ د بیخ څخه یو پراخ او خلاص ډاګ و او د ارجې په باور د طالبانو دفاعي موقیعتونه تقریبا درې زره ګزه لیرې واټن درلود.

ارجې خپل ساعت ته وروکتل او فرانک یې په مټ وواهه ویې ویل: لس دقیقې پاتې دي. فرانک سر وښوراوه ویې ویل: هو دا به ریښتینی نمایش وي! ستا په فکر د دښتې په هغه پای کې هلکان په دې پوهیږی چې ددوی په بخت به څه سوغات وي؟ نه د هغه د تش لاسه عراقي حرامیانو څخه چې د توپان په

دښته کې و، زیات نه دي خبر! په هغه وخت کې پر عراقیانو د شپې په مهال دوه بلو -۸۲ ډوله بمونه وغورځول. لومړی بم د مځکې پر مخ چاودېدلو ته برابر کړی و او په راتلونکې شپه دوهم بم یې په هوا کې چاودېدلو ته پروګرام کړی و.
دوی غوښتل چې د نومړو دوو چاودنو تر منځ په دښته کې د ویجاړتیا کچه وازمایي!؟ نوموړي لعنتي شیان دواړه پینځه لس زره پاونډه وزن لري او چاودنه یې دومره زوروره ده چې د چاودېدلو وروسته د مځکې څخه ستوري ته ورته وریځ هوا ته پورته کوي. بېخي لکه د اتوم بم چاودنه! عراقیانو فکر کاوه چې په هغوی مو ذروي وسله کارولې ده. فرانک د افغانانو هغه ګروپ ته له دوستم راچاپیره و، وروکتل: دوستم یوه جوړه روسي ـ جوړ د شپې د لیدلو عینکې لرلې چې پر غاړه یې ځوړند وې الفا ګروپ د خواخوږی له امله هغه ته ورکړي وو . په یوه تیره باندې ناست و او تر مخ ډاګ یې څاره.
د دوستم د ګروپ ترشا د ځانګړو ځواکونو ګروپ هم د یوې لویې تیږې تر شا راغونډ شول. ټول خو د نمایش د لیدلو لپاره راغونډ شوي دي. هیله ده چې ناکام نه شي. ارجې وویل زما په فکر هغه اړخ د اندیښنې وړ نه دی. په دې هیله چې هغوی دغه لعنتي شی ددوی څخه راواړندې نه کړي او چاودنه موږ ته نږدې ونه شي. فرانک په خندا سره وویل: بلې ښه فکر د کړای دی. ارجې د ایم سي-۱۳۰ ډوله الوتکې بې سکه غږ واورېد او ښي خواته د اسمان په لورې د الوتکې د پیداکولو په موخه وروکتل. هغه حتې د سپوږمې او د ستورو رڼا سره سره هیڅ الوتکه ونه لیدله.
خو هغه پوهېده چې نوموړې هغه الوتکه ده چې بلو ۸۲- **Blu** ډوله بمونه لیږدوي. کله چې الوتکې په هوا کې الوتنه کوله، د ارجې په فکر کې په الوتکه کې د کېدونکې فعالیت انځور راغی. هغه پوهېده چې اوس مهال د الوتکې کارمندان د هغه ستر صندوق چې نوموړی بم لیږدوي، الوتکې له شا څخه د غورځولو لپاره چمتووالی نیسي.ایم سي -۱۳۰ الوتکه د دومره زیات وزن څخه د خلاصیدلو په مهال مخپورته جټکه وخوري! ارجې د الوتکې څخه د بنډل د راغورځېدلو وروسته د پېښو په سلسله پوهېده.
په داسې حال کې چې د لرګي دروند صندوق سره جلا او لیري لویږي،بلو ۸۲ بم د مځکې په لورې ګړندی لویدلو ته دوام ورکوي.
د بم د وروستی برخې څخه د مځکې په لورې د بم د لویدلو د سرعت د کمولو لپاره یو پراشوټ راوځي او بم د وړې چترۍ لاندې د ساعت د لنګر په ډول مخ ته او وروسته زانګي. ارجې د بم د لویدنې د وخت انتظار کاوه. ساه یې بند کړه او سترګې یې په دره پورې د دښمن د کرښو په لوري ورواړولې. څو شېبې وروسته یوه لویه پړکه ولیدل شوه او د لړزې یو لویه څپه چې په سترګو لیدل

کېدلـه. د هغـه سـيمې ځخـه چـې پـنځلس زره پاونـډه تخريبـې بـاروت پکـې وچاودېدل، د بيديا په لورې خواره شوه او غږ يې تقريبا د چاودنې سره سم په يو ځای راورسېد ، ارجې د تيرې ترشا خپل سر پټ او لاسونه يې د ويجاړونکې غږ ځخه د امن لپاره په سر کېښودل.

هغه يې له تيرې ځخه په زوره شا ته وغورځاوه. پوندې يې ولګېدلې. بيا يې په سخته او زيږه مځکه باندې وويشت او د باد يو ه څپه د چاودنې په واسطه د جوړې شوې خلا د ډکولو لپاره بيرته تېره شوله.

د ارجې غوږونه ترنګېدل. کسانو چيغې داسې لکه چې د يوه ليرې واټن ځخه چې راځي، اورېدل کېدلې.(افغانستان ته د امپراتورانو هـديره ويل کيږي، ژر ده چې هر ظالم ته بـه د طالب ځواکونو په ډول سزا ورکـول کيږي، ژباړن) هغه فرانک ته وروکتل او هغه پرمځکه باندې په څټ پروت. لاسونه يې خواره واره و او بدن يې د بې هوښۍ له امله بې حرکته پروت و.

ارجې په داسې حال کې چې په ګونډو کېناست او هغه يې راواړوه ويې ويل: دغه لعنتي شی خو دی بې هوښه کړی دی. لاسونه يې د فرانک د بدن په پورتنی برخه راتېر کړل. د فرانک د سر پـه وروستنۍ برخه باندې د لاسونو د راتېرولو پروخت يې د هغه په سر پړسوب وليد او په مځکه باندې د لګېدلو له امله يې وينه هم بهېدله خو ټپ يې خطرناک نه و. ارجې په پښو ودرېده او ډاګ په کتلو سره د ويرې له امله په شا وتنبيده! د بم د لګېدلو د ځای ځخه د مځکې د ستوري په ډول يو خواره لوی او خوتيدونکې لوګی راپورته کېده او په ډاګ يې د څو سوه ګزه په پراخوالي کنده جوړه کړې وه.

دا دقيقا هغه ډول چې ده په هر فلم کې د اتوم د چاودنې انځور ليدلی و، ښکارېده او د ويرې يو ځواکمنه څپه پرې راغله. هـوا غږمبهارکاوه اودغه سترې چـاودنې غبرپـه غونـډيوکې انګـازې کـولې. هغـه لـه ځـان سـره وويـل:اوهو زمـا خدايه:موږدچاودنې دځـای ځخـه د يـو ميـل پـه واټـن ليـرې واولـه مـوږيې هرځـه وباسل. هلته به دطالبانوپرليکوڅه حال وي!؟

ارجـې دفرانـک ترڅنـګ کېناسـت. خپـل دسـمال يـې داوبولـه پتکـې ځخـه پـه اوبولوندکړاودهغه پرمخ يې راتېرکړ. فرانک پـه احساساتوراغی. زګېروی يـې کـاوه اومخ يې له درده تريو وو. او۔ ۔ هو۔ او... يې کول.

فرانک ارام وکړه. سردې له مځکـې سره پـه زوره وهلـی دی اوبـې هوښـه کړی يې وې خوفکرکوم روغ رمټ يې، ارجې خبرې بندې کړې ځکه چې دالوتکې دانجن غږيــې واورېــد. بيــا يــې وويــل:اولعنتي دوهمــه الوتکــه د بلــو ۸۲ ســره دطالبانودحيرانتيا لپاره راغلـه. ارجي فرانـک لړراجړکړاوخپـل کوچنی بکس دهغه دسرلاندې اولونددسمال يې دخوړځای لاندې ورکېښود.

هغه دفرانک ترځنگ په اوږدووغزېد اوله ځان سره یې وویل:یاره ددوهمې ډول زورور واودلړزې څپه ددوی ترشا غونډی سره په خړپ سره ولگېده. غورېدونکې غبارجې په داسې حال کې چې مځکه لکه چې خوړېږي وربېږدېدله. سترگې یې پټې اودارام هڅه یې وکړله. دهغه یوازینی فکرهلته بیچاره حرامیانوته وو!

دوی ته یې دوزخ لا له اوسه ورونښود! په همغه شپه مزارشریف ددوستم ځواکونولاسونو ته ولوېد.

## وروستی خبرې

د۲۰۰۴ کال داکتوبرنهم سهاردافغان خارگره اداري دمشرامرالله صالح په دفترکې ناست وم اوپه افغانستان کې همدا شیبه پیښیدونکي ولسمشری ټول ټاکنې موسره خیرلې.

داته ملیونوځخه زیات ښځواوسړیودطالبانواوالقاعده له خوا دتشدداوتیري دگواښونوسره په کتارونوپه داسې حال کې چې هواهم ډېره خرابه وه( ساړه اوددوړوتوپانونه دهیوادپه نیمایي برخه سویل کې اوباران اوواوره په شمال کې وریدله) په تاریخ کې دلومړي ځل لپاره دازاداوولسواکه ټاکنوله لارې دخپل ملي رهبردټاکلولپاره درایومرکزونوته ولاړل.

دملي امنیت مشرصالح مې پخوانی ملگری دی.زه هغه د۱۹۹۶ کال راپه دیخواچې ما کابل ته دمسعود سره دلیدنې لپاره سفرکړی و،پیژنم.

صالح هغه ځوان عمره هلک و چې مسعودپرې ډېرزیات باور و اوپه ۱۹۹۷ کال کې په دوشنبه ، تاجکستان کې دشمالی ټلوالې ددفترریس وټاکل شو.دهغه وروسته دتیروکلونوپه خار سي،ای، اې دمسعودسره په دوشنبه کې دصالح د دفترپه واسطه اړیکې نیولې.

په ۲۰۰۱ کال واداکتوبرپه وروستیوکې چې صالح په همغه وخت ایله بیله دیرش کلن و،هغه ته امروشوچې پنجشېرته راشي اودانجنرعارف سره دشمالي ټلوالې داستخباراتوددفترپه اداره کولوکې دهغه دځانگړي همکارپه توگه دنده اجراکړي.

دهغه دنده لامل شوه چې دژامې ماتوونکي گروپ سره اړیکه ټینې کچې ته راولي خودکابل په نیولو سره دغه حقیقت بدلون وموند.کله چې دشمالي ټلوالې بریالي ځواکونه دکابل ښارپه کال ۲۰۰۱ دنومبر په څوارلسمه باندې ونیوه،انجنرعارف اودهغه په پخواني ملي استخباراتوپه پاتېشونوباندې کنترول په لاس کې واخیست اودغه دفترېې دملی امنیت ریاست ونوماوه چې امرالله

صالح یی د سي،ای،اې سره د ارتباطي افسر په توګه ددغه ریاست مشر وټاکل شو.

کله چې موږدصالح په دفترکې ناست واودهغه تلویزیون دهیوادپه کچه دملي ټاکنوبهیرپه ژوندي ډول خپراوه،ما اوهغه په هغه بدلونوباندې چې دسي ،ای، اې ګروپ افغانستان ته دلومړي ځل لپاره په ۲۰۰۱ سپټمبرکې رانښوت،بیا کتنه وکړله.

ماهغه ته دهغه شیبې چې ما اوریک د بارک د کلي په کلا کې دتوت لاندې په داسې حال کې چې باران وریده اوهوا سړه وه ، سګرټ څکول اوورسره مخ حالات موځیړل،وریاده کړله.

دامریکې بمباري یوازې دوه ورځې وړاندې پیل وه اولومړنی پایلې یې مایوسه کوونکې وې . په هیوادکې دامریکې دپوځ هیڅ پرسونل نه واوموږله دې چې د او،ډي،اې د ځانګړوځواکونوسرتیري به څه وخت راځي ، هیڅ خبرنه درلود.هوا شمال لوري په غرونوکې په خرابیدو وه اودژمي دژرراتګ وعده یې کوله.

هغه وینا چې هرڅه به یې خونده خړپړشکاري،دوخت نه مخکې وه.اوس موږدلته ناست یو.صالح اوس د ملي امنیت ریاست یا ان،ډي،اس مشر دی. په ټول افغانستان کې په داسې حال کې چې دټول ټاکنوپروسه رابرسیره کیږي،ځاري.

صالح وویل چې هغه غواړي چې دسهارپه شپږوبجودلومړي ځل لپاره درایوهغه مرکز ته چې دده کورته ورنږدې دی.درایې ورکولولپاره ولاړشي. نه هغه رایومرکزته چې دولتي مهمواولوړپوړوچارواکولپاره تاسیس شوی دی.

هغه واضحً دخپلې رایې ورکوله باندې دومره خوشاله اوویاړکاوه چې ماته دهغه سست هوډ له امله چې دامریکې په تیروټاکنوکې مې درایې ورکولوپرمهال درلود،شرم احساس شو.دا د نوي اوعصري افغانستان په تاریخ کې یوه تاریخي ورځ وه.

داسې یوه ورځ چې دپنځه ویشت کلنی جګړې وروسته یې هغه حقیقت چې دافغانستان په بیا ودانولوکې څومره پرمختګ شوی دی،څرګنداوه.دغه ورځې داحقیقت چې دبشپړیدولپاره څومره نورکارونه باید ترسره شي،هم څرګنداوه . اوهمدارنګه که چیرې دغه ملت غواړي چې هېواد یې بایدبیا دترهګرو ځاله نه شي اوسیاسي اواقتصادی ټینګښت رامنځ ته شي ، نوددغه موخو په وړاندې شته خنډونه باید له منځه یووړل شي.

ما وروسته له دې چې دپنجشېرڅخه دنومبرپه څلورمه ۲۰۰۱ کال کې سهاروختي ولاړم،تراوسه مې کابل ته څلورم سفرواود۲۰۰۴ کال داکتوبرمیاشتې ترپایه په کابل کې پاتې شوم.ددغه دریوکلونوپه بهیرکې لیدنوماته دپرتله

کولوبنسټ پداسې حال کې چې دهیواداوسني حالات څارم اوراتلونکی یې اټکل کوم، کیښود.

کره کتونکي باور لري چې د هغې هڅې پایلې چې لویدیځ ډوله دموکراسي په داسې یوه ملت باندې چې په توکمیز ډول ویشل شوی وي. لکه افغانستان چې بنیادي جوړښت لکه سړکونه، بریښنا، د اوبو سیستم، د تعلیم سیستم خو په کې اصلاً شتون نه لري او په داسې یوه هیواد کې چې زیات نفوس یې بې سواده وي او پنځه ویشت کاله یې قانون د کلاشنکوف د کلتور په زور جوړ شوی وي،پایله یې حتمي ناکامي ده!

دغه ګوت نیونې ښایې چې په پایله کې سم ثبوت شي. دغه تجربه د ۲۰۰۲ کال په پیل کې د بون د پریکړې وروسته چې یوه افغان موقتي او یوه ملي اساسي قانون ته یې چوکاټ او لاره پرانستله،وازمویل شوه.

ازادو ټول ټاکنو لپاره د مهال ویش جوړونه یوه هغه هڅه ده چې په تر سره کولو کې لویدیځواله ډموکراسي د افغانانو پوروړي دي او دا هغه هڅې دي چې په بریالیتوب کې باید هر ډول امکانات په لاره واچول شي.

د نهم اکتوبر بریالۍ او خوندي ټولټاکنې چې حامد کرزی یې ولسمشر کړ، د هغه حقیقت لپاره چې د افغانانو زیاته برخه پر دغه هڅه باور لري، ثبوت او شاهدي وه. د کرزي په وړاندې پروت سړک یو اسان سړک نه دی. هغه ستونزې چې د ولس مشر کرزي او د هغه ادارې په وړاندې مخامخ دي،ډیرې دي او کوم اسان حل نه لري.

زه واضحً کوم سیاسي ماهر نه یم اونه یې دعوه لرم خو غواړم چې څو مهم موضوعاتو ته چې د افغان دولت ورسره مخامخ دی، اشاره وکړم. ځینې نا اټکل شوي خطرونه وڅیړم او په هغه څه چې ښایي متحده ایلات یې د ممکنه مرستې لپاره وکړي، و غږیږم.!

د تاریخ له مخې هغه حکومتونو چې په کابل یې واک چلولای دی،کمزوري او د یوه مهم، اساسي او ډاډمن مالي بنسټ نشتوالي نوموړي حکومتونه د یوه داسې پوځ په جوړولو او ساتلو کې چې په نورو ولایتونو کې د پوځي ځواک د پلي کولو توان ولري، خنډ ګرځیدلی!

پرته له غمیو کانو، هغه هم نسبتا کوچنی کان را ایستنه چې د هیواد په شمال ختیځ تاجک نفوذه سیمه کې موقیعت لري، هیواد ته د عایداتو یوازې دوه نورې لارې شتون لري. یوه هغه مالیه وه چې د افغانستان په پولو باندې د توکو اړولو او رااړولو او د هیواد په دننه کې د سړکونو له لارې لاسته راتلله او نورې هغه پیسې وې چې غیر قانوني اپینو د سوداګرۍ او قاچاق له لارې لاسته راتللې.

د هیواد سرحدي ولایتونه څواکمنه قومي لیډرانو په اسانی سره غصبوي. بیلیونه ډالر چې دغه هیواد ته د ۱۹۸۰ کلونو په مهال راوچلیدل، دغه هیواد نور هم ناوړه کړ څکه چې نوموړې بودیجه په لیرې پرتو ولایتونو کې د سیمه ییزه قوماندانانو او سیاسي اشخاصو ته په لاس ورغلله او د هغوی د اغیزې د لا نورې پیاوري کولو کې ورسره مرسته وکړله.

د جګړې د کلونو پر مهال د اپینو تولید ته دوام ورکړل شو او د طالبانو د ماتې وروسته د دریو کلونو په بهیر کې په کې په ډراماتیکه او ناڅاپې ډول زیاتوالی راغی. سیمه ییزه لیډرانو د مخدره موادو د قاچاق څخه هر وخت ګټه اخستې ده. یا خو یې د مخدره موادو د مستقیمې لیږدونې څخه ګټه اخستې او یا خو د دوی د ولکې لاندې سیمو کې د قاچاقو پرخوځښت باندې د مالیې اخستنې څخه ګټه پورته کړې ده. دغه شتمني یو شمیر سیمه ییزه قوماندانان بډای کړل او هغوی ته یې د خپلو شخصي ملیشاوو د څواکمن کولو او وسلوال کولو توان ورکړ.

دغه کار په کابل کې مرکزي دولت په پرلپسې توګه د بهرنیو حکومتونو او نړیواله مالي بنولنو پر بسپنه باندې متکي کیدلو ته اړ کړ او ونه توانید چې په خپلو مټو یو رښتینی پوځ جوړ څو په څواکمنو سیمه ییزه لیډرانو باندې خپل واک حاکم کړي.

کرزی او د هغه انتقالي حکومت ځان هغسې لکه څنګه چې مرکزي حکومت د ۲۰۰۲ کال په لومړیو کې واک ترلاسه کړ،احساس کړه.

په ټوکیو کې د ۲۰۰۲ د جنوري کنفرانس وروسته د مرستې د راتګ هیله وه. د ا مریکا په مشری ګډون کوونکو هیوادونو د پنځه لس بیلین ډالرو د مرستې وعده وکړله څو د افغانستان په بیارغونه کې وکارول شي خو ددغه وعدو څخه په کې ډیرې لږې لاسته راغلې. د امریکې متحده ایالاتو یوازې ۷۵۰۰۰۰ راتلونکي کال کې ورکړې.

د نوموړو پیسو زیاته برخه د بیا رغونې او د بشري مرستې لپاره ورکړل شوې وې.

اسماعیل خا ن په هرات کې،دوستم په مزار او د تاجکستان سرحد سره د جنرال فهیم خان څواکونه او همدارنګه زیات شمیر سیمه ییزه قوماندانانو د هیواد په ختیځه ولایتونو کې په بیړه سره د ګمرکاتو او د سړکونو محصولات ځانونو ته راغونډ او خپلې زوروړې ملیشاوې یې نورې هم څواکمنې او په کابل کې د مرکزي حکومت سره یې د همکارۍ په وړاندې نور مقاومت ته هم وهڅول.د اافغانستان انتقالي حکوت د ملي پوځ په جوړولو کې د پیل څخه د ستونزو سره مخامخ و. د بودیجې نشتوالی یې بل خنډ شو او حکومت ددغه

ستونزو د پرمختګ د مخنیوي لپاره په اغېزمن ډول هیڅ هم ونه شو کړلای. د متحده ایلاتو د پالیسي جوړونکو هغه پرېکړه چې د امریکې پوځ به د افغانستان د انتقالي دولت سره د مرستې لپاره د سیمه ییزه لیډرانو په وړاندې نه کارول کیږي، په دغه بهیر کې د کرزي د حکومت د پرمختګ ته خنډونه نور هم زیات کړل.

د تیرو دریو کلونو په بهیر کې د کابل حکومت ډیر لږ او په کراره سره پرمختګ وکړ. د افغانستان ملي پوځ روزنه په مخ روانه ده او د سیمه ییزه ملیشاوو د بې وسلې کولو، غیر فعال کولوو او بیا ځای په ځای کولو( ډي،ډي،ار) کولو لپاره نړیواله هڅه روانه ده خو بیا هم هغه سیمه ییزه قوماندانان چې دغه ځواکونه اداره کوي ددغه پروسې د پرمختګ سبب ګرځي.

د ۲۰۰۴ کال په نیمایي کې کرزي د سیمه ییزو قومادانانو په ضد ګام اوچت کړ. جنرال دوستم او اسماعیل خان یې د اړوند ولایتونو څخه پداسې حال کې چې ځانونه یې په خپله والیان ټاکلې ول، لیرې کړل. کله چې د اکتوبر دمیاشتې ملي ټول ټاکنې رانږدې شولې، کرزي خپل لومړی مرستیال مارشال فهیم خان له دندې ګوښه کړ.

د فهیم په ځای یې د کرزي په لاس کې نیولای د احمد شامسعود ورور، احمد ضیا مسعود راووست. د کرزي دغه پرېکړه د فهیم او د هغه نننی پنجشیري تاجک ډلې ته چې د مسعود د ورور په راوړلو سره یې حتی د فهیم په بیه هم مخالفت نه شو کولای، په مخ ځپېړه وه.کرزي ولس مشري د یوه مناسب او او رښتینې پروسې له لارې وګټله. اوولسو نورو کاندیدانو د اسماعیل خان په ګډون ، دوستم او یونس قانوني چې د فهیم د نږدې کسانو څخه و، په بې میلی سره د انتخاباتو پایلې قبولې کړلې.

د تیرو دریو کلونو په بهیر کې د نړیوالې ټولنې لخوا په بسپنه ورکولو کې زیاتوالی راغی اومتحده ایلاتو په لویه کچه د ملي بیا رغونې پروګرام ته د بودیجې په ورکولو کې زیاتوالی راوستلای دی.

د امریکې پوځ د هیواد په کچه د پي ار ټی( د ولایتي بیا رغونې ګروپونه ) پلي کړل څو کوچنی مرستې لکه د نویو ښوونځیو جوړول، نوي څاګان، د اوبونې پروژې او په لیرې سیمو کې نیغ په نیغه کلیو ته سړکونه جوړ کړل.

بیا هم زیاتي مالي مرستې ته اړتیا شته او پرمختګ اوس هم هڅوونکی دی خو سربیره پردې د محلي قوماندانانو زور مرکزي دولت ته یو جدي ګواښ دی او دا ګواښ ښایې چې د کامیابه ولس مشری ټاکنو وروسته هم متوجې وي.

اسماعیل خان اوس هم یو ځواکمن،په سیمه کې مشهور،د هیواد په لویدیځ کې سیاسي او پوځې ځواک ، د ایراني حکوت سره د هغه نږدې اړیکې او هغه

مالي منابع چې دی اوس هم اداره کوي،له ده هغه ځواک جوړوي چې باید په وړاندې یې اقدام ترسره شي.

دوستم خو ښايي چې د ټولو سيمه ييزه قوماندانانو د ډلې څخه ترټولو زيات گمراه او بې لارې سياسي شخص وي چې د کرزي دولت ته يو جدي گواښ دی.

دوستم د ازبک دولت سره اوس هم نږدې اړيکې ساتي او هغوی غواړي په هغه ولايتونو کې چې د ازبکستان سره پوله لري، دوستم په قدرت کې وساتي ځو د سويلي سخت دريزه اسلامي گروپونو په وړاندې يې د ډال په توکه وکاروي.

برسيره پردې د مرکزي دولت د ثبات لپاره ترټولو سخت او ځواکمن گواښ مارشال فهيم او د هغه پنجشري هم قوميان دي . دده د امر لاندې ممکن دوولس زره جنگيالي وي. فهيم او دهغه ښايي يواځنۍ پوځې ځواک وي (پرته د شل زره امريکايي سرتيروچې په هيوادکې پراته دي.ليکوال)بله ستونزه چې په تيرودريوکلونوکې دکرزي اداره ورسره مخامخ وه،هغه انجينرعارف اودهغه دملي امنيت مديريت و.دهغه کردارڅخه چې دمسعودځارگره اداره يې په کلونوکې په مخ بوتله او د۲۰۰۲ کال دلومړيوشپږوڅخه تراته مياشتوپورې داغيزناک پيل څخه پرته ،عارف واضحً ونه توانيده چې دملي امنيت اداره ديوه پراخ بنسټ ، په توکم گډه اومسلکي ادارې په لوري پرمخ بوځي.د۲۰۰۳ کال په اوږدو کې کرزي او سي ای اې ته هغه حقيقت چې عارف په تيروخت کې سريښ و امنيت اداره يې دنژادي اوشخصي غوښتنوپه گټه کاروله اوزيات وخت به يې دپردې ترشا دکرزي اودحکومت په خلاف کارکاوه،څرگندشو.د۲۰۰۴ کال دجنوري په مياشت کې کرزي، عارف دملي امنيت له مشرۍ څخه ليرې اوهغه يې يوه نوي جوړشوي مقام ته چې داستخباراتي موضوعاتوپه ځانگه کې ولسمشرته دځانگړي مشاورپه توگه،يوداسې مقام ته چې دنده اومسوليت نه لري،ترفيع ورکړه.

د ۲۰۰۴ کال دفبروري په مياشت کې کرزي امرالله صالح دملي امنيت دنوي مشرپه توگه وټاکه.صالح دلومړنۍ رياست دمشرپه توگه بهترينه دنده اجراکړله اودملي امنيت په رياست کې دريښتيني سمون دراوستلودهغه ملاتړله امله انجينرعارف دده دښمني ته ملاوتړله.د ۲۰۰۳ کال په وروستيوکې انجينرعارف امرالله صالح دخپل مقام څخه گوښه اويوه ټيټ مقام ته چې اهميت يې نه درلود،تنزيل کړ.

صالح په کې مقاومت وکړاودملي امنيت دنده يې دمثبت بدلون لپاره کارته دوام ورکړو.دملی امنيت دمشرپه توگه دهغه دنده ،دنوموړي ادارې دراتلونکي لپاره يوه ځلانده نښه ده.هغه دپنجشېر تاجک دی اوهغه احمدشاه مسعود ته ورته ځانگړتياوې لري.

صالح دتوکميزه سابقې اوقومي نسبونوڅخه هاخوا ديوه پراخ بنسټه

افغانستان چې دموکراتیک ملت ولري،دقانون له مخې یې حکومت ترسره شي اوداسې هیوادچې ټول توکمونه اونژادونه سره په مساوی ډول چلند وشي،هیله لري.

دملي امنیت دمشرپه توګه دلومړیونهومیاشتوپرمهال هغه په اداره باندې ربښتني اغیزه لرله .داداري په تشکیل اوجوړښت کې یې بدلونونه راوستل . په هره کچه اودرجه یې روزنې پیل کړې . داستخداملولپاره یې یوپروګرام تاسیس کړچې له مخې یې خلک داستعداد په درلودلوګمارل کیدل نه دتوکم اویا دکورنیو اړیکوپه اساس اوپه ډراماتیکه ډول یې مرال اوکړنوته پرمختګ ورکړ.ملي امنیت ته دغوره کارپایلې وې چې ټاکنې په سوله ییزاومنظمه توګه ترسره شولې.

دملي امنیت په ریاست کې ډېرځه لاپاتې دي خومشرصالح اداره په سمه لاره روانه کړې ده.هغه پرمختګونه چې پاس یې ذکر وشو هڅوونکي دي ، دبخت دملتیا سره متحده ایلات او نورو هیوادونو له خوا د بیا جوړونې د کارونو لپاره د پیسو د مرستې زیاتوالی او د افغان ملي پوځ ته په پام سره هیله شته چې د دموکراسی لپاره دغه هڅه به بریالی شي.

خو د مالي مرستې د زیاتوالي او د ولس مشر کرزي سره د هغه نوي شوي وعدې داړه کولو لپاره چې دهغه حکومت سره به د ورسره مخ ستونزو باندې د بري لپاره هر ډول مرسته کوي باید د امریکې متحده ایلات ځینې پاملرنې د عراق څخه لیرې او افغانستان ته یې راواړوي.

عراق د ۲۰۰۲ د نیمایی راپدیخوا د امرکایی اداري لپاره د پاملرنې اصلي ډګر ګرځیلای دی.کله چې افغانستان د مالي او پرسونل منابعو په ویشنه کې د عراق څخه دوهم مقام ترلاسه کړ، د ملي امنیت شورا د بحث مهال ویش ته د افغاني موضوعاتو ورننباسل ستونزمن شول.

مرستې او همکاری په څرګند ډول جلا شوي ول او هرنوی وړاندیز شوی پلان د کرنلارو جوړونکو له وسه تیر شوی و. د نوي ټاکل شوي افغان دولت د بریا لپاره د متحده ایلاتو په واسطه د راتلونکو دریو کلونو لپاره وړاندې شوې اقتصادي مرسته کې حتماً باید دپام وړ زیاتوالی راشي. ښایې چې د یوه کال لپاره ددریو څخه د څلورو بیلیونو پورې ورسیږي او ورسره باید د متحده ایلاتو څخه مناسب لارښود او مشوره ورکړل شي. دا به د کرزي د حکومت په هغه پلان چې سیمه ایزه لیډرانو ځواک مات او په ملي بیا رغونه کې زیاتوالی راولي، ښه اغیزه ولري. د تجربې په اساس د یوه افغان وفاداري نه اخستل کیږي خو په کرایه کیدلای شي!؟

د ډېرو کلونو د جګړې، مرګ او ویجاړتیا وروسته،افغانان سولې ته تږي او غواړي چې له دغه فرصت چې د خپلو ځانونو او کورنیو لپاره یو خوندي ژوند برابر

کړي،ګټه واخلي!

يو مرکزي دولت چې مالي منابع ولري او د هيواد په کچه د بيا جوړونې پلان د پلي کولو په پايله کې د ولايتي نفوس ترې ګټه اخستلای شي او دغه کار هم په يو ډول د ولايتي قومي ليډرانو او جګړه مارانو اغيزې ته تاوان رسولای شي. په افغانستان کې په عنعنوي توګه هغه وخت وفاداري بدلون مومي ، کله چې يو شخص په بل لوري کې زيات ګټه او امکانات ويني.

د مرکزي دولت لخوا مالي او ټولنيز ه سړا، داسې سړا چې وکولای شي د لوټمارو .جنګسالارانو او د هغوی مليشاوو څخه نظامي خونديتوب تهيه کړي. دغه کار ته به ټول ملت هرکلی ووايي. په عراق باندې د متحده ايلاتو تمرکز زياته او جدي اغيزه د افغانستان او پاکستان ترمينځ د ختيځې پولې په اوږدو د تروريزم په وړاندې په جګړه کې احساس کيږي.

د ۲۰۰۲ کال په لومړيو کې د توره بوړې د جګړې او ورپسې د اسامه بن لادن او د هغه لوړپوړې افسر ايمن الظواهري د تښتيدلو سمدستي وروسته سي ،ای ،اې او د امريکې د پوځ لخوا د افغانستان او پاکستان ترمنځ په سرحدي سيمو کې د ځانګړي روزل شوي، نظامي قطعاتو په رامنځ ته کولو پيل وکړ.

دغه ګروپونه چې نسبتا کوچني او خوځنده ول، له هغه موقتي کلاګانو څخه چې د سيمه ييزه قوماندانانو لخوا ساتل کيدل، هغوی ورته انساني ځواک، څارګره او د ډزو ځواک په داسې وخت کې چې ترهګره عناصر يې لټول، تهيه کوله.

لومړنی پايلې يې وعده ورکوونکې وې خو د امريکې پوځ په عراق کې د جګړې د بيا تنظيم کولو لپاره، دروزنې لپاره د چمتووالي په موخه هغه مهمې قطعې چې په دغه هڅه کې بوخت ول، له افغانستان څخه وباسل.

ددغه ځانګړو قطاعاتو په ځای د متحده ايلاتو د پوځ معمولي ځواک لکه لسمه غرنۍ او پنځه ويشتمه پلې فرقه ځای په ځای کړله.نوموړې فرقې ډير ښه او زړور سرتيري لرل خو دغه ځواک په غلچکي (چيريکي) جګړو کې هغه ډول روزنه او تکړه توب چې قطاعاتو درلود، نه لرله او په ورته وخت کې د سي ای اې ترمينځ هم عراق ته پاملرنه زياته شوله. له عراق څخه هغه مقناطيس جوړ شو چې پرسونل او شته( منابع) يې کشول او په هلته د سي ای اې ګروپونو د با تجربه نظامي افسرانو په سمبالولو کې له ستونزو سره مخامخ وه.

د سرحدي سيمو د عملياتو ښې په بدلون پيل وکړ. د راتلونکو اته لس مياشتو په بهير کې په سرحدي سيمو کې عملياتي قرارګاوو د جسامت په لحاظ سترې شولې .

د پايښت او دوام لپاره د کوچنيو ګروپونو په ځای ستر چنيز عمليات ترسره

شول څو په سيمه کې شکمن تروريستان، وسلې او مهمات پيدا کړي.

زيات وخت دغه عمليات په سيمه کې دقومي خلکودغوسې لامل شول اودهغوی دکورونوددغه ورانوونکوپلټنو،دښځواوماشومانوددارولودهغوی سخته کرکه راوپاروله . د۲۰۰۳ کال په وروستيوکې په رسنيو باندې دپسرلي پرمهال په افغان سرحدي سيموکې دبن لادن دله منځه وړلولپاره په کيدونکو نظامي عملياتوعام بحثونه وشول.

پسرلی راغی اوعمليات ونه شول.دامريکې پوځ اوسي ای اې ونه توانيدل چې هغه اړين انساني ځواک چې ددغه عملياتودترسره کولولپاره پکار و،را وليږي.په ښکاره ډول د عراق اړتيا،ددغه کارخنډ شوه.

په پای کې بله ستونزه دپاکستان ده.ددې لپاره چې زمورنظامي عمليات په ختيځ افغانستان کې بريالي شي،موږدپاکستان دپوځ پوره همکارۍ ته اړتيا لرو.

ددواړوهيوادونودسرحدپه اوږدوزيږې عرضي له امله ، دهغه تروريزم په وړاندې چې په سيمه کې پټ دی دبرياليو عملياتويوازينی لارډپولې په دواړوغاړود خټک او سندان په توګه دپوځونوپه ګډه کار کولو ته اړتيا ده.

داسې چې يوه غاړه پرې يرغل کوي اوبله غاړه کلک ولاړوي ترڅودښمن په لومه کې راښکيل کړي.دمتحده ايالاتوځواکونه کولای شي دافغانستان دننه په سرحدي سيموکې ازاد ډول خوځښت وکړي خودهاخوا غاړې سندان يانې پاکستان پوځ په خپل هيوادکې په قبيلوي سيمودعملياتوځخه منع شوی دی . دادمځکې هغه ټوټه ده چې ددوه زره مايلوځخه زيات اوږدوالی لري اودپاکستان اوافغانستان ترمنځ سرحدجوړوي.هغه عنعنه چې په سيمه کې دبرتانيې دوخت قانون ته غزيږي،دسيمې دغه سخت او ويرووونکي قومونه ددې پرځای چې خپلې پلارنۍ مځکې کې بهرنی ځواک ووينې حتی که پاکستانی ځواک هم وي،جګړه اختياروي اوداسې نه ښکاري چې دغه طبيعت دې په لنډ وخت کې بدلون ومومي. لکه څنګه چې زما دکيسې په متن کې طرح شوې ده،پاکستان دډېره وخته په سويلي اسيا کې دامريکې دبدهلک (هغه څوک چې دبل چا په امرهرډول کارونه کوي.ژباړن)په نوم شهرت لري.دپاکستان هغه هڅه چې زروي وسلې ته يې پرمختګ ورکړاوداوږده واټن ويشتونکی بلاستيکی ميزايل يې جوړکړل،هغه منبع وه چې د ۱۹۸۰ کال راپه ديخوا يې ددواړوهيوادونوترمنځ ډيپلوماتيک حساسيت منځ ته راوړ.پاکستاني حکومت په اشغال شوي کشمير کې دمسلمانوجنګيالوځخه دهندوستان په وړاندې په خپله اوږدمهاله چيريکي جګړه کې ملاتړکوي.دغه کشميری جنګيالوته دپاکستان حکومت دخپلواکی جنګياليو په سترګوګوري په داسې حال کې چې دامريکې حکومت هغوی ته ترهګر وايي.

په ۱۹۹۲ کال داپریل څخه تر۲۰۰۱ سپټمبر پورې چې پاکستان دافغانستان په کورنیوچاروکې لاس وهنو له امله چې لومړی یې سخت دریزه مجاهدین اوبیایې په کورنی جګړه کې په هېواد باندې دولکې ساتلولپاره دطالبانوڅخه ملاتړوکړ.په سیمه کې دپاکستان هغه شهرت ته چې ستونزه جوړوونکې اود سولې اوثبات لپاره خطردی،لاره نوره هم ورپخه کړله.په پای کې دامریکې متحده ایالاتودپاکستان په وړاندې دپیړیوپه موده بندیزونه ولګول.

حتی نن ورځ هم زموږپه کانګریس کې دپاکستان سره ددیپلوماتیکي اړیکودپرمختګ وړاندیز ته هروخت ناڅاپي غبرګون وي.سره له دې چې پاکستان موږته دترهګرۍ په وړاندې په جګړه کې ځان یودېرمهم ملګر ی او متحدثبوت کړ،دسپټمبرد یوولسمې څخه سمدستي وروسته پاکستاني حکومت دسختې پریکړې چې یا خود متحده ایالاتوسره دترهګرو په وړاندې په جګړه کې همکا رشي اویا خوپه راتلونکې جګړه کې ددښمن په توګه وپیژندل شي،مخامخ شو.

پاکستانیانوپرېکړه وکړه چې دمتحده ایالاتوترڅنګ به دریږي.دپاکستاني ځارګره ادارې یا ای اېس ای(استخباراتي خدماتومدیریت)په پاکستان کې دسيي ای اې سره په سلګونوالقاعده غړوپه نیولوکې مرسته وکړه او سي ای اې ته یې ځان یوموثر ملګری ثبوت کړ.څیني لوړپوړي القاعده غړي لکه خالدشیخ محمدچې دسپټمبر دیوولسمې نیټې دبرید مشر پلانوونکی و،لاتراوسه نه دی نیول شوی اوهمدغه همکارۍ نن ورځ هم دوام کوي خوپاکستاني حکومت ددغه همکارۍ له امله دکورني جدي اوسیاسي زیان سره مخامخ دی.د۱۹۸۰ او ۱۹۹۰ کلونوپه پیل کې ای، اس،ای کشمیري جنګیالي اودهغوی پاکستاني همکاران دهغوبهرنیوپه ګډون چې دشوروي اتحادپه وړاندې جهادته راغلي ول،په افغانستان کې په کمپونوکې روزل.

دبهرنیوزیاته برخه دالقاعده غړي ول اوهغوکسانوچې روزنه یې په یوځای کوله،ملګرتیا اوترمنځ یې یوشریک هدف رامنځ ته شو.کوم وخت به چې په پاکستان کې دالقاعده په وړاندې دهغوی په پټ ځای باندې برید وشو،دالقاعده غړي به دپاکستاني جنګیالوله خوا زیات وخت دلشکرطایبه اویا په کشمیر کې دیاغي توب (ملاتړکوونکی)دجیش محمداړوندګروپونولخواکوربه کیدل.نوموړي ګروپونه دمتحده ایالاتوسره دپاکستان دحکومت همکارۍ له امله سخته کرکه لري اودپاکستان ولس مشرپروېزمشرف په ځرګندډول ددغه همکارۍ له امله ملامتوي.په هغه باندې ددغه ګروپونولخواځوځلې دوژلوهڅې وشوې.

دکورنیوجنګیالودفشارله امله دپاکستان حکومت اوپوځ قبایلي سیموته دورتګ اودالقاعده اونوربهرني وګړي چې هلته پټ وو په له منځه وړلوکې تر۲۰۰۴ اوږي پورې بې میله و.

نوموړي سیمه دهیوادترټولوسخته مذهبي محافظه کاره سیمه وه چې په زرګونوکوچني مذهبي ښوونځي لري اوخپلوشاګردانوته داسلام ددین ترټولوسخته دریزه اوبنیادي ښه ورزده کوي.دامریکې ددولت له خوا دسخت فشارله امله ، دپاکستاني پوځ ځواکونه دوزیرستان قبیلوي سیموته ورننوتل چې دقومونوسره په جګړوکې ددرنه مقاومت سره مخامخ شول اودرنه مرګ ژوبله وروا‌وښتله.

دغه پوځي عمل په مشرف اودپاکستان په پوځ باندې سیاسي فشارنورهم ورزیات کړ.ددغه ګران بیه همکاري سره سره متحده ایالاتودهغه وړاندیز چې دپاکستاني حکومت سره اساسي ډیپلوماتیکي يااقتصادي مرستې تهیه شي،په وړاندې مقاومت وکړ.

د۲۰۰۴ په وروستیوکې پاکستاني پوځ دمشرف څخه دالقاعده په وړاندې په جګړه کې پوره ملاتړوکړخودپوځ دمشرانوترمنځ دپاکستانیانودقرباني اوپه دغه هڅه کې دخطرسره دمخامخ کیدلوپاره دمتحده ایالاتوله خوا دکوروداني اوربښتینې انعامونونشتوالي له امله کرکه راپورته شوله.

که چېرې دپاکستان په هغه هڅه کې دمرستې لپاره چې سرحدي سیمې باید له ترهګروپاکې کړي،په هڅولو کې بریالی شو.هغه غواړي چې د سیاسي خطرونه سره مخامخ اوپه قبیلوي سیمه کې دعملیاتوبیه پرځان قبوله کړي نوبیا دپاکستان په وړاندې دمتحده ایالاتودیپلوماتیک دریځ بدلون ومومي.

موږباید دپاکستان سره دیپلوماتیکي اړیکې بیا ټینګې کړواودمشرف حکومت سره مرسته اوهمکاري وکړوترڅوپه هیوادکې د روانو ټولنیزاواقتصادي ستونزو په ښه توګه لارښودکړای شي.

موږبایددپاکستان پوځ ته هم انعام ورکړو.ښایي چې هغوی دپام وړپوځي توکوخرڅ اوهغې موضوعاتوله اف-۱۶جنګي الوتکې چې د پاکستان هوایي ځواک کلونه وړاندې پیرودلي اوپیسې یې ورکړي خومتحده ایالاتوهغه دبندیزونودپروګرام دیوې برخې په توګه نیولي،مطرح شي.په وزیرستان کې جګړې پاکستاني پوځ ته په ملیونونو ډالره تاوان اود سلګونوسرتیرودژوندپه بیه تمام شو.دپولې په دومره اوږدوالي سره په ټولوقبایلي سیموباندې برى به هغوی ته نورهم ګران تمام شي.

ددې په بدل کې لازمه ده چې یوڅه ورکړل شي . ددغې هڅې لپاره بایداساسي انعام ورکړل شي.اسامه بن لادن اوایمن الظواهري دپاکستان په قبایلي سیموکې پټ دي.دوی خوله شک پرته دهغه قومي لیډرانوله خوا چې پاکستان نه خوښوي اودهغه مالي انعامونوڅخه اسامه بن لادن یې ورکوي، خونداخلي.

دپاکستان له خوا پوره همکاري لاس ته راوړل،دمتحده ایالاتودپوځ ستراتیژي دافغاني خواته په پوله بیا متمرکزکول،دځانګړوعملیاتوقطعو بیا را لیږدول او په سرحدي سیموکې د سي ای اې دګروپونوزیاتونه به دپولې دواړه غاړوته د همکارۍ اوهم غیرې پوځي عملیاتوته لاره پرانیزي.

دایوازینی لاره ده چې بن لادن،ایمن الظواهري اودهغوی ملګري پیدا اوله منځه یووړل شي.که څه هم چې افغانستان کې مثبت پرمختګ روان دی،دبشپړې ودې بنسټ لړزیدونکی دی.داچې د ۲۰۰۱ سپټمبروروسته دافغانستان مشری متحده ایالاتوپرغاړه اخیستي،دنورې ودې لپاره پرمخ تلل ترڅوداده کړي چې له وړاندې شوی پرمختګ دوام ومومي،دامریکې دحکومت په لاسونوکې دی.

دپرمختګ په موخه دبدلون راوستلولپاره بایددغه اداره ځیني جدي ستونزمنه پریکړې وکړي.عراق هغه یوه ستونزه ده چې کوم ښکاره حل نه لري.متحده ایالات اوس هم په بیلیونه ډالر او د امریکایي سرتیرو ژوند قربانوي څو په عراق کې سوله او ډموکراسي منځ ته راوړي. دغه هڅه د افغانستان په قیمت ترسره کیږي. ددا سې یوه هیواد چې د ۲۰۰۱ وروسته د هڅو او د سولې او دموکراسی لپاره ربښتیني امید او هغه هیله چې د تروریزم په وړاندې په جګړه کې مهمه ګټه لاس ته راځي، له لاسه ورکوو. د امریکې کرنلاره جوړونکي باید بیا له سره غور وکړي او د افغانستان لپاره زموږ پلان او پروګرام بیا ارزیابي کړي څو په هیواد کې د اوسني حالت څخه ګټه پورته شي.

موږ باید د کرزي له دولت سره مالي مرسته زیاته کړو څو د هیواد په کچه اغیزمن د بیا رغونې پروګرام ته دوام ورکړي، او یو اغیزمن ملي پوځ جوړ کړي.

سیمه ییزه قومي مشران او ځواکمن جنګسالاران باید بې وسلې او د هغوی ملیشاوې د ملکي ژوند په ځواک بدل شي. د تروریزم په وړاندې په جګړه کې مهمه سیمه چې لا تراوسه په کې کار شته، د افغانستان او پاکستان تر منځ سرحدي سیمې دي. زموږ د اوسنیو عملیاتو دود او دستور او په سرحدی سیمو کې د پوځ او د سي ای اې ځواکونو جوړښت په غرونو کې د پټ دښمن په وړاندې په جګړه بې اغیزې دی.

ستراتیژی ته باید بیا کتنه وشي او ځانګړی ځواکونه سره د باتجربه سي ای اې او د ځانګړو فعالیتونو فرقې افسران باید سیمې ته بیا راوړل شي. په ورته وخت کې د پاکستان په لوري د امریکې د حکومت دیپلوماتیکه کرنلارې په دې موخه چې د پاکستان حکومت، د پاکستان د پوځ رهبري ځواکمنه شي څو وتوانیږي د ترهګرو هغه پټ ځایونه چې په قبیلوي سیمو کې شتون لري، جرړې وباسي.

د عراق سیوره په دې سیمه پریوځي او بیا به د ادارې لپاره د عراق څخه پام رااړونه له ربړونو ډکه وي حتې د پورتني بدلون د اړتیا لپاره به لږ هم و نه شي

